

ننګرهار طب پوهنځی

# د برق فزیک







پوهنيار هدايت الله

۱۳۹۵

پلورل منع دی

د برق فزیک

Electric Physics

پوهنيار هدايت الله
۱۳۹۵



Nangarhar Medical Faculty

Afghanic

Teach Assist Hydayatullah

# Electric Physics




Funded by
**Kinderhilfe-Afghanistan**





ISBN 978-9936-620-30-8

Not For Sale

2016

بسم الله الرحمن الرحیم

# د برق فزیک

**پوهنیار هدایت الله**

دغه کتاب په پي ډي ايف فارمټ کې په مله سي ډي کې هم لوستلی شئ:



د کتاب نوم د برق فزیک
لیکوال پوهنیار هدایت الله
خپرندوی ننگرهار پوهنتون، طب پوهنځی
ویب پاڼه www.nu.edu.af
د چاپ کال ۱۳۹۵، لومړی چاپ
چاپ شمېر ۱۰۰۰
مسلسل لمبر ۲۱۷
ډاونلوډ www.ecampus-afghanistan.org
چاپ ځای سهر مطبعه، کابل، افغانستان



دا کتاب د افغان ماشومانو لپاره د جرمني کمېټې په جرمني کې د Eroes کورنۍ يوې خيريه ټولنې لخوا تمويل شوی دی.
اداري او تخنيکي چارې يې په آلمان کې د افغانيک لخوا ترسره شوي دي.
د کتاب د محتوا او ليکنې مسؤليت د کتاب په ليکوال او اړونده پوهنځي پورې اړه لري. مرسته کوونکي او تطبيق کوونکي ټولنې په دې اړه مسؤليت نه لري.

د تدريسي کتابونو د چاپولو لپاره له موږ سره اړيکه ونيسئ:
ډاکتر يحيی وردک، د لوړو زده کړو وزارت، کابل
تيليفون ۰۷۵٦۰۱٤٦٤۰
ايميل textbooks@afghanic.org



ای اس بي ان ۸-۳۰-۶۲۰-۹۹۳۶-۹۷۸ ISBN

## د لوړو زده کړو وزارت پيغام




د بشر د تاريخ په مختلفو دورو کې کتاب د علم او پوهې په لاسته راوړلو، ساتلو او خپرولو کې ډير مهم رول لوبولی دی. درسي کتاب د نصاب اساسي برخه جوړوي چې د زده کړې د کيفيت په لوړولو کې مهم ارزښت لري. له همدې امله د نړيوالو پيژندل شويو معيارونو، د وخت د غوښتنو او د ټولنې د اړتياوو په نظر کې نيولو سره بايد نوي درسي مواد او کتابونه د محصلينو لپاره برابر او چاپ شي.

له ښاغلو استادانو او ليکوالانو څخه د زړه له کومي مننه کوم چې دوامداره زيار يې ايستلی او د کلونو په اوږدو کې يې په خپلو اړوندو څانګو کې درسي کتابونه تأليف او ژباړلي دي، خپل ملي پور يې اداء کړی دی او د پوهې موتور يې په حرکت راوستی دی. له نورو ښاغلو استادانو او پوهانو څخه هم په درنښت غوښتنه کوم تر څو په خپلو اړوندو برخو کې نوي درسي کتابونه او درسي مواد برابر او چاپ کړي، چې له چاپ وروسته د ګرانو محصلينو په واک کې ورکړل شي او د زده کړو د کيفيت په لوړولو او د علمي پروسې په پرمختګ کې يې نېک ګام اخيستی وي.

د لوړو زده کړو وزارت دا خپله دنده بولي چې د ګرانو محصلينو د علمي سطحې د لوړولو لپاره د علومو په مختلفو رشتو کې معياري او نوي درسي مواد برابر او چاپ کړي.

په پای کې د افغان ماشومانو لپاره د جرمني کميټې او زموږ همکار ډاکتر يحيی وردک څخه مننه کوم چې د کتابونو د خپرولو لپاره يې زمينه برابره کړېده.

هيله منده يم چې نوموړې ګټوره پروسه دوام وکړي او پراختيا ومومي تر څو په نيږدې راتلونکې کې د هر درسي مضمون لپاره لږ تر لږه يو معياري درسي کتاب ولرو.

په درنښت

پوهنوال دوکتور فريده مومند

د لوړو زده کړو وزيره

کابل، ۱۳۹۵

## د درسي کتابونو چاپول

قدرمنو استادانو او ګرانو محصلينو!

د افغانستان په پوهنتونونو کې د درسي کتابونو کموالی او نشتوالی له لويو ستونزو څخه ګڼل کېږي. يو زيات شمير استادان او محصلين نويو معلوماتو ته لاس رسی نه لري، په زاړه ميتود تدريس کوي او له هغو کتابونو او چپترونو څخه ګټه اخلي چې زاړه دي او په بازار کې په ټيټ کيفيت فوتوکاپي کېږي.

تر اوسه پورې مونږ د ننګرهار، خوست، کندهار، هرات، بلخ، کاپيسا، کابل او کابل طبي پوهنتون لپاره ۲۲۳ عنوانه مختلف درسي کتابونه د طب، ساينس، انجنيري، اقتصاد او زراعت پوهنځيو (۹٦ طبي د آلمان د علمي همکاريو ټولنې DAAD، ۱۰۰ طبي سره له ۲۰ غير طبي د افغان ماشومانو لپاره د جرمني کمېټې Kinderhilfe-Afghanistan او ۴ نور غير طبي د آلماني او افغاني پوهنتونونو ټولنې DAUG) په مالي مرسته چاپ کړي دي.

د يادونې وړ ده، چې نوموړي چاپ شوي کتابونه د هېواد ټولو اړونده پوهنځيو ته په وړيا توګه وېشل شوي دي. ټول چاپ شوي کتابونه له www.afghanistan-ecampus.org ويب پاڼې څخه ډاونلوډ کولای شئ.

دا کړنې په داسې حال کې تر سره کېږي چې د افغانستان د لوړو زده کړو وزارت د (۲۰۱۰-۲۰۱۴) کلونو په ملي ستراتيژيک پلان کې راغلي دي چې:

*"د لوړو زده کړو او د ښوونې د ښه کيفيت او زده کوونکو ته د نويو، کره او علمي معلوماتو د برابرولو لپاره اړينه ده چې په دري او پښتو ژبو د درسي کتابونو د ليکلو فرصت برابر شي د تعليمي نصاب د ريفورم لپاره له انګريزي ژبې څخه دري او پښتو ژبو ته د کتابونو او درسي موادو ژباړل اړين دي، له دې امکاناتو څخه پرته د پوهنتونونو محصلين او استادان نشي کولای عصري، نويو، تازه او کره معلوماتو ته لاس رسی پيدا کړي."*

مونږ غواړو چې د درسي کتابونو په برابرولو سره د هيواد له پوهنتونونو سره مرسته وکړو او د چپټر او لکچر نوټ دوران ته د پای ټکی کېږدو. د دې لپاره دا اړينه ده چې د لوړو زده کړو د موسساتو لپاره هر کال څه نا څه ۱۰۰ عنوانه درسي کتابونه چاپ شي.

**له ټولو محترمو استادانو څخه هیله کوو، چې په خپلو مسلکي برخو کې نوي کتابونه ولیکي، وژباړي او یا هم خپل پخواني لیکل شوي کتابونه، لکچر نوټونه او چپټرونه ایډېټ او د چاپ لپاره تیار کړي، زمونږ په واک کې یې راکړي چې په ښه کیفیت چاپ او وروسته یې د اړوند پوهنځیو، استادانو او محصلینو په واک کې ورکړو. همدارنګه د یاد شویو ټکو په اړوند خپل وړاندیزونه او نظریات له مونږ سره شریک کړي، تر څو په ګډه پدې برخه کې اغیزمن ګامونه پورته کړو.**

د مؤلفینو او خپرونکو له خوا پوره زیار ایستل شوی دی، ترڅو د کتابونو محتویات د نړیوالو علمي معیارونو په اساس برابر شي، خو بیا هم کیدای شي د کتاب په محتوی کې ځینې تیروتنې او ستونزې ولیدل شي، نو له درنو لوستونکو څخه هیله مند یو تر څو خپل نظریات او نیوکې مؤلف او یا مونږ ته په لیکلې بڼه راولیږي، تر څو په راتلونکي چاپ کې اصلاح شي.

د افغان ماشومانو لپاره د جرمني کمیټې او د هغې له مشر ډاکتر ایروس څخه ډېره مننه کوو چې د دغه کتاب د چاپ لګښت یې ورکړی دی، دوی په تېرو کلونو کې هم د ننګرهار پوهنتون د ۱۰۰ عنوانه طبي او ۲۰ عنوانه غیرطبي کتابونو د چاپ لګښت پر غاړه درلود.

په ځانګړې توګه د جي آی زیت (GIZ) له دفتر او CIM ( Center for International Migration & Development) چې زما لپاره یې په تېرو پنځو کلونو کې په افغانستان کې د کار امکانات برابر کړی دي، هم د زړه له کومې مننه کوم.

د لوړو زده کړو له وزیرې پوهنوال دوکتور فریده مومند، علمي معین پوهنوال محمد عثمان بابري، مالي او اداري معین پوهنوال ډاکتر ګل حسن ولیزي، د ننګرهار پوهنتون د پوهنځیو رییسانو او استادانو څخه مننه کوم چې د کتابونو د چاپ لړۍ یې هڅولې او مرسته یې ورسره کړې ده. د دغه کتاب له مؤلف څخه ډېر منندوی یم او ستاینه یې کوم، چې خپل د کلونو-کلونو زیار یې په وړیا توګه ګرانو محصلینو ته وړاندې کړ.

همدارنګه د دفتر له همکارانو هر یو حکمت الله عزیز، احمد فهیم حبیبي او فضل الرحیم څخه هم مننه کوم چې د کتابونو د چاپ په برخه کې یې نه ستړې کیدونکې هلې ځلې کړې دي.

ډاکتر یحیی وردک، د لوړو زده کړو وزارت سلاکار

کابل، اپریل ۲۰۱٦

د دفتر ټیلیفون: ۰۷۵٦۰۱۴٦۴۰

ایمیل: textbooks@afghanic.org

تقریظ

د فزیک ساینس څانګې محترومو غړو ته !

اسلام علیکم

هغه ترجمه چی د Physics چی RESNICK-HALLIDAY-KRANE مولفین دی د **۲۵**، **۲۶**، **۲۷** او **۲۸** څپرکیو ژباړه په پښتو چی پوهیالی هدایت الله د فزیک ساینس څانګی غړی ته د پوهنیار علمی رتبی ته د لوړتیا لپاره د څانګی له خوا دنده ورکړل شوې وه اوس يي دهغې د ترجمې، ترتیب او تنظیم بشپړ کړی دې مونږ دړې کسیز هیئت د پیل څخه تر پای پورې ولوستله او دهغی د علمی ارزښت په هکله خپل نظر په لاندې ډول څرګندؤ:

نوموړی ترجمه صحت ده او په (۱۸۰) مخونو کې د ((فزیک)) تر سرلیک لاندې په پښتو ژبه، ساده او روان عبارت لیکل شوې او تر زیاته حده کوشش شوې ترڅو لوستونکې ورڅخه په ډیره اسانه توګه ګټه واخلې.

دا چی د دی رسالې څخه مخکې د فزیک تر عنوان لاندې کومه واحده علمي رساله موجوده نه وه چې بشپړ معلومات ولرې تر څو محصلین په نظري او عملي ډګر کې ترې ګټه واخلي نونوموړی رساله د برق فزیک په هکله د معلوماتو لپاره یوه موثره او با ارزښته منبع ګڼل کیږی په لنډ ډول ویلې شو چې د دی علمې رسالې موضوع د یوې خوا ځوان محصلین د هغې په هکله بشپړ معلومات لاسته راوړې او له بلې خوا د طب پوهنځې د P.C.B ټولګې د محصلینو لپاره د عملي کار د اجرا کولو او د برق د فزیک په اړوند معلومات لاسته راوړلې شې.

په پای کې ویلې شو چې پوهیالې هدایت الله د نوموړې ترجمې په لیکلو کې خورا زیار ګاللې دی نو مونږ دړې کسیز هیئت نوموړی د دغې علمې دندې سرته رسولو ته د زړه له کومې مبارکې وایو او د پوهیالې علمې رتبې څخه د پوهنیار علمي رتبې ته د لوړتیا لپاره د نورو شرایطو ترڅنګ کافې بولو او د لوې خدای (ج) څخه ورته د لا زیاتو بریالیتوبونو هیله کوو.

په درنښت

پوهنوال دوکتور سید قمبر علی (حیدری)

پوهندوی استاد الفت (شیرزی)

پوهندوی دوکتور جنت میر (مومند )

## د اثر په اړه د لارښود استاد نظر

د طب پوهنځی محترم ریاست ته

محتراما !

ما د Resnick- Halliday- Krane لخوا د تالیف شوی فزیک کتاب پښتو ژباړه چی د طب پوهنځی د کدر د غړی پوهیالی هدایت الله لخوا لیکل شوی په مختلفو پړاونو کی مطالعه کړی چی په اړه یی خپل نظر په لاندی ډول ارائه کوم:

دا ژباړه چی د اصلی اثر د **۲۵** څخه تر **۲۸** فصلونو پوری په بر کی نیسی او د طب پوهنځی د دوهم سمستر د فزیک د مضمون د مفرداتو سره مستقیم اړیکه لری او د یوی برخی تکمیل کوونکی درسی مواد جوړوی، د محترم پوهیالی هدایت الله لخوا په پوره امانتداری سره سرته رسیدلی ده. په ژباړه کی د داسی اصطلاحاتو د لیکنی څخه چی لوستونکی ته د مفهوم له اړخه ستونزه پیدا کوی ډډه شوی او کوښښ شوی ترڅو لیکنه په روانه او عامه پښتو ژبه تر سره شی چی هم د پښتو ژبو وینکو محصلینو او نورو لوستونکو لپاره د هغی لوستل او مفاهمو هضم یی آسانه کړی وی. د اثر په **۲۵** فصل کی بریښنایی چارج او د کولمب قانون په **۲۶** فصل کی د بریښنایی ساحی او په **۲۸** فصل کی پوتنسیل او د پوتنسیلی انرژی په اړه د اړونده مفاهمو ذکر شوی دی چی د هغی په اړه معلومات لرل د هر محصل لپاره اړینه ده. د هر فصل په پای کی د اصلی اثر د محتوا مطابق پوښتنی او نور مسائل په پوره وضاحت سره لیکل شوی دی چی د اثر اعتبار یی نور هم زیات کړی دی.

محترم پوهیالی هدایت الله د طب پوهنځی د درسی کریکولم مطابق په پسرلنی او ژمنی سمسترونو کی په خورا بریا سره د فزیک د مضمون مختلفی برخی (برق، اوپتیک، حرارت او میخانیک فزیکونو ) لیکچر او عملی برخی په مختلفو ګروپونو کی تدریسی کړی چی د څانګی اړینه درسی اړتیا یی پوره کړی ده.

زه په پای کی د دی اثر د اعتبار د تائید ترڅنګ د نورو شرایطو د بشپړتیا په صورت کی د هغی د علمی رتبی د لوړتیا سره موافقه لرم. او محترم هدایت الله ته د نورو بریاو هیله کوم.

په درنښت

پوهاند محمد اجمل حبیب صافی

د انجنیری د تخنیکی مضمونونو د څانګی آمر

## د اصلي اثر په هکله تائیدي تقریظ

د طب پوهنځی د فزیک ساینس د څانګې محترمو غړو ته!

اسلام علیکم

دغه علمی درسي اثر چې د Fifth Edition – Physics – Volume 2 – 2002 **څخه د ۲۵،۲۲،۲۷ او ۲۸** څپرکو پښتو ژباړه د پوهنیار علمي رتبې ته د لوړتیا لپاره محترم پوهیالی هدایت الله د فزیک په نوم ژباړلی دی.

ما په خپله په پوره غور سره مطالعه کړ زه د دې اثر څرنګوالی له علمي او درسي اړخه په لاندې ټکو کې داسې رالنډوم:

د کتاب ژباړه د اصل اثر سره بشپړ سمون لري د طب په درسي کریکولم کې شامل او د طب پوهنځی د PCB ټولګې په دوهم سمستر کې تدریس کیږي.

کتاب په خورا ساده پښتو ملي او رسمي ژبه ژباړل شوی دی چې لوستونکې ورڅخه په ډیره اسانۍ سره علمي ګټه اخیستلای شي.

له دې څخه مخکې د ننګرهار پوهنتون د طب په پوهنځی کې د (فزیک) په نوم په ملي او رسمي ژبو مواد نه وو موجود. د ډیرې خوښۍ ځای دی چې د دې علمې اثر په ژباړې سره د یوې خوا د طب پوهنځیو محصلینو ته کومک وشو او له بلې خوا په پښتو ژبه کې یوه علمي تشه هم ډکه شوه.

د دې اثر په رامنځته کیدو په تدریسي چارو کې د محصلینو د علمي کچې د کیفیت د ښه کیدو په کار کې یو ارزښتناکه ګام پورته شو.

زه دغه اثر نوموړي ته د پوهنیار علمي رتبي ته د لوړتیا لپاره تائید او کافي بولم او په راتلونکي کې ورته د لا بریالیتوبونو هیله مند یم.

په درنښت

پوهنوال سید قمبر علی حیدری

د فارمکولوژۍ څانګې آمر

# دژبـاړن خبرې

داچې الله(ج)انسانان په خپل قدرت سره په ډیر لوړ شرافت کې پیداکړی او دا انسان په خپل ژوند کې په مختلفو حالاتو کې واقع کیږي کله جوړ اوکله ناجوړ وي.ددې لپاره چې انسان اشرف دټولو مخلوقاتودي نوباید دهغه ښه صحت هوسا ژوند لپاره همیشه کوښښ وشي.نوله دې امله داچه زه دننگرهار دطب پوهنځی دبیزیک ساینس دډیپارټمنټ دفزیک دمضمون استاد یم.ماهم کوښښ وکړ چې دخپل علمي ترفیع لپاره چې دپوهیالي څخه پوهنیاری ته ده داسې یو څه ولیکم چې هغه دانسانانو دښه صحت او هوسا ژوند لپاره پکار

راشي اودهغوی داستفادې وړ وګرځي.نوهغه وه چې ددیپارټمنټ دمحترمو استادانو لخواراته دPhysics چې KRANE – HALLDAY – RESNICKلخوالیکل شوی دی.د27,26,25او 28 څپرکو پښتو ژباړه انتخاب کړه او زما درهنماء استاد محترم الحاج پوهاند محمد اجمل(صافی)لخوا هم ومنل شوه.چې دغه کتاب دطب،انجنری،ساینس اوفزیک دمینوالو لپاره یواساسي کتاب دی.دفزیک پواسطه دډیروانسانانو داکثره مریضتیاؤتشخیص اوتداوی صورت نیسي.او هم ننی پرمختګونه د برق په اساس مینځ ته راغلي نو له دې امله ما د برق په هکله دا کتاب وژباړه ترڅو د انسانانو د ژوند د پرمختګ او هم د مریضتیاوو د تشخیص او تداوی لپاره ورڅخه ګټه واخیستل شي. داچې نوموړی کتاب مې په روانه پښتو ژبه ژباړلې دی تروسه مې کوښښ کړی چې دانګلیسي لغات اوجملې پښتوته واړوم خوبیاهم دساینس ترمینالوژي په پام کې نیول شوي چې دا یوه علمي اړتیا ده ددې لپاره چې لوستونکي

ورڅخه سمه ګټه پورته کړی په دی کتاب کی جدولونه او انځورونه ته هم ځای ورکړل شوی دی همدارنګه په ژباړه کی می تر خپله وسه پوری امانتداری په پام کی نیولی ده.

په پای کی دمحترم استاد الحاج پوهاندمحمد اجمل (صافی)څخه چی دډیرو بوختیاؤ سره سره ئی زما ددی علمی رسالی په ژباړه او دناسمیو په سمون کی مرسته کړی دزړه له کومی مننه کوم همدارنګه ددرنو لوستونکو څخه په خورا درنښت هیله کوم چی ددی علمی رسالی املایی او انشایی ناسمی راپه ګوته کړی ترڅو په راتلونکی کی دتکراریدو څخه مخنیوی وشی.

په درنښت

پوهنیار هدایت الله

---

## د دوهم جلد لپاره سریزه

دا د درسي کتاب پنځمه ګڼه ده چې لومړی ځل په 1960 م کال کې د ډیویډ هالیډای او رابرټ ریزنیک پواسطه د ساینس او انجینري محصلینو لپاره د فزیک په توګه خپره شوې وه. د څلورو لسیزو راهیسې دغه کتاب د حساب کولو په بنیاد د پیژندګلوۍ سروې کورس لپاره معیارونه وړاندې کړي دي او د هغه د پیشکشونو د وضاحت او بشپړتوب له کبله ښه شهرت لري. پدې ګڼه کې ډېر زیار ویستل شوی ترڅو لاسرسی ورته زیات شي بیدون د دې څخه چې محتوا او سطحه یې قرباني شي. درسونه په بنیادي ډول دوباره لیکل شوي چې تر څو د موادو جریان یې نور هم په نرمۍ سره شي او موضوعاتو ته د محصلانو لاسرسی اسانه کړي. مونږ زیار ویستلی تر څو ډېري ګټوري نمونې وړاندې کړو او له مشخصو موضوعاتو څخه عمومي موضوعاتو ته پرمختګ وکړو کله چې نوي موضوعات رامنځ ته کیږي.

دغه ګڼه په پیداکوژي (ښووني او روزني علم) او همدارنګه په څپرکو کې د موادو په ترتیبولو کې زیات تغیرات ښکاره کوي. هغه څوک چې د دې کتاب له څلورمې ګڼې سره بلد دي هغوی به د ښکاره تغیرشوي ترتیب سره ورته موضوعګاني هم پدې ګڼه کې پیداکړي. د دغې تغیراتو په راوستلو کې مونږ د تیرو ګڼو د استعمالوونکو مشورې، پلټنې او د هغوی د فزیک زده کړې د پلټنې نتایج مو په پام کې نیولې دي. د دغې ګڼې په منځ کې چې مونږ کوم تغیرات رامنځ ته کړي په لاندې ډول دي:

1. دوباره ترتیبونه د دې سبب شوه چې په نتیجه کې د لومړي جلد څخه دوه څپرکیونه لرې شي، په دوهم جلد کې څپرکیونه دوباره شماره ګذاري شول چې له پنځه ویشتم څخه شروع کیږي کوم چې د څلورمې ګڼې د لومړي جلد د دریم څپرکي سره مطابقت کوي.

2. محصلین ځنې وخت د برقي ساحې په محاسبه کې د ډېر زیات متداوم چارج د ویش له ادغام کولو سره لاس او ګریوان وي ، ځکه چې دواړه مفهومي خلاصه او محاسباتي چیلنجونه دي. د دې لپاره چې د وخت نه مخکې د مفهومي مشکلاتو سره معامله وکړو مونږ د برقي قوې سره په اړیکه کې یو جوړښت معرفي کوو د دې پرځای چې د برقي ساحې سره یې معرفي کړو. د مثال په ډول: په لومړي څپرکي کې مونږ د خطي چارج پواسطه په یوه نقطوي چارج کې د واردې شوې قوې محاسبه تر بحث لاندې نیسو. محصلین د برقي ساحې پرځای د برقي قوې لپاره یو ښه او غوره فزیکي شعور او حس لري، نو پدې طریقې سره مونږ کولای شو چې ریاضیکي جوړښت په یو ډېر فزیکي متن تأسیس کړو. وروسته به مونږ د ساحې او پوتنشیل لپاره محاسبه تکرار کړو. د ورته علتونو لپاره مونږ د کاسې (کشکولې) قضیه یا قانون او اصول په لومړي څپرکي کې د قوې په درس کې معرفي کوو، کوم چې د دې معرفت د لومړي ټوک د ۱۴ څپرکي د جاذبوي قوې د مبحث سره موازي او برابروي.
3. د رادرفورډ شیندلو مبحث د مخکني ګڼې د ګاوس قانون له څپرکي څخه د نوې ګڼې دوهم څپرکي د برقي ساحو مبحث ته انتقال شویدي.
4. په ۲۷ څپرکي (ګاوس قانون) کې مونږ د برقي جریان او برقي ساحوخطونو ترمنځ اړیکو بحث غزولې دی او اوس مونږ د متداوم چارج ویشنې په اړه د ګاوس قانون معمولي پروګرامونه تر بحث لاندې نیسو مخکې د دې چې د هادي اجسامو پروګرامونو ته ورشو.
5. ۲۹ څپرکي (د موادو برقي خاصیت) په یو نوي څپرکي کې ( په هادي او عایق کې غیرمتحد شوي مواد )راټول شوي دي کوم چې د مخکنۍ ګڼې په دوه څپرکو کې (برقي ظرفیتونه او برقي څپې) وو. مونږ پدې باور یو چې دغه مواد ځانله مقاومت لري، او پدې طریقې سره د دوی د معرفي کولو پواسطه مونږ په اسانه توګه کولای شو چې په برقي ساحه کې د کنډکسر او عایق کره وړه سره مقایسه کړو.
6. د فزیک تعلیمي پلټنې په ثابته توګه ښایي چې محصلین د ساده مسقیم جریان د دورو دکړو وړو او عمل په پوهیدنه کې د پام وړ مشکلات لري. لدې کبله مونږ د دې

موضوع په اړه خپل وړاندیز ته پرمختګ ورکړی کله چی په یوه وخت کی د څو حلقه یی دورو پوښښ او اندازه کولو وسایل کمیږی.

7. اوس مونږ د مقناطیسی ساحی د منبع معرفت او پیژندګلوی (۳۳ څپرکی) د یوازی محرک چارج له کبله د ساحی په پیشکش کولو سره او بیا د یو برق تیرونکی عنصر په سبب ساحی ته انتقال پیلوو. دا د هغی مقناطیسی ساحی په طریقه چی په تیر څپرکی کی (لومړی په ځانګړی محرک چارج کی د قوی قابو کول او بیا په برق تیرونکی عنصر، کی قوی قابو کول) معرفی شوه د غوره جوړیدنی وړتیا رامنځ ته کوی. همدارنګه اوس مونږ د کهربایی ډوله محوری ساحی مستقیمه محاسبه د بیوټ سوارټ قانون څخه په استفاده وړاندی کوو مخکی لدی چی د امپیر د قانون څخه په استفادی محاسبه تکرار کړو.

8. د دوه قطبی مقناطیس مومنټ پیژندنه تر ۳۵ څپرکی پوری ځنډیدلی (د موادو مقناطیسی خاصیت). دا په یوه برخه کې ترسره شوی تر څو په محصلینو باندی د مقناطیسی ساحی د نوی موادو فشار او همدارنګه په متن کې د دوه قطبی مقناطیس په معرفی کولو سره ډیر ترلی روش وړاندی کوی په کوم ک کې چې به دا په مستقیمه توګه عملی شی. مونږ د اتومی او هستوی مقناطیسی توب مبحث دلته خلاصه او لنډ کړیدی. دیته مو ترجیح ورکړه چی دغه په جزیات سره بحث کول وروستی څپرکی ته پریږدو چیری چی په هغه څپرکی کی د اتوم اولی جوړښت د الکترون د څرخیدنی سره معرفی کیږی.

9. مونږد تیری ګڼی ۴۰، ۴۱، ۴۲ او ۴۳ څپرکو ته د دی ګڼی په ۳۸ او ۳۹ څپرکو کې ځای او جوړښت ورکړی. ۳۸ څپرکی د ماکسویل له سوالونو او د الکترو مقناطیس څپو په اړه دهغې له پروګرامونو څخه بحث کوی کوم مواد چې د څلورمی ګڼی په ۴۰ او ۴۱ څپرکیوکې وؤ. ۳۹ څپرکی د روښانه څپو خاصیت راپیژندلو په ګډون انعکاس او انکسار او همدارنګه هغه مواد هم ترکیب کوی، کوم چې په مخکنۍ ګڼی په ۴۱، ۴۲ او ۳۴ څپرکو کې ښکاره کیدل. د انځور جوړښت د طیاری د ښیښی پواسطه اوس په راتلونکی ۴۰ څپرکی کی موندل کیږی ، چیری چی دا ډیر مناسبه ښکاری چی دا

موضوع د انځور جوړښت د ښیښې او عدسیې پواسطه د مبحث لاندې وڅیړل شي.

10. په څلورمه ګڼه کې، له عصري فزیک څخه موضوعات د متن هرې خواته شیندل شوي وو، په عمومي ډول په برخو کې ورته اختیاري ننبه ورکړ شوې وه. پدې ګڼه کې مونږ دیته دوام ورکړی چې له عصري فزیک څخه مثالونه د متن له هرې خوا څخه راواخلو، مګر جلا برخې په عصري فزیک کې په **۴۵** او **۵۲** څپرکو کې راغونډې او یوځای شویدي کوم چې د هغې موضوعات د انرژۍ اساسي واحد ،کوانتم فزیک، اتوم ، جامداتو او هستې په اړه دهغې د پروګرامونو څخه بحث کوي. مونږ په قوي ډول دا باور لرو چې مربوط او کوانتم فزیک پدې درجه کې د پیژندګلوۍ د کورس د سروې یو مهم او ضروري برخه ده، مګر دغه انصاف د دې موضوعاتو په اړه په ښه ډول د تړلې او ننبتې پیشکش او وړاندیز پواسطه چمتو او تیار شویدي د جدا او بیل شوو څرګندونو په نسبت، د راتلونکو څخه. **۴۵** او **۴۸** څپرکو کوم چې د کوانتم فزیک او د هغې پروګرامونه چې د اتوم په اړه بحث کوي په اساسي ډول د څلورمې ګڼې څخه دوباره لیکل شویدي. **۴۵** څپرکې مخکنۍ تجربه شوې ذرې پیشنهاد کوي لکه د الکترومقناطیس ځلیدنې خاصیت (حرارتي ځلا، انځوري برېښنا یا فوتوالکتریک تاثیر، کامپتون اثر). سره لدې چې غیر مبهم شواهد د ذرې د وړانګې لپاره د رڼا له کبله یوازې له ځنډول شوو انتخابي تجاربو څخه رامنځ ته کیږي، کوم چې مونږ هم اوس په **۴۵** څپرکې کې ترې بحث کوو. د سچروډینګر د تیورۍ مبادي اوس په **۴۲** څپرکې کې بحث کیږي او بیا په جزیاتو سره د پوتنشیل منبع او هایدروجن اتوم د پروګرامونو سره په **۴۷** څپرکې کې بحث کیږي. **۴۸** څپرکې، کوم چې د اتومي جوړښت څخه بحث کوي د څلورمې ګڼې د **۵۲** څپرکې سره ورته دی یوائې د اتوم د جاذبې په قوه کې د نوې موادو په زیاتوالي سره بحث کیږي.

پدې ګڼه کې د څپرکې په اخر کې مواد په بشپړه توګه د مخکنۍ ګڼې سره تو پیر کوي. د مخکنۍ ګڼې د مشکلاتو بڼه (کوم چې د څپرکیو د برخو لپاره کلیګانې وې) په ښه او محتاط ډول سره ایډیټ (بدلون ورکول) شوي او په دوه ګروپونو (تمرینونه او مشکلات)

کی پرځای شوی. تمرینونه کوم چی د درسی برخو لپاره کلیګانی دی، په عمومی ډول په مربوطه او یوځای شوی برخه کی د موادو د مستقیم پلان او پروګرام څخه تمثیل او نماینده ګی کوی. په عمومی ډول د دوی هدف دادی چی د محصلانو سره مرسته وکړی چی د مفکورو، مهم فارمولونو، برخو ، حجم او اندازو سره بلد شی او همداسی نور. مشکلات، کوم چی د متنی برخو لپاره کلیګانی ندی، ځنی وخت د مختلفو برخو څخه او یاهم له مخکنیو څپرکو څخه د مفکورو استعمال ته ضرورت راځی. ځنی مشکلات داسی دی چی شاګرد ورته ضرورت لری چی براورد یی کړی او ځنی په ازاده توګه ورڅخه استفاده کیږی، چی خام مواد یی پرځای شی تر څو مشکل حل کړی. د مشکلاتو او تمرینونو په ایډیټ کولو او ګروپ بندۍ سره مونږ له مخکنۍ ګڼی څخه ځنی مشکلات له منځه وړی دی. مشکلاتو ته لاسرسی او بشپړول شاید ځنی ورک شوی مشکلات ایجاد کړی او همدارنګه یا نوی تمرینونه یا مشکلات وټاکی. لکه څرنګه چی مخکی وؤ، د بی جوړی او طاقو شمیرو تمرینونو او سوالونو ته ځوابونه په درس کی ورکول شوی او جفتو او جوړیزو مشکلاتو او تمرینونو ته د استادانو او مدرسینو پواسطه په لاسی ډول ځواب ورکول کیږی کوم چی د استادانو لپاره د لاسرسی وړ دی. څوځوابه انتخاب سوالونه او د کمپیوټر مشکلات هم د څپرکی په اخیری موادو کی اضافه شویدی. څوځوابه انتخاب سوالونه په عمومی ډول په طبیعت کی مفکوری او تصور دی او ځنی وخت په موادو

کی غیر عادی پوهی ته ضرورت لری. څوځوابه انتخاب سوالونو، لپاره حل د استادانو په لاسی کتابونو کی موندل کیدای شی. د کمپیوټر مشکلات شاید د ایکسل سپریډشیت تخنیکونو یا سمبولیک مهارت او ورځنۍ اداری ته لکه ماپل او میتماتیکا سره بلدتیا ته ضرورت ولری.

د څپرکی د اخیری موادو پرمختګ د کالیفورنیا د لوتیرن پوهنتون د پاول ستهینلی د ربنتینی او اساسی همکاری لاندی صورت نیولی. مونږ ډیر نیکمرغه یو چی پدی پروژه کی مو د هغی د پوهی او جوړښتنونو څخه استفاده کړیده.

مونږ زیار ویستل ترڅو داسی یو کتاب ته پرمختګ ورکړو، کوم چی وکولای شو د فزیک د پیژندګلوی دومره ټینګه او بشپړه سروی وړاندی کړو څومره چی پدی برخه کی ممکنه وی. همدا وجه ده سره لدی که چیری یو ښوونکی غواړی چی دغه کتاب تائید او ملاتړ یی وکړی نو ضرور ده چی باید د پیل څخه تر پایه پوری یی په یو کلن کورس کی ولولی. د دی کتاب په جریان کی زیات نوبتی پیاده روی وجود لری. یعنی که یو ښوونکی غواړی چی له کمو موضوعاتوڅخه په ډیر ژوره توګه بحث وکړی نو ډیری نوری لاری ورته موجودی دی، که یوه لاره بنده وی د بلی څخه استفاده کولای شی. ځنی برخی یا فرعی برخی د اختیاری نښی پواسطه په ښکاره ډول په نښه شوی دی دا څرګندوی چی کیدای شی دا پاتی شی یعنی ورته ونه کتل شی او بی لدی چی تسلسل د لاسه ورکړی مخکی تللی شی. د کورس په جوړښت پوری اړه لری کولای شی چی پوره یو څپرکی پریږدی یا هم په روښانه توګه پری بحث وکړی. د ښوونکو لاسی کتابونه د ملګری او مل جلدونو یا ټوکونو په څیر د لاسرسی وړ دی کوم چی د مخففاتو لپاره پیشنهادات وړاندی کوی، همدارنګه که چیری یو مکمل پیشکش په درس کی پاتی وی نو یو نادر او کمزوری محصل هم کولای شی چی پلټنه وکړی او هغه لمنځه وړل شوی موضوع پیدا او په بدله کی به ئی د مضمون پراخه نظریه او څیره ترلاسه کړی. مونږ هیله لرو چی پدی سره به دغه کتاب د دی قابل شی چی د فزیک د (سرک نقشی) په توګه تری درناوی وشی. زیات سرکونه، ننداریی یا مستقیماً کولای شی ونیسی او ضرور نده چی ټول سرکونه په لومړی سفر کی په کار واچول شی او استعمال شی. یو ښه او غوره مسافر شاید دیته تشویق شی چی نقشی ته مخ کړی او هغه سیمی او ساحی راوسپړی چی په تیر او مخکنی سفر کی تری پاتی وی.

کتاب په دوه جلدونو کی د لاسرسی وړ دی. لومړی جلد د متحرک اجسامو علم، میخانیک او ترمودینامیک تر پوښښ لاندی نیسی. اوسنی او دغه جلد الکترومقناطیس، د رڼا او لیدو پوهنه (اپټیکس) او د انرژۍ واحد، کوانتم فزیک او د هغی پروګرامونه او غوښتنی تر پوښښ لاندی نیسی. هغه لاسرسی چی پدی کی ضمیمه دی په هغی کی شامل دی:

| | |
|---|---|
| د ښوونکو لاسی کتابونو حل | د محصلانو د لاسی کتابنونو حل |
| د استادانو لاسی کتابونه | د محصلانو لپاره د مطالعی رهنما |
| د استادانو د ذخیری منبع سی ډی | فزیک تظاهر، ورته والی پیښنی |
| لابراتوار | ای درجه کورنی کار |

مدیریتی سیستم.

د دی ګڼی په ترتیبونه او منظمونه کی مونږ د بیاکتونکو د ډالۍ کونکی ټیم له مشورو څخه ګټه اخستی ده، هغه ټیم چی یا یی په شخصی ډول او یا په ګروپی ډول په محتاط ډول خپل نظرونه او کره کتنی تقریباً د لوست په هره صفحه کی وړاندی کړی چی نومونه یی په لاندی توګه ذکر کوو:

- ریچارډ بوکری، لویولا پوهنتون
- ډوان کیرمونی، پوردو پوهنتون
- جی. ریچارډ کریستمن، متحده ایالاتو کاسټ ګارډ اکاډمی
- پاول ډیکسون، کالیفورنیا ایالت، د سان بیرناډینو پوهنتون
- جون فیډریکی، د نیوجرسی د تیکنالوژۍ انستیتیوت
- ډیویډ ګاویندا، د تیکساس پوهنتون، استن ښار
- سټوارټ ګیزیس، د شیکاګو پوهنتون
- جیمس ګیرهرټ، د واشنګټن پوهنتون

- جون ګروبر ، د سان جوز ایالت پوهنتون
- مارټین هیکورت ، ایداهو ایالت پوهنتون
- جناتن هال ، پینسولوانیا ایالت پوهنتون
- اوشری کیرمون ، ډیابلو ویلی کالج
- جیم نیپولیتانو ، د رینسیلر پولی تخنیک انستیتیوت
- ډونالډ ناګل ، تیکساس ای انډ ایم پوهنتون
- ډاګلاس اوشیروف ، سټینفورډ پوهنتون
- هاروی پیکر ، ټرینیټی کالج
- انټونی پیټووکو ، پیما کمیونیټی کالج
- رابرټ سچیرر ، اوهایو ایالت پوهنتون
- جون ټاتونګی ، سیټل پوهنتون.

مونږ د زړه له کومی د هغه اشخاصو د تلاش او سعی څخه مننه کوؤ او د هغوی له پوهی او ځیرکی څخه چی د کتاب لیکونکی ته یی وړاندی کړی دی. همدارنګه مونږ غواړو او غوره ګڼو چی د واشنګټن پوهنتون د فزیک زده کړی ګروپ په ځانګړی توګه د پاولا هیرون او لیلن مکډیرموټ له مشورو څخه یادونه او تصدیق وکړو. د جون ویلی او سونس د کارکوونکو څخه په بی ساری توګه مننه کوؤ چی د دی پروژی لپاره یی پرله پسی او منظم ملاتړ وړاندی کړیدی. مونږ په ځانګړی ډول غواړو چی د سټوارټ جونسن څخه مننه وکړو چی د دی پروژی لپاره یی مدیریت او د بشپړیدو لپاره یی ډالی ورکړی ده. د دی کتاب د کیفیت لپاره اساسی مرسته او اعانه د تولید برخی چلوونکی ایلیزابیت سواین، انځور جوړونکی هیلری نیومین ،

شکل او مثال جوړونکی انا میلهورن، او ډیزاین کوونکی کیرن کینچلو پواسطه ترسره او پوره شوی ده ، چی د دغی اشخاصو د مهارت او پوهی څخه، بغیر د دی پروژی تکمیلول ناممکن وو.

سره لدی غوره او بهترینه تلاش د لیکوالانو، بیا کتونکو او ایډیټورانو (چمتوکوونکو) پدی برخه کی عاجز دی چی شاید په کتاب کی غلطیانی ښکاره شی او مونږ د استعمالوونکو اړیکو ته د سمونی، یا نظر ورکونی او انتقاد ته د موضوع یا د پیداکوژی (ښوونی او روزنی علم) په برخه کی ښه راغلاست وایو. مونږ دغی اړیکی لولو او دومره لاسرسی او ځواب ورته ورکوو چی څومره امکان ولری مګر مونږ پدی هم متأسف یو چی ټولو ته لاسرسی او ځواب نه شو ورکولای، سره لدی مونږ د لوستونکو نظریات او انتقادات تشویقوو چی کولای شی www.wiley.com/college/halliday ته یی راولیږی.

## فهرست (عنوانونه)

### 1 څپرکی

### برقي چارج او د کولمب قانون

صفحه



### 2 څپرکی

### برقي ساحه

## 3 څپرکی

## د ګوس قانون



## 4 څپرکی

## برقي پوتانسیال انرژي او پوتانسیال

# اول څـــــــپرکی

## بریښنایی چارج اود کولمب قانون:

مونږ دلته یوه تفصیلی مطالعه د الکترومګنتیزم یعنی(د برق په واسطه مقناطیس کیدل) شروع کوو او هغه برخی چی اکثره ئی ددی کتاب دمطالعی څخه باقی پاتی دی هر اړخیزه مطالعه کوو.الکترومقناطیسی قوی د اتومونو په جوړښت او د اتومونو یو ځای کیدل په مالیکولونو کی ځواب ورکوی،دموادو زیاتره خواص چی مونږویلی دی په طبعی توګه الکترومقناطیس دی .لکه په جامداتو کی دکشش خاصیت،د مایعاتو سطحی کشش،دفنرقوه،اصطکاک اوعادی قوی ټولی دالکترومقناطیس قوی اودهغه له اتومونو څخه سرچنه اخلی.

دالکترومقناطیس په مثال کی به مونږداولولوچی دبریښنایی چارجونو په منځ کی قوه داسی ده لکه دیوه اتوم دالکترونواوهستی ترمنځ چی ده: دیوچارج لرونکی شی خوځښت په دباندنۍ (خارجی)بریښنایی قوی پوری اړه لری لکه یو الکترون دیواسیلوسکوپ(داشارو اله) په میل کی دبرقی چارچونوحرکت دسرکټ په منځ کی اودهغه په نورو برخو کی دسرکټ په وضع پوری اړه لری ،دمقناطسی موادو دذروخصوصیت اوددایمی مقناطیس ترمنځ قوه: اود الکترومقناطسی وړانګو اچول .چی په پایله کی یی *Optic* اود نوردطبعیت او خواصو څیړنی ته مونږرهنمایی کوی لولو.د دی څپرکی په پیل کی بریښنایی چارج،دچارج شوی اجساموڅه خواص اوددؤچارج شویو اجسامو ترمینځ به بنسټیزه بریښنایی قوه به ولولو.

## ۱-۱ الکترومقناطیس ته یوه کتنه:

څه باید وکړو چې لاندې پایله مولاسته راوړی وی ؟

۱- دخپلې خونی دبرق (*Light*)تنۍ کیکاګۍ،دبریښنا دتولیدولوپه ځای (*Power plant*) کی دسونګ موادو ضایعات هغه مهال الکترومقناطسی انرژی جوړه وی چی کله بریښنا دمقناطیس سره نږدی تیره شی په اخره کی دغه انرژی دبرق په تارونو کی په الکترونونوبدلیږی چی په پایله کی بریښنایي قوه په روښانه رڼا بدلیږي یعني داچي برق روښانه کیږي.

۲- کله چي دکمپیوټر په لیکدړه (*keyboard*) کي کمپیوټر ته امر ورکړئ ، ددي کار د سرته رسولو لپاره ډیر الیکترونونه په کار اچو ل کیږي. الیکترونونه کولاي شي چي په زرګونو لارو د سرکټ منځ ته ننوځي ، خو زیاتره الیکترونونه د بریښنایي ورونو (دروازو ) لخوا ګرځول کیږي ، الیکترونونه یوازي له هغو ورونو تیریدلاي شي چي مونږ دکمانډ پواسطه پرانیستلي دي، الیکترونونه په دي ډول له ورونو تیریږي او لارښودشوي ځاي ته ځانونه رسوي، په پایله کي زمونږ کمانډ یعني هغه کار چي موږ کمپیوټر ته امر پري کړي دي ،مخکي ځي.

۳- کله چي تاسو د خپل تلویزون د ریموټ ( *Remote* ) تنۍ کیکاږۍ ، الیکترو مقناطیسي څپي له ریموټ څخه وځي او نیونکي الي ته ځي. هغه بیا دغه څپي له هغو څپو سره همغاړه کوي چي دسټلایټ له ستر غالي څخه سرچینه اخلي ،سټلایټ هغه لارښوونه سرته رسوی چه تاسودریموټ پواسطه ورکړی وی ددی دپاره بریښنایي او مقناطیسي قوي کاروي ، څو هغو الیکترونو ته لارښوونه وشي چي انځور مخ راښکاره کوي ، یعني داچي لیدونکي انځورخپره وي.

ددي څو پدیدو اصلي لامل په هغي قوي پوري اړه لري ، چي مونږ دبریښنااو مقناطیس په ډول ددي لپاره تشریح کړي. چي د مقناطیس او ذرو د تګ مخنیوي وکړي. دغه قوي د الیکترومقناطیس بنسټ جوړه وي ، له پورتنۍ لیکني څخه مونږ داویلاي شو چي د الیکترومقناطیس ټولي اغیزي په څلورو لومړنیو معادلو کي تشریح کیږي ، چي د

ماکسویل (*Maxwell*) معادلي هم ورته ویل کیږي ،دغه معادلي دالیکترو مقناطیس څو ډوله قوانین وړاندی کوی هغه معادلی چه مونږوړاندی ورباندی څیړنه وکړه د نیوټن دمیخانیک او ترموډاینامیک قوانین وړاندي کوي.

مونږ به لومړي د برېښنا پدیدي ته پاملرنه وکړو او بیا به دمقناطیس پدیدي ته پاملرنه وکړو ، په پای کي به وښیو چې دواړه له یو بله نه بیلیدونکي دي، یقینا برېښنایي پدیده مقناطیسي اغیزه تولیدوي، او مقناطیسي پدیده برېښنایي اغیزي تولیدوي ،دامونږ ته ښي چې برېښنا او مقناطیس باید یو ځای کړو او دالیکترو مقناطیس نوم ورکړو ،د فزیک په برخه کي دالیکترو مقناطیس قوانینو پرمخیون د نولسمي (۱۹) پیړي لویه سوبه وه دي څیړني مونږ ته د ډیرو الو د ځانګړي کاروني لاښوونه وکړه ، لکه موټر ،میله یو ګاني ،تلویزونونه ، رادار، د وړو څپو څپري او ګرځنده (موبایل ).

د الیکترو مقناطیس نظر یي پر مخیون تر شلمي (۲۰) پیړي پوري دوام وکړ ،او دري مهم پرمختګونه یي وکړل په ۱۹۰۵ زیږدیز کال البرټ اینشټاین دا وښودله چې یو خوځښت کوونکي او څارونکي برېښنایي اغیزي دمقناطیسي اغیزو په ډول ښکاري ، نو له دي کبله څارونکي په دي ډاډه نه وي چې دوي دمقناطیس حالت اندازه وټاکي او که د برېښنایي حالت ،دغه پایله د اړیکو دځانګړي نظریي بنسټ جوړه وي ، په پایله کي مونږ ویلای شو چې د مهال او ځای مفکوري او ښتون راوست په الیکترو مقناطیس کي دویم پرمختګ دا ؤ چې د کوانټم نظریه (*quantum Theory*) معرفي کړل شوه ، چې کوانټم الیکترو ډینامیک هم ورته ویل کیږي د ۱۹۴۹زیږدیز کال پرمهال له کوانټم ګټنه وشوه،او داشوني شوه چې د اتوم د ځانګړنو په اړه سمي او ناسمي څرګندوني وشي ، یقینا یوولس(۱۱) مهم اټکلونه.

دشلمي(۲۰) پیړي دریم پرمختګ الیکترومقناطیس له یو بلي قوي سره یو ځای کول و ، چې کمزوري قوی هم ورته ویل کیږي ، هغه د میله یو اکټیویټي (*Radioactivity*) وروستوالي په کړنه ، او دذرو ترمنځ متقابلو کړنو کي ځواب ورکونکي ده . لکه برېښنایي او مقناطیسي اغیزي چې په یو الیکترومقناطیس متقابل عمل کي یو ځای و

نو ځکه په ۱۹۲۰ زیږدیز کال کي الیکترو مقناطیس کمزوري اغیزي په برېښنايي کمزوري ( *Electroweak* ) متقابل عمل کي ښودل شوي وو ، په الیکترو ویک کي کوم نوي شیان مخي ته نه راځي ، یوازي د الیکترومقناطیس متقابل عمل ته بیله پاملرنه کیږي پورتنی پرمختګونه په (۱-۲۵) شکل کی لیدل کیږی.




۱-۱ شکل: د الیکترو مقناطیس په پرمختګ د لویو لاس ته راوړنو د پوهیدلو لپاره یو مهالیزلیک دي.

## ۱-۲ برېښنايي چارج:

کله چي تاسو د خپل سر ویښته په پلاستکي ږمنځه ځو ځله ږمنځ کړئ ،نو وبه وینئ چي ږمنځ ستاسو د ویښتو پرمختلفو برخوقوه وارده وي ،یو مهال به داهم ووینی چي ږمنځ کله د ویښتو له یوي برخي تیریږي ، ویښته ورسره نښتي پاتي کیږي ، شوني ده چي تر ډیره بریده ویښته له ږمنځي سره وغزیږي یعني نښتي پاتي شي ،د ویښتو له ږمنځي سره نښتل یا کشول که څه هم عادي خبره ده ، خو دا دیوی طبیعی پدیدی پایله ده چه

دمښلوپه حالت کي يوبل ته ليږد راليږد کوي دغه طبعي پديده د بريښناي چارج ($Electric\ Charge$) په نوم ياديږي ، او کوم ليږد راليږد چي د ويښتانو او ږمنځي ترمنځ کيږي. داد الکترونونو ليږد راليږد دي ،يعني داچي له يوه اتوم نه اليکترونونه بل اتوم ته ليږل کيږي دبريښنايي چارجونو ليږد راليږد په اصطکاک کي عامه ليدل شوي پديده وه چی هغه د يوناني تمدن په لومړنيو کي پيژندل شوي وه. چاليدلي چي کله يو غونچه لرگي له ويښته لرونکي څرمني سره وموښل شي ، څرمن د لرگي لورته کش کوي ، کله که په قالينه تير شوي ياست او د فلزي ور لاس نيسي (دستگير) په نيولوسره به موټکان خوړلي وي ،کله به موليدلي وي چي د وريځي او ځمکي ترمنځ بريښنا(تالنده ) امتداد پيداکوي ،دا ټولي پيښي د اليکترونون د ليږدراليږد په پايله کي منځ ته راځي.




۱-۲شکل:($a$) دوه يوشان چارج شوی ميلی يو بل دفع کوی ($b$) دوه يوشان چارج شوی ميلی يوبل جذبوی.

کله چي مونږ يو جسم چارجوؤ ، مونږ ته داښکاري چي هغه يوه قوه په بل چارج شوي جسم وارده وي ، کيداي شي چي دغه قوه جذبونکي او يا هم تمبوونکي وي ، د ي حالت ته په کتو سره ويلاي شو چي بريښنايي چارجونه په دوه ډوله دي ، چي مثبت او منفي ورته ويل کيږي سره ددي چي اغيزي دچارج دليږد راليږد په پايله کي منځ ته راځي خودا هم ديادوني وړده چه بريښنايي چارج د دکوچني اصطکاک دليږد راليږد څخه سرچينه اخلي عادي مواد له طبعي بريښنايي اتومونو يا ماليکولونوڅخه جوړ دي ، په هسته کي مساوي مثبت چارجونه او په مدارونو کي منفي مساوي چارجونه لري ، کله چي دوه

شیان په خپلو کي وموښل شي ، ددغه پیښي په پایله کي یو څه الیکترونونه له یوه جسم څخه بل جسم ته لیږل کیږي.زیاتره الیکترونونه یو ځاي پاتي کیږي،هغه ځکه چي سپک د لوي ترمنځ اوړي ، خو په یوه شي کي مساوي منفي اومثبت چارجونه د زیاتره عامو برېښنايي پیښو ځواب ورکوي ، کله چي نرمه میله په وېښتو ومښوو ، الیکترونونه میلي ته اوړي ،ځکه چي هغه له بریده زیات منفي الیکترونونه لري ، نومیله منفي او وېښته مثبت چارجیږي ، یعني میله دوېښتوخوا ته نږدي کیږي اوجذبوېی دمیلي دوېښتوسره یوځاي کیدل دمثبت اومنفي الیکترونونوپایله ده ،همدي ته ورته مونږ کولاي شو چي وریښم له شیشه یي میلي سره ومښوو ،نو وبه وینو چه دتیر په څیر ښیښه ئی میله وریښم خپل لورته جذبوي په هر حالت کې مونږ لیدلي شو چه الکترونونه د یوجسم څخه بل ته اوړي نو وبه لیدلاي شو چي الیکترونونه له یوجسم څخه بل ته اوړي راځئ چي دیوی شیشه یي میلي اخري برخه له وریښمو سره ومښو اوبیادغه شیشه یی میله په یوه تار پوري ځوړنده کړو لکه په ۲-۱ انځور کي ښودل شوي دي ، که چیري ورته چارج لرونکي میلي نږدي سره کیږدو ، نو وبه وینو چي یوه بله پوري وهي ، یعني له یوی څخه بله لیري کیږي لکه په $a$۲-۱ انځور کي ښودل شوي ده او که چیري دا ښیښیی میله د پلاستیکي میلي سره چي له وړیني تکی سره موښل شوي وي نږدي پریږدو ، نو وبه وینو چي یوه بله کشوي یعني جذبوي ، لکه په $b$۲-۱ شکل.

مونږ ویلاي شو چي دوه مختلفي قووي شتون لري ، لکه دوه مختلف چارج لرونکي چي وي ، کله چي پلاستیک له وریښمو سره وموښل شي، الیکترونونه پلاستیک ته اوړي او منفي چارج کیږي ، او کله چي شیشه یي میله له وریښمو سره وموښله شي ، الیکترونونه وریښمو ته اوړي ، ښیښیی میله یوازي دمثبتو الیکترونو مثبت چارج لرونکي پاتي کیږي ، لکه په ۲-۱ انځور کې لیدل کیږي مونږ کولاي شو چي پورته تفصیل په لاندي قانون کي رالنډ کړو :

ورته چارجونه یو بل لیري (دفع ) کوي ،او مختلف چارجونه یو بل جذبوي یعني یوځاي کیږي.



۱-۳ شکل.

په ۴-۱برخه کي مونږ پورته قانون د مقدار (ځومروالي ) په څیر اچوو، لکه د قوولپاره چی د کولمب قانون دي ، یوازي هغه الیکترونونه په پام کي نیسو چي ډیر ورو خوځښت لري او ایسارونه یي یوازي دالکترو ستاتیک مضمون کي لوستل کیږي دچارج شوو اجسامو ترمنځ بریښنایي قوه ډیري تولیدي غوښتني لري ، چي د الکتروستاتیکي رنګ پوډر ، پوډریز پوښ ، ژرهوا وچونکي ، غیر تاثیر لرونکي $ink-jet\ printin$ چاپونه او فوټو کاپي پکي شامل دي په ۱-۳ انځور کي د یوی لیږدونکي تسبیح یو ه کوچني دانه چي د فوټو کاپي په ماشین کي ده ښودل کیږي ، دغه په تورو پوډریزو ذرو پوښل شوي ده چي رنګوني ($toner$) ورته ویل کیږي چی هغه د الیکترو ستاتیک قوي په واسطه سریښ شوي دی ، دغه منفي چارج لرونکي ذري له لیږدونکو مثبتو ذرو سره یوځاي کیږي چي د ډول($Drum$) له تاویدو سره بیا انځور یا فوټو کاپي جوړیږي.

دیوجسم ځانګړي بریښناي چارج زیاتره په $q$ ښودل کیږي چارج یو وزن (تلل کیدونکي) شي چي مثبت او هم منفي لري ،بریښنایي چارج په کولمب ($C$) اندازه کیږي ،کولمب د چارج لوي واحد دي ، یو کولمب چارج $6.10^{18}\ e$ سره مساوي دي.

کولمب له پورته یادشوي واحد څخه نه دي اخیستل شوي ،ځکه چي بریښنایي چارج یو نوي مقدار دي ،مونږ کولاي شو چي د هغه لومړني واحدات له نورولارو معرفي کړو ، یوه دشوني لاربه د قوي لخوا داسي وي. چه په یوه برخه کې دوه معیاري چارجونه وارد

شوي وي ، لکه يو مقدار چارج چي يو نيوټن قوه په ورته چارج په يو متر واټن کي وارده وي ، کله قوه د خوځښت لرونکي چارج څخه نه شي اندازه کيدلاي ، او په تمرين کي داډيره ارزښتمنه او ګټوره ده چي کولمب د هغي مقناطيسي قوي په واسطه معرفي کړل شي چي د تارونو ترمنځ ليږدول کيږي ،دغه قوه کيداي شي چي دهغي بريښنايي قوي په پرتله سمه اندازه شی چي د خوځښت لرونکي چارج ترمنځ وي ، داهم ارزښتمنه د ه چي د جريان ( هغه يو مقدار بريښنايي چارج چي په واحد وخت کي تيريږي ) واحدات د SI له مخي معرفي کړل شي ، د بريښنايي چارج لپاره کولمب يو اشتقاقي واحد دي ، چي د جريان او وخت له بنسټيزو واحداتو څخه اخستل شوي دی.( الف ضميمه وګوري )

## برقي چارج د محاسبي وړ دي :

کله چي مونږ له يو جسم څخه بل جسم ته برقي چارج ليږدوو نو په ډيرو کوچنيو واحدونو باندي نوموړي انتقال صورت نه نيسي ځکه د چارج جريان دوامداره نه بلکه له جلاذراتو څخه رامنځته کيږي. تجربي ښئ چي برقي چارج تل په مقداري توګه موجوديت لري چي د $e$ چارج ګڼ شمير ځانګړو لومړنيو مقدارونو له يو ځاي کيدو څخه رامنځته کيږي او په لاندي ډول محاسبه کيږي:

$$q = ne \qquad n = 0, \pm 1, \pm 2 \pm 3, \dots, \quad (1-1)$$

چيرته چی (څلورو مؤثرو ارقامو لپاره ):

$$e = 1.602 \times 10^{-19}\, C$$

د $e$ ابتدائي چارج د طبيعت يو هغه اساسي ثابت دي چي تجربوي قيمت د څلورو اجزاو لپاره د $10^8$ حدودو کي تعين شوي دي الکترون او پروتون د ذراتو هغه عمده بيلګي دي چي هر يو يي د چارج يو ه اساسي برخه جوړوي الکترون $-e$ او پروتون $+e$ چارج لري. دنيوترون په څير ځيني ذرات کوم برقي چارج نه لري د عناصرو نورکوچني ذرات چي چارج رامنځته کوي هم پيژندل شويدي چي د ګڼ شميرله يو ځاي کيدو څخه يي د $e$ په اندازه چارج رامنځته کيږي او معمولاً د $\pm 2$ ، $\pm 1$ او $\pm 3$ په ډول ښودل کيږي نوموړي هرذری د ځان په وړاندي اړونده مخالفی ذرات لر ي چي دکتلي له نظره سره

مساوي خود برقي چارج له نظره مخالف چارج لري. د بيلگي په توگه انتي الکترون چې د پوزيترون په نوم پيژندل کيږي د $+e$ چارج لرونکي ذره ده انتي پارټيکلونه يا د عناصرو د ذراتو ضد ذري معمولاً په طبيعت کي موجود ي نه وي خو کيداي شي دعناصرو دهستوله تجزيي او فعالولو څخه رامنځته شي.

له1-۱ معالي څخه څرگنديږي چې کولاي شو په يو جسم کي د $+10e$ يا $-6e$ په اندازه خالص چارج رامنځته کړو خونه شو کولاي $3.57e$ چارج ولرو.کله چې د يوتعمير ساختمان محدود وي تر څو متعددچارجونه په کي رامنځته نه شي نو ويلايشو چې نوموړي تعمير محاسبه شوي($Quantize$) دی.

داچې دذراتو چارج کوچني دي نو ځکه په عادي شرايطوکی مونږ دچارج دجريان په جلاطبيعت باندي نه پوهيږو .د بيلگي په توگه ديوي برقي دوري په لين کي ديو ملي امپير په اندازه کوچني جريان شتوالی ولري په هر مقطع کي ئی $6 \times 10^{15}$ اليکترونونه په هره ثانيه کي جريان لري.

عادي اتومونه دبرق له نظره خنثي وي يعني په برابره اندازه مثبت او منفي چارج لري.دهر اتوم اندازه د $Z$ په اندازه پروتونونه لري(چې $Z$ د هر اتوم له اتومي نمبر څخه نماينده گي کوي ) اود $+Ze$ په اندازه چارج لري .په يو خنثي اتوم کي د $Z$ په اندازه منفي چارج لرونکي اليکترونونه د هستي په شاوخواڅرخي اکثره وخت ممکن وي چې له يو اتوم څخه يو يا څو اليکترونونه لري کړو چې له کبله يي يو آيون مينځته راځي چې د $+e, +2e \ldots$ اضافي مثبت چارج لرونکي وي. دبيلگي په توگه که چيري مونږ وتوانيږو چه له يورانيم ($Z = 92$) څخه د هغه ټول اليکترونونه لري کړو نو مونږ به داسي يو ه ذره رامنځته کړي وي چې د $+92e$ په اندازه چارج به ولري. دځانگړوشرايطو لاندي مونږ کولاي شو له يو خنثي اتوم سره اضافي الکترون ونښلو چې له کبله يي منفي چارج لرونکي ايون منځئته راځي.

که څه هم مونږ عقيده لروچي اليکترونونه داسي ابتدايي ذرات دي چې د تجزيي وړنه دي خو پروتونونه بيا ابتدايي نه دي او د نورو ابتدايي بځرو څخه جوړ شويدی چې

دکوارکونو($Quarks$) په نوم یادیږی کوارکونه د$e\frac{1}{3}-$ او$e\frac{2}{3}+$ په اندازه کسري برقي چارج لري.پروتون له دریو کوارکونو څخه جوړ شویدي چي دوه یې $e\frac{2}{3}+$ او یو یې$e$ $\frac{1}{3}-$چارج لرونکي دي چي د دریو واړو له ترکیب څخه خالص $e+$ چارج رامنځته کیږي د پروتون دننه د کوارکونو دموجودیت په برخه کي تجربوي شواهد ډیرقوی دي (مثلا د لوړي انرژي لرونکي الیکترونونه کولاي شي دپروتون په داخل کې دکسري چارج لرونکوکوارکونو ترمنځ وځرخیږي)خومهمه نده چه پروتونونه په څومره قوت سره متراکم ساتل کیږي او کوم ازاده کوارک ورڅخه نه جلاکیږي په نتجه کي لیدل کیږي چي هیڅ کسري چارج لرونکي ذره نشي ازادیدلاي نوموړي حقیقت لاښه جوتیږي چي د کوارکونو د جلاکیدو پرمهال دهغوي ترمنځ د جاذبي د قوي د زیاتوالي لامل کیږي چي نوموړي خاصیت یي د الیکترومګنیتیک او دځمکي د جاذبي له خاصیت سره توپیر لري ،په دي دواړو حالتونو کي د فاصلي په زیاتیدو سره جاذبي قوه کمیږي

**1**-۱ نمونه یی مسئله: یوه فلزي سکه چي د برقي چارج له نظره خنثي وي د مساوي شمیر منفي او مثبتو اتومونو لرونکي وي په دي حالت کي دنوموړي مساوي چارجونو مګنیتود څومره دي ؟

ځواب :د$q$ چارج د $NZe$ په ډول محاسبه کولاي شو چي $N$ په ذکر شوي سکه کي داتومونو له شمیر او $Ze$ د هغو مثبتو اومنفي چارجونومقدار دي چي د هر اتوم پواسطه انتقالیږي.ددي لپاره چي پوښتنه په ساده ګي سره حل کړو فرض کوو سکه له مسو څخه جوړه شویده ،نو په سکه کي د اتومونوشمیر عبارت دی له $N_Am/M$ چي په دي کي$N_A$ د $Avogadro$ ثابت دي ،دسکي کتله $3.11gr$ او $M$ دیومول مسوکتله (دمسو مولر کتله ده) چي $63.5g$ ده نو پیداکوو

$$N = \frac{N_A m}{M} = \frac{(6.02 \times 10^{23}\ \text{atoms/mol})(3.11\ \text{g})}{63.5\ \text{g/mol}}$$
$$= 2.95 \times 10^{22}\ \text{atoms.}$$

داچي هر خنثي اتوم د اليکترونونو دلرلو له مخي د $Ze$ په اندازه منفي چارج اودهستي سره په تړاو په ذکر شوي اندازه دمثبت چارج لرونکي وي ، په دي ځاي کي $e$ ابتدائي چارج دي اوعبارت دي له $1.60 \times 10^{-19}\ C$ څخه او $z$ په پوښتنه کي د اړونده فلز د اتومي نمبرڅخه نماينده ګي کوي چي د مسو اتومي نمبر ۲۹ دي ، نو دپوښتني مطابق په سکه کي دمثبتو اومنفي چارجونوټوله اندازه عبارت ده له:

$$q = NZe = (2.95 \times 10^{22})(29)(1.60 \times 10^{-19}\ C)$$
$$= 1.37 \times 10^{5}\ C.$$

داډير زيات چارج دي نسبت دپلاستيکي ميله مښلو ته چي دهغي قيمت $10^{-9}\ C$ دي او دمسي سکي په نسبت د $10^{14}$ په اندازه کم دي له بله اړخه ، که چيري وغواړو چي د $1.37 \times 10^{5}\ C$ په اندازه چارج د برق له يوعادي ګروپ څخه تيرکړونو ۱-۲ ورځو ته اړتيا ده ،نو ويلاي شو چي په عادي مواد وکي خورازيات چارج شتون لري.

**۳-1** : هادي او عايق اجسام:

داليکترون د انتقال له مخي اجسام معمولا په دوو ګروپونو ويشل شوي دي ، دفلزاتو په څير په ځينو موادو کي معمولا اليکترونونه په ازاده توګه حرکت کولاي شي چي مونږ دغه ډول موادوته هادي اجسام وايو ، هغه اليکترونونه چي دنوموړو توکو په يوه برخه کي داخل شي په اسانۍ سره کولاي شی له نوموړو توکو څخه تير شي دهادي اجسامو نوري بيلګي د اوبو نل اودانسان له بد ن څخه عبارت دي نور ځيني اجسام چي اليکتروني جريان په کي په سختۍ سره حرکت کوي ، يا کومي برخي ته يي چي الکترونونه داخل شي همغلته پاتي کيږي دغيري هادي اجسامو په نوم ياديږي چي په بيلګو کي يي ښيښه ، پلاستيک او داسی کرستلي مواد لکه دخوړو مالګه $(Nacl)$ راځي .که چيري تاسي وغواړۍ يو مسي ميله چي په لاس کي مو نيولي ده وړين ټوکر سره دمښلو له کبله چارج کړۍ نو بريالي به نشۍ ځکه چي د وړين ټوکر سره دمسين ميله د مښلو له کبله خواليکترونونه مسين ميله ته ليږدديږي خو له بلي خوا اضافي شمير اليکترونونه ستاسي د لاس او بدن پواسطه مسي ميلي ته انتقاليږي چي د بي

ځایه شویو الیکترنونو ځای نیسي چي په پایله کي دمنبلو له کبله هیڅ چارج لاسته نه راځي. مونږ ویلای شو چي ځمکه دلایتناهي چارجونو لرونکي ده چي یو څه یي ستاسي دبدن له لاري مسي میلی ته ځي، تر څو دمنبلو پواسطه د بي ځایه شویوي الیکترونونو ځای ونیسي ځکه چي مونږ یوه لاره پرانیستي پریښي وه چي دهغي له لاري دځمکي او جسم ترمنځ الیکترونونوجریان پیداکړ دبرېښنا له نظره دغه ډول جسم ته چي تولیدشوي چارج یي ځمکي ته لاړ شي ښخ شوي یا $Grounded$ جسم وایي. ددي پرځای که چیري مونږ نوموړي مسین میله له پلاستیکي لاستي سره ونښلوو نو مونږ به دمنبلو پواسطه هغه چارجداره کړو ، غیرهادي لاستي کولای شي دچارج شوي جسم اوستاسي دبدن ترمنځ دالیکترونونو دلیږ دمخه ونیسي. دمسو په څیر د یوهادي جسم اتومونه عموماً سسته اړیکه لرونکي الیکترونونه لري چي په اساني سره یوه له بله جلا کیږي او مثبت چارج لرونکي آیون منځته راوړي کله چي دمسو اتومونه یو له بله سره تراکم کوي اودمسو یوه کتله جوړوي نو نوموړي سسته اړیکه لرونکي الیکترونونه د یو ځانګړي اتوم په چارچاپیره نه پاتي کیږي بلکه په ټوله کتله کي په آزادانه ډول ګرځي راګرځي ، نوموړي ازاد الکترونونه دهادي الکترونو یا $Conduction\ Electrons$ په نوم یادیږي مس چي یوه وصفي هادي ماده ده په هر $cm$ کي یي کتله د $10^{23}$ هادي الکترونونو لرونکي ده مثبت چارج لرونکي ایونونه نشي کولای په آزاده توګه حرکت وکړي له دي کبله دمسو په کتله کي پاتي کیږي




**۴-1 شکل**: د ځوړند شوي چارج نه لرونکي مسیر دواړه خواوي د چارج شوي میلي پوسطه جذب شویدي په دي حالت کي د مسیني میلي هادي الکترونونه دچارج شوي ښیښني میلي نږدي خواته جذب شوي دي اودمسیني میله لري خودمثبت چارج په حالت کي پاتي شویدي د

**۴-۱ شکل** تجربه په یو هادي جسم کي د چارج حرکت ښئ په نوموړي شکل کي یو غیر چارج شوي مسي میله د یوغیري هادي تار پواسطه راځوړندشویده ،کله چي یو ښیښنه یی چارج شوي میله د ځوړند شوي مسي میلی یوي څوکي ته رانږدي شي نو دمسین

میله ازاده هادي الکترونونه دمثبت چارج شوي ښیښه یي میله سره نښلي ، مسیی میله په دغه انجام کي خپل منفي چارجونه له لاسه ورکوي اوبل انجام یي مثبت پاتي کیږي په دغه حالت کي دښیښه یي میله منفي چارج لرونکي انجام او دمسي میله مثبت چارج لرونکی انجام ترمینځ د جاذبي قوه زیاتیږي.

یادونه :نوموړي حالت د۲-1 شکل له تجربي څخه ډیر توپیر لر ي ،په ۱-۴ شکل کي ښیښه یي میله هغه مسي میله ځانته راجذبوي چي خالص چارج نه لیږدوي (داچي په راتلونکي برخه کي به پري هم بحث وشي ، برقي قو ه دچارجونو ترمینځ د دافعي پر قوه باندي معکوس تاثیر لري له دي وجي دښیښي او مسي میلي دمنفي انجام ترمینځ د جاذبي قوه او دښیښي او مسي میلی دمثبت انجام ترمینځ د دافعي د قوي په نسبت ډیره زیاته ده ).

که چیري د ۴-1 شکل په تجربه کي د مثبت چارج شوي ښیښي میلی پرځاي مو یو منفي چارج شوي پلاستیکي میلي کارولي واي نو نتیجه به یي عین شي وه یعني د پلاستیکي میلي اومسینی میلی ترمینځ به دجاذبی قوه رامینځ ته شوی وه.په دی حالت کی به دمنفی چارج لرونکی پلاستیکی میلی دمسین میله هادي الکترونونه دهغي لري انجام ته تیله کړاي واي او نږدي انجام به یي مثبت پاتي شوي واي چي په دي حالت کي به د منفي چارج لرونکي پلاستیکي میلي اومسین میلي ترمنځ به دجاذبي قوه رامنځته شوی وه. داهم ممکنه ده چي د چارج لرونکي جسم اونه چارج لرونکي غیرهادي جسم ترمینځ دجاذبي قوه رامینځته شي. $a$-۱۵ شکل یوه چارج لرونکي ږمنځ ښئ چي د کاغذ نه چارج لرونکي ټوټي ځانته راکش کوي په دي حالت کي د جاذبي د قوي د رامنځته کیدو توضیح دښیښه یي اومسین میله ونو ترمینځ د جاذبي قوي د رامینځته کیدو سره توپیر لري په دي حالت کي کاغذ غیر هادي جسم دي او ممکن نه ده چي الکترونونه یي یو انجام ته راټول شي (۱-۴ شکل په تجربه کي د هادي جسم په څیر ) ددی پرځاي د کاغذ د ټوټو په جلا جلا مالیکولونو کي الکترونونه دمنفي چارج شوي ږمنځي پواسطه تیله کیږي او د هر مالیکول په هغي خوا کي چي له ږمنځي څخه لري وي موقعیت غوره کوي چي د هر مالیکول مثبته خوا (چي الکترون ورڅخه شړل شوي وي ) د ږمنځي سره نږدي

پاتي کيږي او دږمنځي سره په لويه پيمانه د جاذبي قوه پيدا کوي ،او همدا د ږمنځي او کاغذ د ټوټو ترمينځ د جذب مسوليت په غاړه لري $a$ ۱-۵ شکل که چيري ږمنځه مثبت چارج شي نو ورته د جاذبي قوه به رامينځته شي. ديو چارج لرونکي جسم تر اغيزي لاندي دمنفي او مثبت چارجونو جلاکول يوه جدی موضوع ده چي د پولرايزيشن په نوم ياديږي، پولرايزيشن کولاي شو هم په *Macroscopic* يا سترګي ليدلي ډول رامينځته کړو لکه په ۱-۴ شکل کی د مسين ميلي بيلګه او هم به يي په ماليکولي کچه لکه د۱-۵شکل دتجربي په څير رامينځته کړو.



**۱-۵شکل : (*a*)**: شکل يوه چارج شوي ږمنځ ځانته د کاغذ خنثي ذري کشوي **(*b*)** منفي چارج شوي ږمنځ په ماليکول کی چارجونو د قطبی کيدلو په نتيجه کی (پوليرايز) دږمنځي او کاغذ ترمينځ يوه دکشش قوه مينځ ته راوړي.

## دتماس او القاء په واسطه چارچيدل:

مونږ اوس يوه مثبته چارج شوي دشيشي ميله راخلو او دميسو د يوي خنثي ميلي سره يي مونښو (۱-۲ شکل په شان ) نو الکترونونه به دمسي ميلي نه د چارج شوي ميلي په طرف حرکت وکړي تر څو دچارج شوي ميلي موجود ه چارجونه خنثيٍ کړي. په هر

ترتیب الکترونونه دښیښنه ئی میلي څخه نه تیریږي دغه الکترونونه فقط هغه چارجونه خنثیٰ کوي، کوم چه ددوي سره دتماس په وخت کې ددوه میلوترمینځ واقع کیږي . دموجوده الکترونو نو بیځایه کوني لپاره دمسو دمیلي څخه مونږ کولي شو چه دشیشي میله دمسودمیلي په سر کش اودشیشي میله د چارجونوڅخه پاکه کړو . ددي لپاره چه الکترونونه یو نوي ځاي ته تغیر مکان وکړي کومه ساحه چي دښیښی میلي د میسودمیلي سره په تماس کي ده ( $a$۲-۱شکل ) او کله چه مونږ د ښیښی میله تری جداء کړو .نودمیسو میله دمثبتو چارجونو د یوه جال په واسطه وپوښله شي. الکترونونه دمیسو دمیلي د سطحي نه تیریږي نوپه دي خاطر مثبت چارجونه د میسو دمیلي په سر تقسمیږي .داسي مستقیمه تبادله د چارجونونو د یوجسم څخه بل جسم ته،د جسم چارجیدل دتماس په واسطه ویل کیږي.

او په همدغه شان په حقیقت کي منفي الکترونونه خپل ځای تغیره وی دا یو قرار دادی شکل دي کوم چه د۱-۲ شکل په تجربه کي ښودل شوي دي. لکه چه ، کله مثبت چارجونه دشیشي دمیلي نه دمیسو دمیلي طرف ته راشي ، راځئ چه اوس ۱-۴شکل حالت ته مراجعه وکړو. که چیري مونږ یوسیم دمیلی مثبت خوا سره وصل کړو بیاهغه سیم




دځمکي سره وصل کړو .لکه چه $a$۱-۷ شکل کي ښودل شوي دی.

د تماس په واسطه چارجیدل، الیکترونونه د مسو څخه د ښیښې د مثبتو چارجونو د ۱-۶ شکل **(a)**:خنثی کولو لپاره راځی:

**(b)** نتیجوی چارج د مسو د پاسه کله چی ښیښه لیری شی.

نو الکترونونه شاید دځمکي څخه دمسو میلي په لورحرکت وکړي اودهغي مثبت چارجونه به خنثي کړي .که مونږ ښیښه یي میله په خپل ځاي پریږدو او دغه ارتباط د ځمکي سره قطع کړو د میسو میله به منفي چارجونه د ځانه سره خوندي کړي. او که مونږ دشیشي میله دخپل ځاي څخه لري کړو منفي چارجونه په دمیسي میله پرمخ تقسیم شي $b$۱-۷ شکل او د یو بل نه په دومره فاصله اخلي څومره چي ممکنه وي. اوپه دغه طریقه دیوجسم چارج کولو ته د القاء په طریقه چارچیدل وائي.

یادونه: مونږ کولي شو چه دشیشي مثبت چارج شوي میلي په واسطه مثبت چارجونه د میسو میلي ته د تماس په واسطه ولیږدوؤ اوکوولي شو چه منفي چارجونه (دځمکي څخه) دالقا په واسطه واخلو.




۱-۷شکل: $(a)$: دالقا په واسطه چارج کیدل، دځمکی څخه الکترونونه دمسو دلری انجام دمثبتو چارچونو دخنثی کولو لپاره راځی(دالیری انجام دیوهادی سیم په واسطه دځمکی سره وصل دی). $(b)$: نتیجوی چارج دمسو دمیلی دپاس چی ښیښه ای میله ښي.

### ۴-۱د کولمب قانون:

په دي څپرکي کي مونږ په دوه قسمه برقي چارجونو باندي بحث کوو چه یو په بل باندي قوه وارده وي او اوس زمونږ هدف دادي چه ددغه قوي نوعیت باندي ځان پوه کړو اول شخص چارلس اوګوستن کولمب ($Chales\ augustin\ coulomb$)په ($1736-1836$) میلادی کال کی چه د دغي قوي نوعیت یي په تجروبوي اونسبتي شکل په کامیابۍ سره وڅیړه او په نتیجه کي یی دجاذبي اودافعي قوه اودهغه قوانین په لاس راوړل، په اصل کي د کولمب دکار میکانیزم د (۱-۲شکل) سره سمون خوري. اما په دغه تغیر سره چي هغه دغه وړي کري په $a$ او $b$ سره وښودلي ځنګه چي په ۱-۸ شکل کي ښودل شوي دي. که $a$او $b$ چارج شوي وي ، برقي قوه به په دي کوښښ کې وي چي د $a$ راځوړند شوي (فایبري ) تارځان ته مایل کړي. کولمب دغه بیرون میلان دمینځه یووړ کوم چی به دچارج شوي زري دتاثیر له وجي مینځ ته راځی چی ددی کار لپاره دسراومینځ په فاصلی کی یوی $\theta$ زاوی ته ضرورت وه چی د $\theta$ زاویه د $a$ دعاملی قوی په اندازی پوری اړه درلوده نود کولمب نوښت داؤو چه د دوه چارج شوو کروپه مینځ کي یي یو ه معینه فاصله پیداکړه او په دغه شکل د دواړوکرو ترمینځ یوه موازنه مینځ ته راغله . اماهم دغه شکل ورسته کاوندش ($Cavendish$ )د جاذبي قوی داندازه کولو لپاره په کاریوړ ($3-14$حصه). دکولمب نویوتجربو دا په اثبات ورسوله چي برقي قوه دزرو دچارج سره مستقیمه اود دوي ترمنځ دفاصلي سره معکوسه اړیکه لري لکه:

$$F \approx \frac{|q_1||q_2|}{r^2}$$

چه په دغه فورمول کي $F$ د دواړو چارجونو دقوو مقدار دي ،چه د دواړو چارجونو لخوا په یواو بل باندي واردیږي، $q_1$ او $q_2$ چارجونه او $r$ د دوي ترمینځ فاصله ده.

دچارجونو متقابل عمل په یو مستقیم خط کې د دوي د اړیکي باعث ګرځي . دنیوټن دریم قانون سره سم هغه قوه چي د $q_1$ چارج یي په $q_2$ چارج وارده وي مساوي ده دهغه قوي سره چي د $q_2$ چارج یي په $q_1$ چارج وارده وي خو جهتونه یي سره مخالف دي.




۱-۸ شکل: دکولمب پیچي ترازو ښايي، کوم چه په ساینس کی دپاریس اکاډمی دپاره یو دهغه د **۱۷۸۵** کال دیاداشتو څخه ده.

ددي لپاره چي پورتنۍ رابطه په مساوات تبدیله کړو . نو یو ثابت چه $k$ دي وراضافه کؤو چه د کولمب دثابت په نوم یادیږي . نو ددي سره سم لیکو چه :

$$F = K\frac{|q_1||q_2|}{r^2} \qquad (1-2)$$

۱-۲ رابطه چه دکولمب د قانون په نوم یادیږي . په عمومي شکل د هغه چارج شویو زرو لپاره چي په پوره اندازي سره د دوي ترمینځ فاصلی په نسبت وړي وي استعمالیږي پس مونږ ویلي شو چه د ا قانون د نقطوي چارجونو لپاه استعمالیږي.

دکولمب دتجربو له مخي په ۱-۲ معادله کي د $r$ توان 2 دي او (2,0001 )نشی کیدلی د کتاب په ۳-۷ برخه کي مونږ ښولي ده چه دکولمب قانون دغیري مستقیمو تجربو پواسطه هم په لاس راتلي شي کوم چي ۱-۲ رابطي دشرحي له مخي 2 صحیح نه دي د

افرق لري د هغه 2 سره کوم چي ښايي د $1x10^{-16}$ څخه ډيرزيات دي دکولمب قانون دنيوټن د جاذبي د قانون سره ورته والي لري:

$$F = G\,m_1 m_2/r^2$$

کوم چه دکولمب د قانون دمنځ ته راتلو په وخت کي سل کلنه وه. دواړه دمعکوس مربع قانون څخه پيروی کوی د کولمب په قانو ن کي د $q$ چارج هغه کار سرته رسوي کوم چه د $m$ کتله د نيوټن دجاذبي په قانون کي سر ته رسوي، اما يو فرق چي د دوي ترمينځ شته هغه دادي چه د جاذبي قانون (نيوټن قانون ) هميشه ديوبل ترمينځ د جذب قوه په يو او بل وارده وي ولي د کولمب په قانون کي د علامو په نظر کي نيولو سره که علامي مختلفي وي نو دجاذبي قوه اوکه علامي يوشان وي نو د دافعي قوه مطالعه کيږي.د S.I په سيستم کي $K$ په دغه ډول ښودل کيږي.

$$K = \frac{1}{4\pi\epsilon_0} \qquad (1-3)$$

ددغه ضريب استعمال ددغه رابطي په ورته شکل کي شايد ، د الکترومګنيتزم په قانو ن کي اسانتيا راولي، کومه رابطه چي دکولمب دقانون نه ډيره استعماليږي. $\varepsilon_0$ د برقي ثابت په نوم يادېږي .د دغه رابطي مقدار دنور دسرعت دمخي ټاکل کيږي لکه څنګه چي په ۳۹ څپرکی کي مو پري بحث کړي ددغه ثابت $\epsilon_0$ صحيح قيمت عبارت دي له:

$$\epsilon_0 = 8.85418781762 \times 10^{-12}\ C^2/N.m^2$$

چی دکولمب د $K$ ثابت قيمت ته ورته دي(ددري مهمو شکلونو لپاره ):

$$= 8.99x10^9\ N.m^2/C^2\ k\ = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}$$

د دغه ضريب په اضافه کولو سره دارابطه په دي شکل ليکل کيږي:

$$F = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}.\frac{|q_1|q_2|}{r^2} \qquad (1-4)$$

کله چي $k$ پورتني قيمت ولري نوواضح ده چي $q$ په کولمب، $r$ فاصله په متر، نو قوه په نیوټن $N$ سره حسابیږي. دکولمب د قانون عمده خاصیت د قوي عمل په یو او بل باندي دي دا قانون چي د کوانټوم په فزیک کي په دقیقه توګه لوستل کیږي.

۱: دغه برقي قوه د الکترونونو دټړون باعث کیږي د هغه دهستي سره

۲: دغه قوه دمالیکولونو دټړون باعث کیږي په خپل مینځ کي

۳: دغه قوه د اتومونو او مالیکولونو ترمنځ د رابطي باعث کیږي ترڅو چي مایع او جامد اجسام تري لاس ته راشي.هغه ډیری قوی ، پرته له جاذبي قوي نه چي مونږ یي هره ورځ په تجربو کې زیاتی استعمالو برقي قوي دي.

۱-۲ نمونوی مسئله: په ۱-۱ نمونوی مسٔله کې مونږ وکتل دوه وړي زري چي یوه یی مثبته او بله یي دمنفي چارج لرونکي وي او د هر یوي مقدار $1.37\ x10^5C$ وی فرضوؤ چي دا دواړه په دوه مختلف برخو سره ویشل شوي دي .اوددواړومقدارونه سره د $100\ m$ په فاصله کي قرارلری نو څومره دجاذبي قوه به د هری زری دپاسه عمل وکړی؟

**حـــل**:د۱-۴رابطی څخه لرو:

$$F = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}.\frac{|q|^2}{r^2} = \frac{(8.99 \times 10^9\ N.m^2/C^2)(1.37 \times 10^5 C)^2}{(100\ m)^2}$$

$$1.69 \times 10^{16}\ N$$

چي دغه مقدار قوه $2x10^{12}\ tons$ ده که چیري دغه چارجونه دمځکي دقطر په اندازه هم له یو اوبل څخه فاصله واخلي نو بیا به هم د دواړوترمینځ دجازبي قوه $120\ tons$ وي،او که مونږ د اسانی لپاره دغه جداء جداء زري په یو ه ځاي کي چي په یوه نقطه کي راټولی وي په نظر کي ونیسو اودلته د دوي ابعاد هم نسبت مځکي ته ډیرواړه فرض کړو ،که چیري داسي وکړاي شو نو دوي به د هغه قوي په واسطه چي د دوي ترمینځ ده په یو خاص شدت سره جداء شي، ددغه نمونوی مثال په مرورسره مونږ نشو کولي چي د برقي قوواصلي خاصیت سره بیي ډیره اشتباه وکړو، که چیري تاسي د یو معین چارج د

راویستلو کوشش د یو جسم څخه وکړي. نو یوه غټه کولمبي قوه به مینځ ته په اتومات شکل راشي او په دي کوشش کي به وي چي دغه چارج بیرته دجسم په لوري کش کړي.

**۳-۱مثـــال**:دهایدروجن داتوم ، نیوترون او پروتون ترمنیځ د r متوسطه فاصله مساوي ده $5.3 \times 10^{-11}\ m$ سره:

$a$ـ د دوي ترمینځ الکتروستاتیکي قوه څومره ده ؟

$b$ـ او ددوي ترمینځ د جاذبې قو ه په متوسط ډول څومره ده ؟

**حـــل**: $(a)$ د الکتروستاتیکي قوي لپاره د۱-۴رابطی څخه لرو:

$$F = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}.\frac{e^2}{r^2} = \frac{(8.99 \times 10^9\ \ N.m^2/C^2)(1.60 \times 10^{-19}C)^2}{(5.3 \times 10^{-11}\ m)^2}$$

$$= 8.2 \times 10^{-8}\ N$$

اګر چي داقوه هم ډیره وړه ده ( چي دغه قوه دګرد دیوي زري وزن په اندازه ده ) او $10^{23}\ \ m/sec^2$ په اندازه تعجیل تولیده وي.

$(b)$ دجاذبې د قوي لپاره مونږ لرو چي:

$$F_g = G\frac{m_e m_p}{r^2}$$

$$= \frac{(6.67 \times 10^{-11}\ \ N.m^2/kg^2)(9.11 \times 10^{-31}\ kg)(1.67 \times 10^{-27}kg)}{(5.3 \times 10^{-11}m)^2}$$

$$= 3.6 \times 10^{-47}N$$

مونږګورو چی د جاذبې قوه د الکترو ستاتیک قوي څخه د $10^{39}$فکتور په اندازه کمه ده.

او دجاذبې قوه ډیره وړه او همیشه جاذبه ده چي دکشش په واسطه کولي شي، چي ډیري غټي غټي کتلي مینځ ته راوړي مونږد دغه مثال لپاره د ستوروا وکهکشان جوړښت وړاندي کوو. چی دغه غټي د جاذبې قوی دالکتروستایتک قوي دمینځ ته راوړلو باعث ګرځي، او له بل طرفه دغه قوه د دوؤ یو شان علامه لرونکو چارجونو ترمینځ ده اما

داممکنه نه ده چې یو مقدار چارجونه سره په یو ځاي راټول او په یو ځاي کې یې متمرکز کړو که څه هم منفي اویا مثبت چارجونه وي مونږ باید همیشه په لویه پیمانه دوه قسمه، په مختلفو علامو سره چارجونه باید ولروترڅو یوبل سره خنثي کړاي شي اوهغه چارجونه چه مونږیې روزمره ژوند کې تجربه کوو، همیشه په دغه مسایلو کې سرګردانه یوچې توازن برقرار کړي.

۱-۴مـــثال:

په کې دي د دوؤ پروتونونوترمینځ $26\ P^+$ شعاع لري او $m$ $4 \times 10^{-15}$ داوسپنې داتوم هسته چې څومره قوه تاثیر کوي که چیري د دوي ترمینځ فاصله دشعاع په اندازه وي؟

حـــــل:-۱-۴ رابطې څخه مونږ لرو چې:

$$F = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{e^2}{r^2} = \frac{(8.99 \times 10^9\ \mathrm{N \cdot m^2/C^2})(1.60 \times 10^{-19}\ \mathrm{C})^2}{(4 \times 10^{-15}\ \mathrm{m})^2} = 14\ \mathrm{N}.$$

ډیره غټه الکتروستاتیکي دافعه قو ه چې د $3\ lb$ نه هم ډیره ده او په یوه پروتون باندې عمل کوي باید چې د هستې دجاذبې قوي سره مساوي امامخالفه وي چې پروتون دهستې سره وتړي دغه قوه چې ساحه یې ډیره کمه ده او دهستې نه بیرون نه حس کیږي، چې په هسته کې دهستوي مربوطه قوی په نوم بلل کیږي

دکولمب قانون د وکتور په شکل کې:

تر اوسه پوري مونږ فقط قوي دمقدار په باره کې خبري کولې چې یوی چارج شوي زری په بله باندي تاثیر کاوه. اوس مونږ غواړو چې دکولمب قوه د وکتور په واسطه وښایو، که دا قوه مونږ په وکتور کې وښایو نو په وکتور کې داقوه جهت هم لري او دغه جهت د چارجونودعلامې له مخې تعینیږي لکه څنګه چې د ۱-۹ شکل څخه څرګندیږی، که چیري مونږ د $q_1$ او $q_2$ نقطوي چارجونه ولروچې د $q$ په فاصلې جداء شوی وي اود یوی لحظې لپاره داسې فکر وشي چې دواړه یو شان علامې لري نو دا دواړه یو بل سره دفع

کوي، راځي هغه قوه چي داولی ذری نه په دوهمی ذری باندي وارديږي پيداکړو کومه چي مونږ يي دهميش لپاره د $\overrightarrow{F_{12}}$ په سمبول ليکو او $\overrightarrow{F_{12}}$ وکتور د ( 1 ) زري څخه ( 2 ) زري په لوري ښوول کيږي . که چيري د چارجونو ځايونه سره تبديل کړو نو فقط له يو جهت نه به بل جهت ته د وکتور جهت اوړي .که چيري دواړه چارجونه يوشان علامه ولري نو قوه به يي دافعه قوه وی چي په $a$۱-۹ شکل کي ښودل شوي او برابره ده $\overrightarrow{F_{12}}$ سره او که دواړه چارجونه مخالفي علامي ولري د $\overrightarrow{F_{12}}$ قوه دجذب قوه ده چي په $b$۱-۹ شکل ښوول شوي او د $\vec{r}_{12}$ په مخالف لوري کي ده. مونږ داقوي داسي ښايو :

$$\vec{F}_{12}) = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{q_1 q_2}{r_{12}^2}\hat{r}_{12} \qquad (1-5)$$




۱-۹ شکل: (**a**) $q_1$ او $q_2$ دوه نقطوي چارجونه د يو شان علامي لرونکي دي چه مساوي او مخالفه دافعه قوه يو په بل وادريده وي. د $\vec{r}_{12}$۱ په موازی وکتور د اول چارج نه د دويم چارج په لور ښودل کيږئ. د **ŕ12** واحد وکتورد $\vec{r}_{12}$ دجهت ښودونکي دي.نوټ: بايد وو وايو چه د $\vec{F}_{12}$ هم جهت دی د $\vec{r}_{12}$ سره. (**b**):دوه چارجونه دمخالفو علامو لرونکي دي او په يو بل باندي دجاذبي قوه وارده وي نوټ: بايد و وايو چه د $\overrightarrow{F_{12}}$ هم جهته نه د ی د $\vec{r}_{12}$ سره.

دلته $r_{12}$ د $\vec{r}_{12}$ وکتور دمقدار ښوونکي دي. $\acute{r}_{12}$ واحد وکتورد $\vec{r}_{12}$ دجهت ښوونکي دي چي هغه عبارت دي له :

$$\hat{r}_{12} = \frac{\hat{r}_{12}}{r_{12}} \qquad (1-6)$$

مونږ د ۱-**۵** رابطي مشابه د جاذبي قوه د **۱۴**-۲او **۱۴**-**۳** رابطو په واسطه مطالعه کوو اویو بل شکل چي د۱-۹ شکل نه په لاس راځي د نیوټن د دریم قانون سره سم چه په دغه قانون کي هغه قوه چي د اولی زری په واسطه په دوهمه زره واردیږی $\vec{F}_{21}$ ده چی د $\vec{F}_{12}$ مخالفه ده چه په دي شکل ښودل کیږي :

$$\vec{F}_{12} = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{q_1 q_2}{r_{21}^2}\vec{r}_{21} \qquad (1-7)$$

دلته $\acute{r}_{1.2}$ واحد وکتوردي کوم چي داولی زري څخه دوهمي زري پوري دجهت ښوونکي دي هغه شاید هغه وکتور واحد وی چی ددوهمی زری جهت چی دکواردینات په مبدا ء کې د اولی زری په موقیعت کې واقع شویدی د کولمب دقانون وکتوري شکل یو ښه شکل دي ځکه د قوی دمقدار سره سره دهغي جهت هم مونږ ته ښايي، که څه هم داقوه جاذبه او یا دافعه وي د وکتور په شکل سره د قوی ښودل ډیرښه اهمت لرونکي دي، او هغه هم د دوه څخه د ډیرو چارجونود مطالعی لپاره، او په داسي حالت کي د ۱-**۵** معادله د هري جوړي چارج لپاره استعمالیږي.او مجموعي قوه په هر یو ه چارج باندي کولاي شو د قوو دوکتورنو دجمع څخه پیداکړو چي په هر چارج یي وارده وي د مثال په توګه په اولی زری باندي قوه دارنګه ده:

$$\vec{F}_1 = \vec{F}_{12} + \vec{F}_{13} + \vec{F}_{13} + \vec{F}_{14} + \cdots, \qquad (1-8)$$

په دغه رابطه کي $\vec{F}_{12}$ د دوهمي زري نه د قوي واریدیدل دی په اوله زره باندي او $\vec{F}_{1.3}$. د قو ي واریدیدل دی ددریمي زري نه په اوله زره باندي، ۱-۸ معادله د قوود مجموعي ښودونکي ده په الجبري شکل باندي دا رابطه داسي تشریح کولي شو چه د هري زري د قو ي مطالعه په اولي زري په جلاجلا صورت سره وشي او وروسته باید د هغو یوه مجموعه پیداشي. هیڅ یو چارج د بل لپاره کو م مشکل نه پیښوي.

**۵-۱ نمونوی مسله:**

د۱-۱۰ شکل څخه څرګندیږي چه دري چارج داره زرې موجودی دي چه دقوؤ په واسطه ئی نیول شوی محل ئی نه دی ښوول شوی ،هغه الکتروستاتیک قوه به څومره وی چه دا دوه چارچونه ئی په دریم چارج واردوی.او نور هغه قوه چه په اول چارج $q_1$ باندي عمل کوي پیدا ییي کړي ؟.

$$q_1 = -1.2\mu C\ , q_2 = +3.7\mu C\ \ , q_3 = -2.3\mu C\ , r_{12} = 15cm$$
$$r_{13} = 10cm, \theta = 32^{\circ}$$

**حـــل** :دا مثال د قانون د تطبیق د استعمال لپاره غوره شوی دی مونږ د هر څه د مخه دهغه قوؤ مقدار محاسبه کوو ،کومه چي $q_2$ او $q_3$ زره یي په $q_1$ زره وارده وي .مونږ دچارجونو مقدارپه ۱-**۵** معادلي کی وضع کوو:

$$F_{12} = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{|q_1||q_2|}{r_{12}^2}$$
$$= \frac{(8.99\times10^9\ N\cdot m^2/C^2)(1.2\times10^{-6}\ C)(3.7\times10^{-6}\ C)}{(0.15\ m)^2}$$
$$= 1.77\ N.$$

د $q_1$ او $q_2$ چارجونه دمختلفو علامو لرونکي دي نو هغه قوه چي د $q_2$ چا رج په $q_1$ چارج وارده وي جاذبه قوه ده له دي امله د $\vec{F}_{12}$ جهت د ۱-۱۰شکل ښيي لورته دي مونږ همدارنګه لرو :

$$F_{13} = \frac{(8.99\times10^9\ N\cdot m^2/C^2)(1.2\times10^{-6}\ C)(2.3\times10^{-6}\ C)}{(0.10\ m)^2}$$
$$= 2.48\ N.$$

دا دواړه قوي یو شان منفي علامي لري نوهغه قوه چي د $q_3$ څخه په $q_1$ عمل کوی دافعه قوه ده. پس د $\vec{F}_{13}$مسیر۱-۱۰ شکل په شان دی او د $\vec{F}_1$ نتیجوی قوه چی په$q_1$ عمل کوی د **۲۵**-۸ معادلي دترکیب کوونکو اجزاء سره مطابقت لری نو:

$$\vec{F}_{1x} = F_{12x} + F_{13x} = F_{12} + F_{13}\sin\theta$$
$$= 1.77\ \mathrm{N} + (2.48\ \mathrm{N})(\sin 32^\circ) = 3.08\ \mathrm{N}$$



**۱-۴شکل:۱-۵** نمونوی مثال:ددری چارچونو **عمل** اوعکس **العمل** چی دری جوړی ئی یو پر بل وارده وی ،دلته دوه قوی ښودل شوی په $q_1$ **عمل** کوی.

او

$$F_{1y} = F_{12y} + F_{13y} = 0 - F_{13}\cos\theta$$
$$= -(2.48\ \mathrm{N})(\cos 32^\circ) = -2.10\ \mathrm{N}.$$

دمرکبوله مخي تاسي کولاي شي د $\vec{F}_1$مقدار $3.73\ N$ وښايست چي وکتوري ئی د $X$ د محور سره د $-34^\circ$ زاويه جوړه وي.

د۱-۵ د چارج متمادی توزیع( $\boldsymbol{Continuous\ charge\ distribution}$ ):

تراسه پوري مو دهغه قوومحاسبه چي د نقطوي چارجونو څخه لاسته راغلي وي مطالعه کړی اګر چي ډيرځله هغه برقي قوي چي په چارج لرونکي جسمونوعمل کوي چي دهغه اجسامو شکل ميلو ، صفحو يا جامد وي او دلاډيري ساده ګی په خاطر مونږدا اجسام د عايق په شکل فرض کووچی چارجونه ئی په سطحه اويا په حجم کي خپاره وي نو د چارجونومتمادی توزيع لاسته راځي.

۱-۲شکل دهغو قوو ښودونکی دی چي ديوه چارچداره ميلي په واسطه په بلي باندي عمل کوی دکولمب قانون صرف دنقطوي چارجونولپاره د اجراوړدي نومونږ نشوکولاي دهغه قوولپاره چي دميلي د پاسه عمل کوي هغه پکاريوسو ولي کولاي شو چه ميلی

داسی تصورکړو چه دنقطوی چارجونوپه واسطه پوښل شوی دی.نو پس دکولمب قانون دهغې لپاره پکاروړلي شو چي ديوي میلي نقطوي چارج دبلي میلي په هر نقطوي چارج باندي عمل کوي مګر دغه تصور موضوع نوره هم پیچلي کوي ، هر کله چي میله فقط $Inc$یو کوچني مقدار چارج انتقال کړي نو لازمه ده چي $10^{10}$ نقطوی چارجونه دهري میلي د پاسه په نظر کي ونیسو مګر ددي پرځای د فرانکلین نظرئي ته مراجعه کوؤ اود چارج خاصیت په دومداره شکل په نظر کي نیسو.

اساسي پروسه په داسي ډول ده چي چارچونه په نهایت کوچنیو اندازو باندي تقسیموو څرنګه چي هر یو ددي کوچني مقدارونوڅخه دعالي ریاضي په واسطه د عاملي قوي مجموعي مقدار محاسبه کوو پداسي حال کي چي $q$ چارج لرونکي جسم وي او هغه په کوچنیو اندازو د $dq$ باندي تقسیم کړو داچي هریو ددي مقدار څخه د اوږدوالي ،مساحت او حجم لرونکي دي.د اوږدوالي مساحت او حجم ښوونکي داسي دي چي چارجونه یو بعدي ،دوه بعدي،اودري بعدي مونږ په نظر کي نیولي دي، $dq$ ددي عناصرو دچارچ په حیث اوکثافت یي هم په نظر کي نیسو چي اوږدوالي ،مساحت او یا حجم باندي د چارجونو دتوزیع ښودونکي دي اود اکثره مسایلو لپاره چارچونه دجسم په سطحه یونواخت(یورنګه ) تقسیم شوي وي.دا په دي معني چي دچارجونو کثافت د جسم په ټولونقطوکي مساوي دي ،اوپه بعضي حالاتو کي چارچونه صرف په یو بعد کي خپاره شوي د ي لکه نازکه چارجداره میلي چي په۱-۲ شکل کي ښودل شوي دي نو په دي صورت کي د چارجونوخطي کثافت په نظر کي نیسو ، $\lambda$ دچارج مقدار په واحد د طول کي دی په داسي حال کي چي اساسي واحد یی $c/m$ دي دمیلي یوه کوچني برخه چي د $dx$ په اندازه اوږدوالي لري اود $dq$ چارج لرونکي ده دلاندي رابطي په واسطه محاسبه کیږي.

$$dq = \lambda . dx \qquad (1-9)$$

هرکله چي میله یو نواخت چارج ولري اود $q$ چارج دهغي په اوږدوالي کي مساویانه تقسیم شوي وي په دي صورت کي دچارج کثافت د لاندي فورمول پواسطه محاسبه کیږی$\lambda = q/L$ دمثال په ډول یوه میله چي اوږدوالي یې $L = 0.12m$ اوچارج یي

$q = 5.4 \times 10^{-6}\ C$ دي په نظر کي نيسو .نو په دي صورت کي یی خطی کثافت عبارت دي له:

$$\lambda = q/L = 4.5 \times 10^{-5}\ \ C/m$$

په داسي حال کي چي د میلی یوه برخه د $dx = 1.0\ mm$ اوږدوالي اود $dq$ د کوچني چارج لرونکي وي کولي شو چي په لاندي ډول يي محاسبه کړو:

$$\lambda . dx = 4.5 \times 10^{8}\ \ C$$

که چیري چارچونه د دوه بعدو په امتداد باندي خپاره شوي وي لکه هغه سطح چي د

۱-۳شکل لري نو په دي حال $dq$ د سطحي چارج په حیث ارائه کيږي( $\sigma$ چارچ په واحد د سطحه کي ) چي د $S.I$ په سیستم کي یي واحد $C/m^2$ دي. د $A$ د مساحت یو ه کوچني برخه چي د $dA$ مساحت لرونکي ده او د $dq$ چارج لري . د لاندي رابطي څخه لاسته راځي.

$$dq = \sigma\ dA \qquad\qquad (1-10)$$

هرکله چي د $q$ چارج په یو نواخت ډول د جسم د $A$ په سطحه کې خپور شوي وي ،په دي حال کي لرو:

$$\sigma = q/A$$

همدارنګه چارج کولي شي چي په ټول جسم کي په دري بعدي شکل باندي خپورشي .نوپه دي حالت کي د چارج د حجمي کثافت څخه استفاده کوو (ρ دچارچ مقدار په واحد دحجم کي) چي د SI په سیستم کي یي واحد $C/m^3$ دي ، نو په دي صورت کي د جسم دیوی کوچنۍ برخي حجم $dv$اود $dq$ کوچني چارج لرونکي دي

$$dq = \rho\ dV \qquad\qquad (1-11)$$

هر کله چي د $V$ په حجم کي د $q$ چارج په ټول جسم کي خپورشي:

$$\rho = q/V$$

ددي مفاهيمو دتشريح لپاره هغه افادي دهغه قوۀ لپاره چي د دوامداره چارچونودتوزيع په واسطه د $q_0$ نقطوي چارج باندي عمل وکړي محاسبه کوويي ، د هغه روشونو انکشاف به ممکن وي چي عاملی قوي د دوامداره چارجونود توزيع په واسطه او دبلي توزيع په واسطه محاسبه کوو بي ، په نقطوي چارج باندي دعاملوقوو د پيداکولو پروسه د دوامداره چارجو دتوزيع په واسطه لاند ي مراحل لري:

۱- فرض کوو چي د دوامداره چارچونو توزيع په يو زيات شمير کوچني عنصري چارچونو تقسيم شوي ده.

۲- دي کوچنی چارجداره عناصرو د جملي څخه يو اختياري عنصر انتحابۀ اوهغه د ۱- ۹ معادلا ؤو په واسطه ارائه‌کوو. چي داد چارجونو خپريدل په خطي، سطحي ،او حجمي سيرپوري اړه لري.

۳- په دي خاطر چي $dq$ بي نهايته کوچني دي. مونږ کولي شو چي هغه دنقطوي چارج په حيث قبول کړو. په دي وخت کي عامله قوه د $d\vec{F}$ چي د $dq$ په طرفه عمل کوي ،دکولمب دقانون په واسطه داسي ارائه کولي شو ،يعني(۱-۴ ) معادله کی:

$$dF = \frac{1}{4\pi\varepsilon_0}\frac{|dq||q_0|}{r^2} \qquad (1-12)$$

$r$ د $dq$ او $q_0$ چارجونو ترمنځ فاصله ده

۴: مجموعي قوه د بي نهايته کوچنيو قوو دجمع کولوڅخه لاسته راځي.چي دانتي ګرال نيولو

سبب کيږي.دعلايمو اوموقعيتونو په نظر کي نيولو سره د $dq$ او $q_0$ جهت د $d\vec{F}$ لخوا تعينيږي

$$\vec{F} = \int d\,\vec{F} \qquad (1-13)$$

ددي انتي ګرال دمحاسبي لپاره باید په نظر کي ونیسو چي د $dq$ کوچني چارج لرونکو عناصر و لپاره ممکن دي چي د $d\vec{F}$ کوچنۍ قوي په مختلفو جهتونو کی لاسته راوړو حقیقتا ۱۳-1 معادلي او لاندي دري معادلي د $\vec{F}$ دري ګوني اجزاء دي

$$F_x = \int dF_x \quad , \quad Fy = \int dFy \quad , \quad F_z = \int dF_z \qquad (1-14)$$

## د یونواخت چارج خط:

۱-۱۴شکل یوه نازکه میله چی د $L$ اوږدوالی لری راښاي چي د $z$ د محور په امتداد قرارلری او د $q$ مثبت چارج چي پکي په یو نواخت ډول خپورشوي دي انتقالوي چي دخطي چارج کثافت يي عبارت دي د $\lambda = q/L$ څخه ، مونږغواړو هغه قو ه پیداکړو چي دمیلي د طرفه د $q_0$ مثبت نقطوي چارج باندي عمل کوي داسی موقیعت لری چی دمیلي په نیمایی عموده ده (د $y$ دمحور مثبت جهت کی) $y$ فاصله ده د هغه د مرکز څخه. شکل هغه نتجه چي مونږد(1) (2)،(3) مرحلو په روشونو کي انجام کړي دی راښایی.غواړو چي میله د $dz$ په کوچنیو اوږدوالو وویشو اودچارج یو اختیاري عنصر $dq = \lambda\, dz$ چي موقیعت یي د $z$ دفاصلي په اندازه دهغي د مرکز څخه دي او د $d\vec{F}$.یوه قوه چي په $q_0$ باندي عمل کوي د لاندي رابطي څخه لاسته راځي:

$$dF = \frac{1}{4\pi\varepsilon_0}\frac{q_0\, dq}{r^2}$$

د $d\vec{F}$ قوي جهت په شکل کی ښودل شوي دي ، لیدل کیږئ د $x$ په امتداد د $d\vec{F}$ جز نشته دی(په صفحه عموده ده ) $F_x = 0$ ده پس په دي استدلال سره کولي شو چي $F_x = 0$ دي د $dq$هر عنصری چارج لپاره چی د $z+$ په فاصله کي قرار لري هلته بل چارج شته چي د $z-$ په فاصله کي قرار لري کله چی مونږ ددی عنصری چارجونو ټاکلی قوی د $z+$ اود $z-$ په فاصلو کي جمع کړو مونږ د $z$ ترکیب کوونکی اجزاء چی مقدارئی مساوي دي مګر داچي جهتونه يي مخالف دي پیدا کوو ، چه الجبري مجموعه يي مساوي په صفر ده په دي خاطرچي $q_0$ چارج دمیلي دمستوی په منځ کي قرار لري.ددي دخنثیٰ سازی په خاطر

دهغه چارجونو لپاره چې مساوي مقدار اومخالف جهتونه لري دميلي په امتدادپه داخلی کې واقع کيږي.اوس ددې څخه نتيجه کيږی چې $\overrightarrow{F}$ مساوي په صفر کيږئ $F_z = 0$




۱-۱۱ شکل.

$q_0$ چارج باندې ديو نواخت چارج لرونکي ميلی دقوي دمقدار د پيداکولوپه خاطر بايد د $q$ چارج په ميله کې د $dq$ دکوچنيو مقاديرو په حيث انفرادي په نظر کې ونيسو.

د قوو دترتيب کوونکو اجزاو دجملي څخه صرف $F_y$ باقي پاتې ده .چې بايد محاسبه شي، بناء په ۱-۱۱ شکل کې معلوميږي $dF_y$ مقدارمساوي دی $dF_y = dF\ cos\ \theta$ سره ددې رابطو څخه په ګټه اخستنه $dq = \lambda dz$ ، $r^2 = y^2 + z^2$ په لاس راوړو:

$$dF_y = dF\cos\theta = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{q_0\lambda\,dz}{(y^2+z^2)}\frac{y}{\sqrt{y^2+z^2}}$$

$$F_y = \int dF_y = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\,q_0\lambda y\int_{-l/2}^{l/2}\frac{dz}{(y^2+z^2)^{3/2}}.$$

دانتي ګرال محاسبی ته نظر اچوو بايد په نظر کې ولرو چې $y$ ثابت دي په لاس راوړو چې:

$$F_y = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{q_0 q}{y\sqrt{y^2+l^2/4}} \qquad (1-15)$$

داقوه د $y$ په مثبت جهت کې ده کله چې $q_0$ او $q$ مثبت وي که $q_0$ نقطوی چارج د $xy$ مستوي بلې نقطې ته انتقال شي .دقوو محاسبه هم تغير کوي . (دډير وضاحت لپاره

لاندي تمرين ته مراجعه وکړی ) ایادویلو وړ ده چي مشابه افادي په دي خاطر محدودی دی چی په دي ډول یي سنجش کړو . فرض کوو چي $y \ll l$ څخه دي پدي حالت کي قوي په لاندي معادله کي افاده کوو:

$$F_y \approx \frac{1}{4\pi\varepsilon_0}\frac{q_0 q}{y^2}$$

چي دا یوائینی رابطه ده .دیو نقطوي چارج څخه بل نقطوي چارج باندي د قوو دمحاسبي لپاره هر کله چي دمیلي فاصله ډیره زیاته شي .اویا خپله میله کوچني وی .په دي صورت کي دنقطوي چارجونو بحث په نظر کي راځی.

د چارج یوه حلقه:

۱-۱۲ شکل د $R$ په شعاع یو باریکه حلقه رانبایي چي د $q$ مثبت چارج پکي په یو نواخت ډول توزیع شوي دي همدارنګه هغه د $\lambda = \frac{q}{2\pi R}$ دخطي چارج کثافت انتقالوي مونږ غواړو هغه قوه پیدا کړو چي د حلقی پواسطه عمل کوي د $q_0$ په یو مثبت نقطوي چارج چي د حلقی د محور دپاسه ( کوم چي د $z$ د محور په مثبت جهت کی انتخاب شوي ) $z$ د حلقی د مرکز څخه فاصله ده. د حلقی څخه یو کوچني عنصر د $dq = \lambda R\boldsymbol{\Phi}$ چي د $R\Phi$ په فاصله کي واقع دي. د $dF$ هغه قوه چي د $dq$ پواسطه د په $q_0$ عمل کوي عبارت ده د:

$$DF = \frac{1}{4\pi\varepsilon_0}\frac{q_0 dq}{r^2} = \frac{1}{4\pi\varepsilon_0}.\frac{q_0\lambda R d\Phi}{(z^2 + R^2)}$$

مونږ کولي شو چي مشابه استدلال یوازي د $\vec{F}$ د $z$ د اجزاؤ لپاره هغه چي صفر نه وي وکړو د حلقی د هر $dq$ عنصر لپاره هلته شاید د $dq$ بل مخلاف مساوي عنصري چارج د حلقی د مرکز سره مستقیماً په یو قطر شته والي ولري، کله چي ددي دوه عنصري چارجونو ټولي عنصری قوي په $q_0$ جمع شي د نورو ټولو اجزاو قوي په غیر د $F_z$ څخه شاید د منځه لاړي شي. $cos\theta = \frac{z}{r}$ سره مونږ پیدا کوو:

$$
\begin{aligned}
F_z &= \int dF_z = \int dF\cos\theta \\
&= \int \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{q_0\lambda R\,d\phi}{(z^2+R^2)}\frac{z}{\sqrt{z^2+R^2}} \\
&= \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{q_0\lambda Rz}{(z^2+R^2)^{3/2}}\int_0^{2\pi} d\phi.
\end{aligned}
$$

دا انتګرال د حلقی په چاپیر د $2\pi$ قیمت ورکوي چي د قوي لپاره یې اخیرنۍ نتیجه عبارت ده له:

$$F_Z = \frac{1}{4\pi\varepsilon_0}.\frac{q_0\,qz}{(z^r+R^2)^{\frac{3}{2}}} \qquad (1-16)$$

آیا دا نتیجه د اعتبار وړ ده که چیرته $q_0$ د $Z$ د محور په منفي جهت کي واقع وي ؟ (

**۱۵** تمرین وګورئ) مونږ کولي شو چي دا نتیجه ددي حالت د لیمټ لپاره چي

$z \to \infty$ او $z \ll R$ وي نو مونږ په لاس راوړو:

$$F_Z \approx \frac{1}{4\pi\varepsilon_0}\frac{q_0\,q}{z^2}$$

نو دا نتیجه هغه وخت ده چي مونږ د حلقی څخه ډیر لري یو. داسي ښکاریږي چي یو نقطوي چارج دی.یادونه: همدارنګه $F_Z = O$ دی، هغه چي $Z = 0$ وي دا معقوله ده ځکه د حلقی په مرکز کي د $q_0$ چارج شاید په مساوي ډول هري خواته د هغه د عنصري چارجونو پواسطه چي ددي حلقی د پاسه جوړ شوي تیله کیږي.



۱۲-1 شکل: یوه منظمه چارج شوي حلقه ده د $q$ د نقطوي چارج دپاسه د قوي د پیدا کولو لپاره مونږ ګورو چي فقط د $dq$ په شان د زیاتو عنصري چارجونو څخه مرکبه ده.

د چارج ټیکلي یا **($Disk$)**:

۱۳-1 شکل د $R$ په شعاع یو دایروي ټیکلي $(Disk)$ چې د $q$ مثبت چارج یې د سطحي دپاسه په یو نواخت ډول تقسیم شوي او د $\sigma = q/\pi R^2$ د چارج سطحي کثافت لري، د $q_0$ یو مثبت نقطوي چارج د ټیکلي $(Disk)$ د محور دپاسه ( د $z$ د محور په مثبت جهت کي ) د $z$ په فاصله د ټیکلي د مرکز څخه واقع دي. د هغه قوي د پیدا کولو لپاره چي د ټیکلي $(Disk)$ پواسطه د نقطوي چارج لپاره عمل کوي مونږ غواړو چي د ټیکلي په داخل کې د حلقو یوه سلسله جوړه کړو چې چارج لري او شعاع یې $w$ ده چي د $dw$ ګنوالي په ۱۳-1 شکل کې ښودل شوي چې د: $dq = \sigma dA = \sigma(2\pi w dw) = 2\pi\lambda w dw$ څخه عبارت دي چي د $dF_z$ قوه یې چې په $q_0$ ددي حلقی پواسطه عمل کوي د ۱۲-1 معادلي پواسطه پید اکولی شو چي $q$ په $dq$ او $R$ په $Wz$ عوض شي نو:

$$dF_z = \frac{1}{4\pi\varepsilon_0}\frac{q_0(2\pi\sigma w dw)z}{(z^2+w^2)^{\frac{3}{2}}}$$

د ټولو حلقو د قوو د عنصرونو د انتیګرا ل د جمع څخه د صفر نه تر $R$ پوري لرو:

$$F_z = \frac{1}{4\pi\epsilon_0} q_0 2\pi\sigma z \int_0^R \frac{w dw}{(z^2+w^2)^{3/2}}$$

$$= \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{2q_0 q}{R^2}\left(1 - \frac{z}{\sqrt{z^2+R^2}}\right) \qquad (1-17)$$

یادونه: هغه انتیګرال‌چي $\int U^{-\frac{3}{2}} du$ شکل لري، ددي څخه په مستقیمه توګه یې مونږ حسابولي شو. څومره فرق به ولري دا معادله د $z < 0$ لپاره؟ (**۱۵** تمرین وګورئ) او $z \to \infty$ تاسي کولي شي. چي د بینوم انکشاف استعمال کړئ (وګورئ اوله ضمیمه چې د نقطوي چارج لپاره د کولمب د قانون څخه حاصلیږي) په دي دري مثالونو کي مونږ فرضوو چي هغه ټول مثبت دي که چیري هر یو یې نقطوي چارج یا اوږد جسم وي ( ولي

دواړه نه) چي د قوي په مخالف جهت کي منفي چارج انتقالوي وښاياست چي د ۱۱-۱ ځخه تر -۱۱۳ شکل پوري هغه څومره دي؟



**۱۳-1 شکل:** يوه دايروي صفحه **($Disk$)** چي يو نواخت سطحي کثافت انتقالوي هغه قوه چي $q_0$ په نقطوي چارج د $Disk$ د داخلي نازکه دايروي حلقې پواسطه واردېږي حسابيږي.

**۲-1** نمونوي مسئله:دوه دايروي ټيکلي چي $R = 5.0cm$ شعاع لري چي د مشترک عمودي محور په امتداد ،د $6.0\ cm$ فاصلي پواسطه جدا شوی دی دا ټيکلي مساوي ولي مختلف چارجونه لري چي د هغوي د سطحو دپاسه په يو نواخت ډول توزيع شوي دي انتقالوي، د $q$ څومره زيات چارجونه ضرور دي چي د ټيکلي ($Disk$) لپاسه، د يو ځوړند شوي د تيلو نازکه څاڅکي چي کتله يي $4x10^{-15}$ کيلوګرامه او چارج يي $e-$ وي په يوه نقطه کي چي د ټيکلي ($Disk$) د محور په امتداد او د هغوي ترمنځ په منځنۍ نقطه کي واقع وي.

ځـــــواب: که پورتنی ټيکلي ($Disk$) مثبت چارج شوي او ښکتني ټيکلي($Disk$) منفي چارج شوي وي وروسته دا څاڅکي پورتني ټيکلي ځانته جذبوي او ښکتني ټيکلي ئې دفع کوي ځکه د ټيکلو د صفحو په منځنۍ نقطه کي دی. دقوي مقدار يي $F_z$ په شان دي چي د ۱۷-۱ معادلي پواسطه څاڅکي د تعادل په حال کي دي پورته خواته اصلي برقي قوه $2F_z$ بايد د څاڅکي د وزن $mg$ سره برابره وي ددي دوو قوو د برابروالي او ځای لپاره ۱۷-1 معادله استعماليږي نو مونږ په لاس راوړو:

$$q = \frac{mg}{\frac{4e}{4\pi\epsilon_0 R^2}\left(1 - \frac{z}{\sqrt{z^2 + R^2}}\right)}.$$

د حلولو څخه يې مونږ $q = 35nc$ پيدا کوو . دا طريقه په ۱۹۰۲ ميلادي کال د مليکان پواسطه د الکترون د چارج د اندازه کولو لپاره چي په يو لړ تجربو يې پيل کړي وو او د چارج مقدار يې معلوم کړ استعمال کړي وه. (۲-2 سکشن وګورئ).

يو خاص حالت:

دلته يو خاص حالت د چارج د يو نواخت توزيع ،کومه چي د يو نقطوي چارج لپاره تلقی کيږي مونږ ته اجازه راکوي چي د کولمب قانون استعمال کړو د هغه د نقطوي شکله چارجونو لپاره ، دا هغه وخت واقع کيږي چي د چارج توزيع په يو شان کرو کي وي ، ولي د چارج حجمي کثافت امکان لري د شعاعګانو په تغير سره بدلون ومومي خو بيا هم د کثافت د منظموالي له امله په يوه باريکه قشر کې د هري شعاع لپاره يو شان وي.

لومړي مونږ په (۵-۱۴سکشن کي) يو باريکه کروي شکل ګورو مونږ د جاذبې قوي دوه خواصه چي د يو منظم کروي شکله قشر پواسطه په يو نقطوي قشره کتله عمل کوي وموند چي دا خواص عبارت دي له:

1. د قشر په داخلي زراتو کې دا قوه صفر ده.

او په خارجي ذراتو کې دا قوه دارنګه ده لکه د يو جسم په مرکز کې چي د هغه د قشر ټوله کتله راجمع شوي وي. د جاذبې د قوي او برقي قوی ترمنځ د تناظر قانون (دواړه $\frac{1}{r^2}$ سره رابطه لري)شته. مونږ ته اجازه راکوي چي د جاذبې او برقي قوو ترمنځ مشابهت جوړ کړو مونږ په يو نواخت قشر کې د جاذبې د قانون نتايج مستقيماً په برقي قوو باندي يې له ثبوته تطبيق کولي شو. دا د منظمو قشرونو د خواصو لپاره صحت لري لدي دوه مهمو نتايجو ثبوتونه د برقي قوو لپاره د ۵-۱۴ برخې د ثبوتونو سره عيناً متناظر جوړښت لري چې د جاذبې قوي لپاره ؤه.

د یو منظم جارج شوي کروي شکله قشر لپاره په ټولو داخلي نقطو کې، چې په هر ځای د قشر کې وي برقي قوه عمل نه کوي.
د یو منظم چارج شوي کروي شکله قشر یوه برقي قوه د قشر څخه بیرون په یوه نقطوي چارج باندي داسي عمل کوي لکه چې د قشر ټول چارجونه په خپل مرکز کې په یو نقطوي چارج کې یې راجمع کړي وي دلته د جاذبې او برقي قوو د حالتونو ترمنځ یو فرق وجود لري هغه دا چې د جاذبې قوه همیشه جاذبه ده لاکن برقي قوه کیدای شي جاذبه وي یا دفع کوونکي پس دا فرق د پورته دوه قاعدو په تبدیلولو کې د جاذبې څخه برقي قوي ته اثر نلري.
دا قاعدي کولې شو استعمال کړو ترڅو په لاس یې راوړ دیوي مربوطي نتیجې څخه چې هغه د اعتبار وړ وي د کروي چارج د توزیع لپاره فرضوو. چې مونږ د چارج په کروي ډوله توزیع چې د چارج حجمي کثافت $\rho$ یې وي د یوه لپاره ثابته یا د $r$ د شعاع ګانو د یو تابع په شان تغیر کوي. پس مونږ کولې شو وګورو چې کره د یو سیټ نازکه کروي ډوله قشرونو څخه چې هر قشر په یو نواخت ډول چارج شوي ترکیب شوی هغه چې د یو قشر د چارج کثافت د بل قشر د چارج د کثافت سره متفاوت دي بلکې د هر قشر مربوطه چارج په یو نوخت ډول توزیع شوي نو بیا کولې شو چې دا دواړه قاعدي د هر کروي قشر لپاره استعمال کړو، که چیري زمونږ امتحاني چارج د کري په داخل کې په یو ځای کې وي د قشر څخه بیرون د چارج د قوي عمل د اولې قاعدي پشان ندي دا نتیجه استعمال شوي وه د جاذبې قوي لپاره په ۴-۱۴ نمونه وي پوښتني کې. که چیرته امتحاني چارج د قوي څخه بیرون وي نو بیا هر قشر کولې شي چې ځای په ځای شوي وي د هغه مرکز د نقطوي چارج د مرکزپواسطه او همدارنګه ټوله کره کولې شو د هغه یو نقطوي چارج پواسطه ځای په ځای شوي وي، چې هغه برابري دي د کري د ټول چارج سره.
ددي دلیل لپاره هغه قوه چې یو اتوم د هستي پواسطه په خپل الکترونو عمل کوي، نشي کولې چې مونږ ته د هستي په داخل کی د مثبت چارج د توزیع په هکله عمومي معلومات راکړي. په هري کروي ډوله هسته کې د چارج کثافت

یوازي په $r$ پوري مربوط دي ، د ټول چارج توزیع د هغه قوو پشان ده چې د هستې ځخه بیرون په الکترون عمل کوي ولي کله کله د هغه اندازي څخه چې الکترون د هستو په داخل کې انحراف کوي مونږ ته پخپله د مثبت چارج توزیع په هکله معلومات راکوی

.

**۷-۱نمونوي مسئله:**

دیوټاکلي اتوم کروي ډوله هسته د ze مثبت چارج په یوحجم کي لری چی د $R$ شعاع لری. مقایسه یي کړی, دهغه قوي سره چې په الکترون عمل کوي او دهستې د داخل څخه د $0.5\ R$ په اندازه شعاع لری، همدارنګــه دهغه قوي سره چې دهستوشعاعي ئی $R$ ده:
$(\boldsymbol{a})$ :په کومو کي چې په خپل ټول حجم کي یي کثافت ثابت وي ؟او $(\boldsymbol{b})$ :دچارج دکثافت زیاتوالي یي مستیماً متناسب وي د $r$ دشعاع سره

ځـــواب: $(\boldsymbol{a})$:دیونواخته چارج شوهستو لپاره (کوم چې دزیاتو هستو دوضع سره ښه مشابهت لري دچارج حجمي کثافت یي:

$$\rho=\frac{q}{V}=\frac{Z_e}{\frac{4}{3}\pi R^3}$$

کله چې دالکترون شعاع $r$ مساوی $R$ وي$r=R$ ټوله هسته کیدای شی چی ځای په ځای شی د$q=ze$ د یونقطوی چارج په واسطه په خپل مرکز کې همدارنګه د $F(r)$ قوه د $r=R$ په صورت کې:

$$F(R)\ \ =\frac{1}{4\pi\varepsilon_0}\frac{ze^2}{\mathrm{R}^2}$$

کله چې دالکترون شعاع $r=R/2$ وی. چارج دټولو وړانګو لپاره دالکترون دپاسه قوه عمل نکوي(دکروي شکله قشرونو داولي قاعدي په واسطه) چارج د $\frac{R}{2}$ په داخل کي کیدای شي چي ځاي په ځاي شي د یو نقطوي چارج سره څومره چارج چې $\frac{\mathrm{R}}{2}$ په داخل کي دي ؟پس دکري حجم په $r^3$ پوري مربوط دي دحجم په داخل کي، د $r=\frac{R}{2}$ لپاره $=\frac{1}{2^3}$

$\frac{1}{8}$د کري حجم دي، همدارنګه چارج په داخل کي د $r = \frac{\text{R}}{2}$ لپاره $\frac{1}{8}$ د ټولي کري چارج دي او مونږهغه حسابولاي شو:

$$\frac{\text{F}(\frac{\text{R}}{2})}{\text{F(R)}} = \frac{1}{8}$$

(***b***):مونږکولاي شو دچارج کثافت د $\rho(r) = br$ په شان وليکو ،مونږ لومړي دتناسب دثابت $b$ قيمت پيداکوؤ، مونږ پوهيږو هغه ټول چارج چه دهستي دپاسه فقط عمل کوي $ze$ دي همدارنګه:

$$\int_0^R \rho dV = \int_0^R (br)4\pi r^2 dr = Ze$$

چيرته چی $dV = 4\pi r^2 dr$ دکروی شکله قشر حجم دی.دانتی ګرال څخه دبيرون کولو په صورت کی $b = {}^{Ze}/_{\pi R^4}$ پيداکوؤ.دکروي شکله قشر ددوهمي قاعدي لپاره مونږ $F(r)$ دهغه قوه چي مشابه ده د دواړو چارجود توزيع سره په هر حال $\text{F}\ \frac{\text{R}}{2}$ شايد د دواړوتوزيعو لپاره فرق لري. د $F(\frac{R}{2})$ دپيداکيدوپه صورت کي مونږضرورت لرو چي وپوهيږو چي $q'$ چارج دکري په داخل کي چي شعاع يي $\frac{R}{2}$ شته دي څومره دي؟پس هغه چارج چي $\frac{R}{2}$دوړانګي څخه بيرون دي په الکترون قوه نه وارده وي داچارج:

$$q' = \int_0^{R/2} \rho\, dV = \int_0^{R/2} \frac{Zer}{\pi R^4} 4\pi r^2\, dr = \frac{Ze}{16}.$$

د $r = \frac{\text{R}}{2}$ لپاره هغه قوه چي په الکترون د کري په داخل کي د $\frac{R}{2}$ په فاصله د $q'$ نقطوي چارج دپاسه چه په خپل مرکز کي ځاي په ځاي دي کولي شو په لاس راوړو، کومه يوه قوه چي $\frac{1}{16}$ د سطحي، دقوي ده راکوي:

$$\frac{F(\frac{R}{2})}{F(R)} = \frac{1}{16}$$

دانتیجه د $a$ دپاره دیو نواخته چارجداره کری دنتیجي سره ډیرفرق لري اګر چي داثابتوي چي هستي څخه بیرون الکترون د دوه توزیعي ترمنځ نه لیدل کیږي اوپه داخل کی الکترون کیداي شي واضع ولیدل شي.

اتومي الکترونونه کله کله کولاي شي چي هستونه نفوذ وکړي اوالکترون دهستي په داخل کي دتعجیل کوونکي په واسطه وسوځي دا دواړه میتودونه کیداي شي چي په هسته کي دچارج د توزیع په هکله مونږته معلومات راکړي، ددي تجربو یوه نتیجه هغه ده چي دډیروهستولپاره د چارج کثافت سره ډیرنږدي اویوشان دي. چي پروتونونه، د کولمب د دفع دقانون سربیره( کوم چي دهستي دسطحي څخه د هغوی شړولوانتظار لري) اوسره ددي چي دپرتونونوترمنځ هستوقوه شته( کوم چي هغه انتظارلري چي دهغوي دهستي دمرکزسره نږدي راجمع کړي) داپروتونونه په هستو کي په یوقوي غلظت (کثافت )سره توزیع شوي دي په غیر له دي داکثافت (غلظت)تقریباً دنوروهستو په شان دي چي هغه درندي هستي دي یانه، داحیرانونکي نتیجي دهستي داخلي، ډیرومهمو خواصو په هکله پوهه وړاندي کوي.

## ۱-۲ دچارج ساتنه(بقاء):

کله چي یوه ښیښه یي میله د وریښموسره وموښله شي په ښیښه یي میله باندي مثبت چارج پیداکیږي، شواهد په ګوته کوي چي دهغي سر ه برابر(مساوي )په وریښمو کي منفي چارج پیداکیږي، دارانښائی چي موښل دچارج دپیداکیدولامل نه دي فقط دیوجسم څخه بل جسم ته انتقالیږي اویوڅه ناڅه دجسم دبریښنادخنثۍ والي حالت زیانمن کوي.

دبریښنا دذخیره کیدونظریه د ډیرودقیقو تجربوڅخه لاسته راغلي چي داتجربي په ډیرولویوشیانو باندي، داتوم هستي اوابتدایي زور لپاره ترسره شوي دي اواثتثنائي

حالت په دوی کې پیداشوی نه دی. چې دبقاء(تحفظ)دنوروقوانینوپه شان دي لکه د مومنتم یا انرژی دبقاء دقانون ، مونږ دبرقی انرژی ذخیره کول داسی بیانؤ:

$$\sum q = constant \quad \text{يا} \quad q_i = q_f \qquad (25-18)$$

په هرجلا(عایق شوي)سیستم کي چي کوم عامل واقع کیږی په هغه کي اولني چارج داخرني چارج سره برابردي دبرینبناد ذخیره کولو یوښه مثال دادي کله چي یوالکترون ($-e$ =چارج)انتي الکترون یاپوزینترون ($+e$ =چارج)یوبل ته سره نږدي شي دغه دواړه زري یوبل له منځه وړي اوخپله پاتي انرژي تشعشعي انرژي د(2) ګاماوړانګو په شکل ښکاره کوي (الکترو مقناطیسی تشعشع دانرژي څخه غني ده او چارج نه لري):

$$e^+ + e^- \rightarrow \gamma + \gamma$$

اصلي چارج دتعامل څخه مخکي اووروسته په دو ړو واقعو کي صفردي اوچارج ذخیره کیږي، هماغه بي چارجه زري فقط دخنثیٰ ($\pi$میزون )په شان دخرابوالي له امله په $2\gamma$ دوه ګاما وړانګو بدلیږي:

$$\pi^{\circ} \rightarrow \gamma + \gamma$$

په نوموړي پروسه کي انرژي ذخیره کیږي ددي پروسي څخه مخکي اووروسته مکمل چارج د دوهم ځل لپاره  هم صفر پاتي کیږي. بل مثال نیوترون ($q = 0$)په پروتون ($q = +e$)الکترون ($q = -e$)جمع  ئی بله خنثیٰ زره په ($neutrino$)نیوترونو ($q = 0$)باندي بدلیږي:

$$n \rightarrow P^+ + e^- + v$$

مخکي اووروسته دخرابیدوپه دواړوحالاتو کي مکمل چارج صفردي اوچارج ذخیره کیږي. ځني تجربي ترسره شوي دي ترڅو نیوترون په پرتون بدل اوالکترون ورڅخه خارج نه شي چي داپروسه دچارج ذخیره کیدل زیانمنه کو ي خوداواقعه په لاس نه شوراوړي.

دیوالکترون $(q=-e)$خرابیدل یاپارچه کیدل په خنثیٰ زراتو کي لکه $(\gamma)$ ګاما وړنګي یا $(v)$ نیوترونوباندي منع یاناممکن دي دمثال په توګه:

$$e^{-}\rightarrow\gamma+v$$

ځکه په دي پروسه کي دچارج ذخیره کیدل زیانمن کیږي ددي پروسي دسرته رسولولپاره کوښښونه کامیاب نه دي ځکه که دغه عمل سرته رسیدلي نودالکترون کمترین عمر$(10^{23})$ کلونه کیده .دچارج دذخیره کیدلولپاره بل مثال د دوه داي تروم $(deuterium)$هستو $^{2}H$ (دروند هایدروجن ورته واي)یوځاي والي دي ، کوم چي ورځخه هیلوم جوړیږي احتمالي تعامل یي دا دي:



$$^{2}H+{}^{2}H\rightarrow{}^{3}H+p,$$
$$^{2}H+{}^{2}H\rightarrow{}^{3}He+n.$$

د داي تریوم $(deu\ terium)$هسته یوپروتون اویونیوترون لري ځکه د$e+$ یومثبت چارج لري دهایدروجن دایزوتوب هستي چي کتله یي (3) ده $H$ په شان لیکل کیږي اوتراي تیوم $(tritium)$په شان پیژندل شوي د$tritium$ هسته کي یوپروتون اودوه نیترونه دي نوځکه داهم د$e$+یومثبت چارج لري. په اولني تعامل کي خالص چارج هرلوري ته $2e+$ دي اوچارج ذخیره کیږي. په دوهم تعامل کي نیوترون چارج نه لري په داسي حال کي چي دهیلوم ایزیتوب هستي چي کتله یي 3 ده دوه پروتونونه لري نوځکه چارج یي $2e$+دي په دي تعامل کي هم چارج ذخیره کیږي دبرق ذخیره کیدل داپه ګوته کوي چي مونږهیڅ کله دانه شولیدلاي چي د $^{3}He$دجوړیدوپه حال پروتون اویا $^{3}H$دجوړیدوپه حال کي نیوترون خارج شي د چارجونوذخیره کیدل په پورته جمع کې دذرو په ټولوپیژندل شوو متقابلوعملونو کي په هرغیری استثنایي صورت کي لیدل کیږي.

## ځوځوابه پوښتني:

**۱-۱دالکترومګنیزم په هکله یو مقدمه:**

**۱-۲برقي چارجونه:**

1- د $A$ او $B$ دوه برقي چارجونه دیودبل سره دجذب په حال کي دي او $B$ د $C$ چارج سره ددفع په حالت کي واقع دي که د $A$ چارج د $C$ چارج سره په تماس کي شي نودغه چارجونه یوبل:

الف:جذبوي ب:دفعه کوي

ج:یوپربل تاثیرنه واردوي د:دځواب لپاره زیاتومعلوماتوته اړتیا ده

2: د $A$ او $B$ دوه چارجونه یوبل سره د جذب په حال کي دي اود $B$ چارج د $C$ دچارج سره هم دجذب په حالت کي واقع دي که د $A$ چارج د $C$ سره په تماس کي شي نودغه چارجونه یوبل:

الف: جذبوي ب: دفع کوي

ج:یوپربل تاثیرنه واردوي د:دځواب لپاره زیاتومعلوماتوته اړتیا ده.

3 : د $A$ او $B$ دوه چارجونه یودبل سره د دفع په حال کي دي اود $B$ چارج د $C$ دچارج سره هم ددفعی په حال کي واقع دي که $A$ د $C$ چارج سره په تماس کي شي نودغه چارجونه یوبل:

الف: جذبوي ب: دفع کوي

ج:یوپربل تاثیرنه ودارد وي د:دځواب لپاره معلوماتوته اړتیا ده

**۱-۳**هادی او عایق:

4: **۱-۳** که یوجسم A دمادي څخه جوړشوي وي او دهغه جسم سره چي د $B$ دمادي څخه جوړشوي دي وموښل شي وروسته $A$مثبت چارج او $B$ منفي چارج اخلي .که چیري یوجسم د $A$ مادي څخه جوړشوي وي دهغه جسم سره چي د $C$ مادي څخه جوړ شوي وي

وموښل شي وروسته د $A$ منفي چارج واخلي څه به واقع شي؟ که چیري یوجسم د $B$ مادي څخه جوړشوي وي هغه جسم سره چي د $C$ مادي څخه جوړشوي وي وموښل شي:

الف: $B$ مثبت چارج اخلي او $C$ مثبت چارجدارکیږي.

ب: $B$ منفي چارج اخلي او $C$ منفي چارجدارکیږي.

ج: $B$ منفي چارجیږي او $C$ مثبت چارجدارکیږي.

د: $B$ او $C$ دواړه منفي چارجدارکیږي.

5- که یوه مثبته چارجداره میله یوتوپ ته چی دعایق تارپه واسطه ځوړند ده شوي نږدي شي لیدل کیږی چي توپ دچارجدارمیلي په طرف کشول کیږي:

الف:توپ دچارج شوي میلي مخالف چارج لري.

ب:توپ په ابتداء کي خنثیٰ وه دچارجدارمیلي سره دنږدیوالي په حالت کي چارجداره کیږي

ج:توپ یوهادي دي.

د:توپ مثبت چارج نه لري نوکیداي شي خنثیٰ وی.

6:یوکروي شکله هادي توپ په تارچي دځمکي سره په تماس کي دي راځوړند شوي دي که چیر ي یوشي چي مثبت چارج لري دنومړي توپ سر ه نیږدي شي نوتوپ به:

الف:توپ به دچارج شي پرشاوخواجذب به شي.

ب:توپ به چارج شوي شي دفع کړي په هاغه وخت کي چي کله نیږدي شي.

ج:کوم تاثیربه ونه لري

7- یوکروي شکله هادي توپ دیوعایق تارپه واسطه راځوړندشوي دي که چیر ي مثبت چارج کروي شکله هادي توپ ته نیږدي شي نوتوپ:

الف:توپ به مثبت چارج ته نیږدي شي اوپرشاخوابه ئي وڅرخوي

ب:توپ به مثبت چارج نه لري شي او پر شا خوا به ئي ونه څرخيږي

ج:کوم تاثيربه ونه لري

**۱-۴د کولمب قانون:**

8: $q_1$ يونقطوي چارج چې دري مايکروکولمب دي د $q_2$ ديونقطوي چارج څخه چې $-6\mu C$ مايکروکولمب چارج لري د $d$ په فاصله يوله بل څخه جدا شوي دي

د $|\vec{F}_{21}| / |\vec{F}_{12}|$ نسبت عبارت دي له:

$\frac{1}{2}: A$ $1: B$ $2: C$ $18: D$

9: دوه فلزي توپونه چې هريويي دوه سوه پونډه وزن لري اويوله بل څخه ديومتر په فاصلي سره جدا شوي دي،چې دواړه توپونه د $q$ مشابه مثبت چارج لري کوم چارج به د دواړوفلزي توپونوترمنځ برقي قوه پيدا کړي چې هغه يونواخت اومقداريي ديوتوپ د وزن په اندازه وي:

$1 \times 10^{-14} C: (A)$ $1 \times 10^{-7} C: (B)$

$3 \times 10^{-4} C: (C)$ $1 \times 10^{-2} C: (D)$

10- دوه کوچني مشابه کروي شکله هادي زري چې يوبل سره د يومترپه فاصله کي موقيعت لري دغه کروي شکله زري کوچني مثبت چارج لري اوهغه قوه چې د دواړوترمنځ موجوده ده $F_0$ ده که چيري ديو کروي شکله هادي څخه بل کروي شکله هادي ته د نيمايي په اندازه چارج منتقل شي نو اوس ددي دواړو کروي شکله هادي زروترمنځ قوه ده:

$\frac{F_0}{4}: A$ $\frac{F_0}{2}: B$ $\frac{3F_0}{4}: C$

$\frac{3F_0}{2}: D$ $3F_0: E$

11- دوه يوشان کوچنۍ هادي کري چې يوبل څخه ديومترپه فاصله واقع دي په ابتداءکي دغه مساوي اومختلف النوع چارجونه لري هغه قوه چې د دوي ترمنځ ده

$F_0$ ده.که چیري دیوی کري نیم چارج وروسته دځاي دتغیرڅخه بلي کري ته نقل شي اوس کرو ترمنځ قوه ده

$3F_0$ : E $\frac{3F_0}{2}$ : D $\frac{3F_0}{4}$ : C $\frac{F_0}{2}$ : B $\frac{F_0}{4}$ : A

**۱-۵د چارج پرلپسي خپریدنه:**

12– دqنقطوي چارج دیوی کري دسطحي څخه چي شعاع یي $(2w)$ده د $a$ په فاصله واقع دی د $q$ چارج دکري په حجم کي یونواخت توزیع شوي دي که الکتروستاتیکي قوي مقدار د $q$ نقطو دچارج اوکري ترمنځ $F$ وي نوعبارت ده له:

$F = |qQ|/4\pi\varepsilon_0 a^2$ : A

$|qQ|/4\pi\varepsilon_0 a^2 > F > |qQ|/12\pi\varepsilon_0 a^2$ : B

$|qQ|/4\pi\varepsilon_0 a^2 > F > |qQ|/20\pi\varepsilon_0 a^2$ : C

$|qQ|/20\Pi\varepsilon 0 a^2 > F > |qQ|/36\pi\varepsilon_0 a^2$ : D

$F = |qQ|/36\pi\varepsilon_0 a^2$ : E

**۱-۲د چارج ساتنه:**

13–یو مثبته چارج لرونکي میله چې د خنثی هادی کرې سره چی دیو عایق تار په واسطه ځوړنده شوی وی نږدې شي نوپه کروي شکل هادي به:

الف: هیڅ تاثیر نلري ځکه چې خنثی دی.

ب: خنثی به پاتې شي خو په هر حال دمیلې څخه بهٔ دفع شي

ج: خنثی پاتېکیږي خو دمیلې لوري ته بهٔ جذب شي

د: منفي چارج به واخلي او د میلې په واسطه به دفع شي

ه: منفی چارج بهٔ واخلي خو دمیلې په واسطه جذببږي.

14− $B,A$ او $C$ درې يو شان ته هادي کروي شکله جسمونه چې دعايق په واسطه سره جدا شوې د $A$ او $B$ دواړو اصلي چارج $+3mc$ دی په هغه صورت کې چې د $C$ چارج $-6mc$ وي که د $A$ او $C$جسمونه سره تماس وکړي او وروسته دوی جدا حرکت وکړي بيا د $B$ او $c$ جسمونه سره تماس کوي چې وروسته حرکت کوي.

(الف): اوس که چيرته $A$ او $B$ جسمونه يو بل ته نږدې شي دوی شايد:

الف: يو بل جذبوي  ب: يو بل دفع کوي  ج: يو پر بل تاثير نه لري.

(ب): که چير ته په عوض يې د A او c جسمونه يو بل ته نږدې واقع شي نو دوی شايد يو بل:

الف: جذبوي  ب: دفع کوي  ج: يو پر بل تاثير نه لري.

## پوښـــــــتنې

1. تاسو ته دوه فلزي کرې درکړل شوي دي او په عايق ايښودل شوي دی يوه داسې لاره پيداکړۍ چې دې کرو ته مساوي او مختلف چارجونه ورکړل شي تاسې کولای شۍ چې د شيشې ميله دوريښمو سره ومومښۍ او چارج په لاس راوړۍ، خو د هغې کري سره تماس نه شۍ. ورکولی ايا کيدای شي چې کرې سره مساوي وي ستاسې د کار دطريقې (متود ) لپاره؟
2. په اول سوال کې هغه يوه طريقه پيداکړۍ چې دواړه کرو ته مساوي چارجونه چې يو شان علامې ولري ورکړل شي او بيا هم بايد کرې د دغه کار ترسره کولو لپاره يو شان وي؟
3. يوه چارج شوي ميله چې ځان ته دوچ لرګي،ګرد او خاورو وړي ذري جذبوي، کومی چې اکثره يې وروسته بيا د ميلې سره تماس کوي او ورڅخه په ډېر شدت سره يو طرفته خيز وهي تشريح يې کړۍ؟

4. ځنګه تاسي کولی شئ چې دځو ځوابۀ انتخابي پوښتنو په 1 ، 2 او دریمه پوښتنې ځوابونه داسی تبدیل کړئ چې د $A$ او $B$ یا $C$ جسمونه وکړای شي بې چارجه شي؟
5. هغه تجربۀ چې په ۲-۱ برخه کې تشریح شوې ده چې په کې څلور ډوله چارجونه ورکونکي او اخسیتونکي اجسام لکه شیشه، ورښیم، پلاستیک او پوستکي ښودل شوي دي د دې په هکله ستاسې استدلال څه دی؟
6. یو مثبت چارج دیو بې چارجه هادي سره ډیر نږدې چې په یو عایق ایښودل شوی دی راوړل شي په هغه صورت کې چې دهادي چارج دځمکې سره نږدې ځای په ځای شوي وي. ایا دغه هادي بۀ مثبت چارج شوي وي یا بۀ منفي چارج شوي وي او یا بۀ هیڅ چارج شوي نه وي که چیرته؟

($a$) : یو طرف یې چارج شوي وي او وروسته د ځمکې څخه تماس قطع شي او
($b$): دځمکې سره یې تماس قطع شي او وروسته یې یو لوري چارج واخلې؟

7. هر کله چې د اور شغله دیو چارج لرونکی عایق دپاسه فقط تیره کړو نو کیدای شي چې چارج له لاسه ورکړي تاسي دغه موضوع څنګه تشریح کوی؟
8. که چیرې یو سکه دلاس دګوتو ترمنځ وموښله شي نو معلومه به شي چې د اصطحکاک په واسطه دغه سکې چارج نه دی اخیستی، ولې؟
9. هر کله چې تاسې په غالي باندې دیوسر څخه بل سره پورې تیز وګرځئ او قدم پرې ووهئ تاسې اکثر په دې تجربه کې کله چې د دروازې د دستګیر سره تماس وکړئ حرقه احساسوئ ($a$): د دې علتونه څه دي؟

($b$): د هغه د شدت څنګه مخنوي کولی شو؟

10. ولې په مرطوبو ورځو کې دالکتروستاتیک تجربې ښه کارنکوي؟
11. ولې تاسې دخپل کمپیوټر د فلز دتماس څخه توصیه کوی مخکې له دې چې هر داخلې سامان یې نصبوی؟

12. ويل شوی دی چې یوه عایقه شوي میله چې برقي چاج انتقالوي. څرنګه کولای شو هغه تحقیق کړو سم او نا سم معلومول او دچارج علامه یې معلومه کړو؟

13. که چیرې یو جارج شوي ښیښه یی میله دیوې فلزي میلې چې په عایق نصبه شوي ده یو انجام ته یې نږدې شي لکه څرنګه چې د ۱۴-۱ شکل کې ښوول شوې ده الکترونونه د میلې یو انجام کې راټولیږي تاسې و وایاست چې ولې الکترونونه دمیلې په یوه انجام کې راجمع شوي ؟




۱-۱۴ شکل: د ۱۳ او ۱۴ پوښتنی

14. په ۱۴-۱ شکل کې کومه حاصله شوي برقي قوه به په فلزي میله عمل وکړی؟

15. که چیرې یو شخص د یوې عایق شوي چوکۍ دپاسه ودریږي او دیو مجزا شوي چارج لرونکي هادي سره په تماس کې شي. ایا چارج لرونکی هادي به ټول چارج له لاسه ورکړي؟

16. ($a$): مثبت چارج شوي ښیښه ای میلې یو زوړند شوي جسم جذب کړی دی ایا مونږ بیانولای شو چې هغه جسم منفي چارج شوی دی ؟

($b$):یوې مثبتې چارج شوي میلې یو زړند شوي جسم دفع کړی دی ایامونږ ویلای شو چې هغه جسم مثبت چارج شوی دی؟

17. برقي قوې دانطباق دقواعدو پیروي کوي تشریح یې کړی؟

18. ایا برقي قوه که چیرې نور برقي چارجونه ورنږدې شي تغیر کوئ؟
19. د مسود سلفات محلول چې یو هادي دی په دې حالت کې کومې ذرې ددغه موادو دچارج په انتقال کې رول لوبوي؟
20. که چېرته په فلز کې لکه مس چې یو هادي دی او الکترونونه یې هر طرفته ازادانه حرکت کوي خو اکثره دفلز دسطحې لوري ته حرکت کوي ولې دوی خپل جریان نه ساتي او ولې دفلز دسطحې څخه نه ازادېږي؟
21. که چېرې بنجامین فرانکلن الکترونو ته مثبت چارج لرنکی ذره او پروتون ته منفي چارج لرونکی ذره ویلي نو ایا کوم مهم توپیربه منځ ته راغلی وایې؟
22. د کولمب قانون دمخه ویلې وه ، هغه قوه چې دیو نقطوي چارج په واسطه په یو بل چارج باندې عمل کوي متناسبه ده د دواړو چارجونو دضرب دحاصل سره په څومره انرژي سره تاسو داقانون په لابراتور کې امتحانولای شی؟
23. څرنګه د اتوم هسته ثابته پاتې کېدای شي اګر چې دهغه زرو څخه چې یوه یې خنثی (نیوترون) اوبله یې چارجداره (پروتون) جوړه شوی ده تشریح یې کړی؟
24. دهلیوم په یو اتوم کې یو الکترون( $-e$ = چارج) لوی د هلیوم دهستی ( $+2e$ = چارج) لری په شاوخوا دوراني حرکت لري، کومه زره زیاته قوه په بله وارده وی؟
25. چارج دیوې زرې درست خاصیت دی چې د ذرې د حرکت دحالت څخه مستقل دی. څنګه امتحانولای شی. دا جمله دیو قوې ازمایشي ساختمان په واسطه چې دهایدرجن اتوم واقعاً د برق له حیثه خنثی دی تشریح یې کړی؟
26. فرض کړی چې په ۱۱-۱ شکل کې دمیلې داوږدوالي په امتداد کې چارج په یو نواخت دول نه دی توزیع شوي بلکه په عوض یې په خپل مرکز کې راجمع کړي دي او خارج لوری ته باریکه شوی لکه چې یو بل ته نږدې شوي وي چې اوس یې قوه شاید د $z$ مرکبې ولري؟ که چېرته دې میلې د $q$ په شان ټول چارج لرلای چې په میله کې په یو نواخت ډول توزیع شوی وي څومره دی د $F_y$ مقدارئی مقایسه کړی. د ۵-۱ معادلې سره تکراراً که په دواړو پوښتنو کې چارج دمیلې په اوږدو کې

توزیع شوي وي همدارنگه هغه هلته نږدې مرکز سره کمیږي او د چارج غلظت یې زیاتیږي او یو شان په اخر کې یو بل ته نږدې کیږي؟

27. د *Earnshawls* تیوري بیانوی چې یوازې دالکتروستاتیک قوې تر تاثیر لاندې زرې دتعادل په حالت کې ثابتې نه پاتې کیږئ وګورئ که څه هم د $P$ قطه دیوې مربع د څلورو مساوي مثبتو چارجونو په مرکز کې قرار لري د **۱۵-۲۵** شکل په شان که تاسې یو مثبت امتحانی چارج هلته د $P$ نقطه کې کیږدئ لیدل کیږي چې هر یو د څلورو خارجي چارجونو څخه هغه د $P$ په طرف تیل وهي او هغه دتعادل په حال کې ثابت پاتې کیږي، ایا تر اوسه پورې د *Earnshawls* تیوري محفوظه ده تاسې دا څنګه تشریح کولای شئ؟




**۱۵**-۱ شکل: **۲۷** سوال

28. دکوانتم چارج $1.60 \times 10^{-19}$ دی ایا دلته د دې سره دکوانتم کتله ده؟

29. د دې معنی څه ده هغه چې ویل کیږي یو فزیکي کمیت($\boldsymbol{a}$) : دتیوري او فورمول په واسطه معلومیږي($\boldsymbol{b}$) : ساتل کیږي بعضې مثالونه یې وښایست؟

30. مونږ په **۳**-۱ نمونوي پوښتنه کې وښوو له چې برقي قوه **۳۹** کرته دجاذبې د قوې څخه قوي تره ده؟ ایا تاسې د دې څخه دانتیجه اخیستلای سی چې په کهکشان کې یو ستوری یا یوه سیاره دچارج له حیثه خنثی ده؟

31. څرنګه مونږ پوهیږو چې دساکن برق قوه دجاذبې دقوې دجذب په علت کومه چې دمثال په ډول دځمکې او سپوږمۍ ترمنځ شته دی نه رامنځ ته کیږئ؟

## تمرین($Exercises$)

۱-۱ الکترومگنتیزم:( یوه مقد مه ):

۲-۱برقي چارج:

1. برېښنا د ضربي په ناڅاپه بیرته گرځیدو کې ۱-۱۲شکل وگورئ. د $20\ \mu s$ لپاره $2.5 \times 10^4\ C/s$ جریان رامینځ ته کوي. تاسو ووایاست چې په دغه حادثه کې به څومره چارج منتقل شي؟



۱-۱۲ شکل: (۱) تمرین.

۳-۱ هادی او عایق:

۴-۱ د کولمب قانون:

2. د $q_1 = 26.3\ \mu C$ او $q_2 = -47.1\ \mu C$ نقطوي چارجونو ترمنځ فاصله باید څومره وي؟ چې دهغوی ترمینځ $5,66\ N$ د جاذبې قوه عمل وکړي؟
3. د $+3.12 \times 10^{-6}\ C$ نقطوي چارج د $12,3\ cm$ په فاصله د $+3.12 \times 10^{-6}\ C$ یو نقطوي چارج څخه واقع دی د دوی ترمنځ د قوې مقدار حساب کړئ؟
4. دوه زرې چې مساوي چارج شوي دي د $3,20\ mm$ په فاصله سره جدا دي د ارام (سکون) څخه ازادیږي د اولنۍ زرې اولنۍ تعجیل $7,22 \frac{m}{\sec 2}$ او د دوهمې زرې

لپاره $9,16\ m/sec^2$ لیدل کېږي. داولنۍ زرې کتله $6.31 \times 10^{-7}\ kg.$ ده پیدا کړی؟ ($a$) د دوهمې زرې کتله او ($b$) دمشترک چارج مقدار؟

5. په $a$ ۱-۱۷ شکل کې د $q_1$ او $q_2$ دوه چارجونه چې د $d$ په فاصله جدا واقع شوی دی ($a$):د هغه برقي قوي پیاوړتیا پیدا کړی، چې په $q_1$عمل کوي؟ فرضوو چې $q_1 = q_2 = 21,3\mu c$ او $d = 1,52m$ وي($b$):د $q_3 = 21,3\mu c$ یو دریم چارج د $b$ ۱-۱۷ شکل په شان ځای لري، اوړل شوي دهغه برقي قوې غښتلتیا پیدا کړی، چې اوس په $q_1$ باندې عمل کوي؟




۱-۱۴ شکل:۵ تمرین

6. ۱ او ۲ مساوي دوه هادي کرې چې مساوي مقدار چارج لري او دیو بل څخه دخپل دقطر په مقایسه په زیاته فاصله کې موقعیت لري. دغه کرې د $88\ mN$ یوې برقي قوې په واسطه یوه بله دفع کوي. او که فرضو کړو دهغوی سره مساوي۳ کری چې په اول کې چارج نه لري او دیو عایق لاستي په واسطه نصب شوې ده. که دغه کره لومړی سر کې اولې کرې سره بیا دوهمې کرې سره په تماس کې شي او بیا په اخره کې لرې شي پیدا کړی، هغه قوه چې اولې او دوهمې کرې ترمنځ ده؟




۱-۱۸ شکل:۷تمرین

7. درې چارجداره زرې چې په یو مستقیم خط پرتې دي د $d$ په فاصله دیو بل څخه جدا شوي دي چې په ۱-۱۹ شکل کې ښودل شوي ، د $q_1$ او $q_2$ چارجونه په یو مستقیم خط ځاي پر ځاي شوی او د $q_3$ چارج ازادانه حرکت کوي، د برقي قوی د تاثیر لاندي تعادل کي پیدا کړي چې $q_1$ به څو برابره د $q_2$ شی؟




۱-۱۹شکل:۷تمرین

8. په ۱-۲ شکل کې پیدا کړی ؟ $(a)$:افقي اجراوي او $(b)$:عمودي اجزاوي دهغه برقي قوې چې دمربع کینې لوري ته په ښکتني کونج کې چارج باندې عمل کوي، فرضوؤ چې د $q = 1,13\mu C$ او $a = 15,2\ cm$ ده دا چارجونه دسکون په حال کې دي؟




۱-۲۰ شکل:۸ تمرین

9. دوه مثبت چارجونه چې هر يو $4{,}18\ \mu C$ چارج لري او يو منفي چارج چې $-6{,}36\ c$ دی مساوي الا ضلاع مثلث په راسونو کې ځای پر ځای شوی دی چې هر ه ضلع يې $13cm$ اوږدوالی لري د منفي چارج دپاسه برقي قوه پيدا کړی؟

10. دوه کوچنۍ کرې چې هر يوه يې مثبت چارج شوې ده او مجموعې چارج $52{,}6\ \mu C$ دی هره کره ديو بل څخه د $1{,}19\ N$ قوې په واسطه دفع شوي هرکله چې دکرو ترمنځ فاصله $1{,}94m$ وي دهرې کرې چارج حساب کړی؟

11. دوه چارجونه چې يو يې $+1{,}07\mu C$ او بل يې $-3.28\ \mu C$ چارج لري. ديو بل څخه د $61.8\ m$ په فاصله کې موقعيت لري. دريم چارج په کوم موقعيت کې بايد ځای پر ځای شي تر څو د اصلي قوې اثر وربانديې ونه لويږي؟

12. درې کوچنۍ پنډوسکي چې هره يو يې $13{,}3\ gr$ کتله لري هر يو يې جدا جدا د وريښمو دتارونو په واسطۀ چې هر تار يې $1{,}17\ m$ اوږدوالی لري ديوې مشترکې نقطې څخه را ځوړند شوي دي. دغه پنډوسکی يو شان (مساوي) چارج لري هره پنډوسکه د متساوي الاضلاع مثلث په راسونو کې چې دهرې ضلعی اوږدوالی يې $15{,}3\ cm$ دی قرار لري دهرې پنډوسکي چارج پيدا کړی؟

13. يو مکعب چې په هر کنج (راس) کی د $q$ يو نقطوي چارج لري وښايست هغه نتيجوي برقي قوه چې د هر چارج دپاسه د $F = \frac{0.262\ q^2}{\epsilon_0 a^2}$ په واسطه راکول کيږي چې دمکعب دقطر په يو طرف کې رهنماء شوي دی؟

### ۵-۱ دچارج يو نواخته توزيع:

14. د ۱۵-۲۵ معادلې څخه نتيجه کيږي چې د $q_0$ چارج د $y$ دمحور په مثبت جهت کې واقع شوی وی $(a)$ : ايا د۱۵-۲۵ معادلې قانوناً باقي پاتې کيږي که چيرته چارج د $y$ دمحور په منفي لوري کې واقع وي تشريح يې کړی؟ $(b)$ : د ۱۵-۱ معادله مشابه يو معادله وليکۍ؟ که چېرته د $q_0$ دنقطوي چارج عوض شوي وي دميلې څخه د $x$ په فاصله د $x$ دمحور په مثبت يا منفي لوري کې؟

($c$): یوه وکتوري معادله دقوي داجزاؤ لپاره ولیکئ کله چې $q_0$ دمیلې څخه د $d$ په یوه فاصله کی واقع وي او خط یې د $x$ او $y$ دمحورونو دمثبت جهت دنیمایي سره $45^{\circ}$ زاویه جوړه کړي؟ ($d$) : یوه وکتوري معادله دقوي داجزاو لپاره ولیکئ ؟ کله چې $q_0$ د $xy$ په مستوی کې په یوه اختیاری نقطه واقع وي د $xy$ دمستوی په هر ځای کې تطبیق کیږي چې هغه اجزا صحیح علامه لري کله چې نقطه د $xy$ د مستوي په هره ځلورمه برخه کې واقع وی؟

15. ($a$):د ۱۲-۱ معادلې سره شروع کړئ یوه وکتوري شکله معادله د قوې لپاره کله چې $q_0$ د $z$ دمحور په مثبت یا منفي لوري کې دحلقې په دچارج واقع وي؟ ($b$) : آیاد ۱۷-۱ معادلې مشابه دصفحې دچارج لپاره استعمالولای شو؟
16. هغه قوه پیدا کړئ چې د $q$ مثبت نقطوي چارج دپاسه چې د $x$ په فاصله دیوې میلې څخه چې اوږدوالی یې $L$ وي او د $Q$ مثبت چارج پکې په یو نواخت ډول توزیع شوي وي عمل کوي؟(۲۱-۱) شکل وګورئ.



۱-۲۱شکل:۱۲ تمرین.

17. په ۱۱-۱ شکل کې وګورئ چې میله او د $qo$چارج تاسې کوم ځای کې کولای شي په ځای کړئ چې د $q$ دوهم نقطوي چارج (چې چارج یې دمیلې سره برابر وي ) او $q_0$ په تعادل کې وي (د وزن څخه یې صرف نظر شوي) حل کړئ دا مسئله هغه چې $q$ ($a$): مثبت وي او ($b$): $q$ منفي وي؟
18. په ۱۷ تمرین کې د $q_0$ ناپاید اره تعادل وښایست؟(یادونه: دا مسئله داستدلال په واسطه حل کیدای شي په حقیقت دریاضي سره ډیر کم تړاؤ لري).
19. په ۱۱-۱ شکل کې هغه میله قبوله کړئ چې په پورته نمایي برخه کې یې $\lambda$ مثبت دچارج کثافت او په لاندینۍ نیمه برخه کې یې د $\lambda$ منفي دچارج کثافت په یو نواخت ډول توزیع شوي وي د $q_0$ په چارج باندې خالصه قوه پیدا کړئ؟
20. ځلور چارجداره میلې چې د یوې مربع د ضلعو په شکل د $xy$ په افقي مستوی کې دی هره میله د $L = 25,0cm$ یوه فاصله لري او په هر یوه کې یې د $Q$ مثبت چارج

په يو نواخت توګه توزيع شوي دي يوه کوچني کره کومه چې ديو نقطوي چارج په شان يې تصور کولا شو $3,46.10^{-4}gr$ پەکلته او د $q =$ $+2,45.10^{-12}c$چارج لري په تعادل کې دمربع دمرکز څخه د $z = 21,4cm$ په يوه فاصله پورته قرار لري. د $Q$ مقدار پيد کړی؟

**۲-۱ دچارج ساتنه: عکس العمل:**

21. پەلاندې هستوي تعملاتو کې د $x$ عناصر مشخص کړی؟



(a) $^{1}H + {}^{9}Be \rightarrow X + n$;
(b) $^{12}C + {}^{1}H \rightarrow X$;
(c) $^{15}N + {}^{1}H \rightarrow {}^{4}He + X$.

22. په راديواکتيويتي زوال کې د$^{238}U$ ($^{238}U \rightarrow {}^{4}He + {}^{234}Th$) د $^{4}He$زرې په مرکزي کې ښکاره کيږي په دې خط کې په يقيني ډول $12x10^{-15}$ $m$ د مرکز څخه د $^{234}Th$هستی. بآقي پاتې کيږي په دې رسوب کې **(a)**:د $^{4}He$ په زرې څومره قوه عمل کوي؟او **(b)**: خپل تعجيل يې څومره دی؟

23. دمالګې په کرستل کې دسوديم يو اتوم يو دخپلو الکترونو څخه خپل ګاونډې کلورين ته انتقالوي په دې رابطه کې چې سوډيم مثبت ايون او کلورين منفي ايون کيږيچې يو بل دبرقي قوې په واسطه سره جذبيږي هغه دجاذبې قوه حساب کړی. چې دايونو ترمنځ فاصله يې $282pm$ وي.

24. د دوه عيني (مساوي) ايونو تر منځ الکتروستاتيک قوه $3x10^{9}$ $N$ ده که دايونو تر منځ فاصله $5x10^{-10}m$ وي **(a)**:د هر ايون چارج پيدا کړی؟ **(b)** د هر ايون څومره الکترونونه ورک شوي؟

25. يونيوترون ديو "***up***" کوارک چې چارج يې $\frac{2}{3}e$دی او دوه "***down***" کوارکونو څخه چې هر يو يې $-\frac{1}{3}e$-چارج لري جوړ شوي که چيرته ***down*** کوارکونه $+2.26 \times 10^{-15}C$ په فاصله دنيوترون د داخل مرکزڅخه جدا دی د هغوی ترمنځ د دفعې برقي قوه څومره ده؟

26. ($a$ ):څومره الکترونونه بۀ د **penny** څخه لرې شي چې $C$ $+1.15\times10^{-7}$ چارج ازاد کړی؟

($b$ ):په **penny** کې دالکترونو په کوم مطابقت سره وجود لري۱-۱ نمونوي مسئله وګوری؟

27. یو الکترون په خلا کې دځمکې سطحې سره نږدې واقع دی چرته دوهم الکترون بآید ځای په ځای شي چې هغه د اولني الکترون دخالصې قوي لاندې واقع شي د دې بل الکترون وزن صفر دی؟

28. د $75.0\ kg$ الکترونونو مجموعي چارج په کولمب پیدا کړی؟

29. په یو ګیلاس اوبو کې څو کولمبه مثبت چارج وجود لري که فرض کړو چې د اوبو حجم یې $250\ cm^3$ دی؟

30. دوه طبعي شاګردان ($marry$) $52.0\ kg$, او ($Johan$, $90.7\ kg$ د $28,0\ m$ په فاصله کې جدا دی دهغوی دهریوه دمثبت او منفي چارج عدم موازنه $0,01\%$ ته رسیږي دیو شاګرد مثبت او دبل منفي چارجو ترمنځ برقي جاذبوي قوه په لاس راوړی؟ یادونه: دشاګردانو ځای په ځای کیدل د اوبو دا حاطه کولو په واسطه او د 29 تمرین نتیجه استعمال کړی؟

31.($a$ ) :په کوم مقدار مثبت چارج په ځمکه او سپوږمۍ کې ځای په ځای شي چې دهغوی دجاذبې دقوې جاذبه خنثی کړي تاسې ددې مسئلې دحل لپاره دسپوږمۍ فاصلې پوهیدو ته ضرورت لري؟ بلې یا نه؟

($b$ ):څو ټنه هایدروجن ته ضرورت دی چې مثبت چارج تهیه کړي په $a$ پارت کې یې حساب کړی؟ که دهایدروجن مولر کتله$1.008g/mol$ وي.

## مســـائل

1. دوه مشابه چارجداره هادي کري چې مختلف العلامه چارجونه لري د $0,108N$ یوي قوي پواسطه یوه بله سره جذبوي که د $50cm$ په فاصله سره جدا شوي وي که دا

چارجداره کړي په ناڅاپي ډول د یوه نازکه هادي سیم سره وصل شي ددي دواړو د بیلولو لپاره $0,0360N$ قوه پکار ده د کرو د پاسه اصلي چارجونه څومره وه؟

2. د یوي مربع په دوه مختلفو کنجونو کي د $Q$ چارج په ځاي شوي دي که چیري د $q$ یو چارج ددي مربع په دوه کنجونو کي کیښودل شي:$(a)$ : که د قوي تاثیر د $Q$ په چارج صفر وي، د $Q$ او $q$ مقدار څومره دي $(b)$ :ممکن ده چي چارج داسي انتخاب کړو چي قوه یي په نورو چارجونو صفر وي خپل ځواب بیان کړی؟

3. د $q+$ او $4q+$ آزادو چارجونو ترمنځ فاصله $L$ ده یو دریم چارج داسي ایښودل شوي دي چي ددي سیستم په داخل کي په تعادل کي دي. $(a)$ د دریم چارج علامه ، مقدار او موقعیت پیدا کړی؟ $(b)$ وښایاست چي دا تعادل ناپایداره دي؟

4. دوه هم مشابه باریکه پنډوسکی د $m$ په کتله د وریښمین تار په واسطه د $L$ په اوږدوالي ځوړنده دي او هره یو یي د $q$ مساوي چارج لري ۱-۲۲ شکل فرض کړی چي $\theta$ زاویه ډیره کوچنی ده چي تقریباً د $Sin\ \theta$ سره مساوي ده $(a)$: ددي فرضي لپاره وښایاست چي د تعادل د پاره لاندي رابطه صدق کوی:

$$X = \left(\frac{q^2 L}{2\pi\varepsilon_0 mg}\right)^{\frac{1}{3}}$$

د $X$ پنډوسکی ترمنځ د جدایي فاصله ده. $(b)$: که چیرته $L = 122cm$ ، $m = 11,2g$ او $X = 4,70cm$ وي د $q$ قیمت به څو وي؟




۱-۲۲ شکل: **۵**، ۴او۲ مشکل.

5. که ۱-۲۲ شکل پنډوسکي د برق هادي شي. ($a$): که چیرته یو ددي پنډوسکو څخه بي چارجه وي د پنډوسکو ترمنځ څه واقع کیږي خپل ځواب بیان کړی؟ ($b$): د جدایي نوي تعادل په لاس راوړی؟

6. فرض کړی چي هره پنډوسکه د څلورم مثال له مخي ئی $\frac{nc}{s} = 1,20$ چارج باییللی دی که د جدایي د متمادي نسبي سرعت ئی مساوي $dx/dt$ وی حتمي به یو بل ته نږدي کیږي؟

7. د $Q$ یو چارج د $q$ - او $q$+ په کوچنیو چارجونو باندي ویشل شوي دي د $Q$ او $q$ د دوه برخو ترمنځ څه رابطه موجوده ده که چیرته ددي چارجونو ترمنځ یوه فاصله موجوده شي د کولمب د دفعي اعظمي قوه به څومره وي؟

8. د $Q$+ دوه مثبت چارجونه چي د $d$ په فاصله سره جدا شوي یوه زره چي د $q-$ چارج لري او د $m$ په کتله د هغوي ترمنځ واقع ده که هغوي ته کوم تغیر ورکړ شي او عمود پاتي شي وښاياست چي دا زره به ساده اهتزازي حرکت د $(\epsilon_0 m\pi^3 d^3/qQ)^{\frac{1}{2}}$ پواسطه اجرا کوي تشریح یي کړی؟

9. په اتم مثال کي، د مثبت دوه چارجونو ترمنځ یو خط د یوځای کیدو نشته که $q$+ چارج د هغوي په مینځ نقطه کي واقع شي ددي زري د اهتزاز پریود محاسبه کړی؟

10. د $CsCl$ په مرکب کي سیزیوم کلوراید د سیزیوم اتوم د مکعب په یو کنج کي واقع دي او د $CL$ اتوم د مکعب په مرکز کي دي د مکعب د ضلعو اوږدوالي $0,40\ nm$ دي ۲۵-۲۳ شکل وګوری، د $CS$ اتوم یو الکترون کمبود لری او د $Cl$ اتوم یو الکترون زیات لري. ($a$) :ددي $CS$ د 8 اتومونو دمجموعی قوي شدت به چی ښوول شوی د $Cl$ په اتوم څومره وي؟ ($b$) :فرض کړی چي د $CS$ اتوم د یو غشي په شکل وښودل شي نو د $Cl$ په اتوم به د $CS$ په اتوم څومره قوه وارده کړی؟




۱-۲۳شکل:۱۰ مشکل.

11. دوه مساوي مثبت نقطوي چارجونه د $2a$ په ثابته فاصله سره جدا شوي دي که يو نقطوي امتحاني چارج په يوه مستوي کي چي ددي چارجونو په وصل کوونکي خط عموده ده په منځ کي په منځنۍ نقطه کي واقع دي ددي مستوي د دايري شعاعوي $R$ پيدا کړې او د کومي لپاره به په امتحاني زره باندي د قوي قيمت اعظمي وي. ۱-۲۴ شکل وکورۍ؟




۱-۲۴شکل:۱۱مشکل.

## محاسبوي(کمپيوټري) پوښتنې

**1**– که چيرته $+q$ او $-q$ چارجونه د دوه حلقو ترمنځ په مساوي ډول ويشل شوي وي، ددي چارجونو ترمنځ د جذب قوه حساب کړې؟په هغه صورت کي چي د حلقي محور د $x$ په محور منطبق وي او د هري شعاع $R$ ده او د حلقو ترمنځ فاصله يي $2R$ وي ستاسي د

اخرني جواب شکل به وي؟ $F = c_{r\,q^2}/4\pi\ \epsilon_{0\,R^2}$ چيرته چي $C_r$بي بعده د تناسب ثابت دي تاسي يې شايد پيدا کړئ؟

2– د کمپيوټر لمړني سوال تکراراً د دوه ډ سکونو لپاره په هغه حالت کي تکرار کړئ چي $q$+ او $q$ - چارجونه په يو نواخت ډول توزيع شوي وي ستاسي اخرني ځواب به $F = c_{d\,q^2}/4\pi\ \epsilon_{0\ \ R^2}$ چيرته چي $C_d$ بي بعده ثابت دي. دا د $C_d$ ثابت د $Cr$ د ثابت سره فرق لري؟

3– د جاذبي قوه د دوه کروي اجسامو ترمنځ محاسبه کړئ که $q$+ او $q$ - چارجونه په متجانس ډول ويشل شوي وي د دي کرو مرکز د $x$ په محور منطبق دي او د هري کري شعاع $R$ ده د کري په مرکز کي $d > 2R$ په واسطه جدا کيږي ستاسي به اخری ځواب $F = c_{s\,q^2}/4\pi\ \epsilon_0 R^2$ چيرته چي $C_s$ بي بعده ثابت دي؟

4– د $Q$ متجانسه چارجداره حلقي د $R = 1cm$ او يو الکترون د يوي حلقي په مستوي کي د حرکت په حال کي دي؟ $(a)$: فرض کړئ چي $Q = -100\ \mu c$ وي د الکترون سرعت په هغه صورت کي پيداکړئ چي هغه په دايره وي مدار $r = 0,50\ cm$ په شعاع د حرکت په حال کي وي.

$(b)$: فرض کړئ چي $Q = 100\mu c$ دي د دي چارج سرعت د $r = 1,50cm$ په شعاع حساب کړئ؟

$(c)$:دا حرکت د يو عددی انتيګرال پواسطه وښاياست چي هلته مدار ثابت نه وي؟

## دوهم څـــــپرکی

### برقي ساحه:

برقي چارجونه په لرې ساحو کې هم یو له بله سره ارتباط کولای شي الکترونونه او اتومي ایونونه د کائناتو د لرې پرتو حدودو پورې قوې واردوي، کوم چې الکترونونه ددې قابل ګرځوي چې په ځمکه حرکت وکړي، دا اړیکې څنګه توضیح کولای شو؟

د برقي ساحې په صورت کې دا مونږ تشریح کولای شو .لرې پراته چارجونه یوه برقي ساحه رامنځ ته کوي کوم چې د ځمکې او د ساحې د مبداء تر منځ وجود لري، د چارجونو حرکت په ساحه کې د مزاحمت سبب ګرځي، کوم چې په فضاء کې یا په خلا کې د نور په رفتار سره حرکت کوي، او د تششع په څیر ښکاریږي، کله چې دوی په ځمکه کې د سرکټونو په داخل کې د الکترونونو د حرکت سبب ګرځي.په دغه څپرکی کې مونږ یوازې ساکنه برقي ساحه تر مطالعې لاندې نیسو.

۲-۱ساحه څه شی دی؟

که چیرې مونږ او تاسې په یوه خونه کې قرار ولرو نو د نوموړې خونې د تودوخې درجه د خونې په هره نقطه کې مشخصه اندازه لري، او د هرې نقطې د تودوخې د درجې د معلومولو له پاره د ترمامتر څخه استفاده کولای شو، وروسته له دې کولای شو، د نوموړې خونې یو نقشه رسمه کړو او د هرې نقطې د تودوخې درجه یې په ښنبه کړو، او یا هم کولای شو د تابع په مرسته د تودوخې دغه درجې په مختلفو نقاطو کې په ګوته کړو، دغه ساحه چې د نقشې په شکل او یا هم په غیر له دې $T(x,y,z)$دالجبري تابع په شکل د$(x,y,z)$په هر نقطه کې مونږ ته د تودوخې مختلفې درجې په نقشه کې ښایې، د تودوخې د ساحې په نوم یادیږي، همدارنګه مونږ کولای شو په هره نقطه کې فشار معلوم کړو، او بیا د هغې په مرسته دفشار ساحه تعینه کړو، دا چې تودوخه او فشار دواړه سکالري کمیتونه دي نو ځکه دغه ساحو ته سکالري ساحې ویل کیږي، که چیرته تودوخه

او یا هم فشار د وخت په تیریدو سره بدلون ونه کړي، نو ددې په اساس رامنځ ته شویو ساحو ته ساکنې ساحې ویل کیږي که چیرته نظر وخت ته تغیر وکړي هغه انرژي د ساحې په حسابي توګه بیانیږي او تابع یې فقط د وخت $T(x,y,z,t)$ مربوطه ده، همدارنګه که چیرته تاسو د یوی بهیدونکې ساحې په هره نقطه کې د سرعت جهت او د هغې اندازه پیدا کړئ دغه دوکتوری ساحی یومثال دی. تاسې کولای شی. چې په هره نقطه کې دا مقدارد وکتور په واسطه معلوم کړئ او یوځل بیا کولای شئ چې هغه د یوې نقشې په مخ رسم کړئ چې په هره نقطه کې یې مقدار او جهت بیان کړئ او یا یې د $\vec{V}(x,y,z)$ د حسابي تابع په واسطه معلومولای شئ.

د ځمکې د جاذبې ساحه د وکتوري ساحې یو بل مثال دی. دا وکتوري ساحه، تاسې کولای شئ چې په هره نقطه کې د یوې فنري تلې پورې د $m_0$ د یو کتلې په تړلو سره د جاذبې قوه پیدا کیږي، او وروسته بیا کولای شی. په هره نقطه کې د جاذبې قوې $\vec{F}$ اندازه او جهت معلوم کړئ، او بیا کولای شئ د یو نقشې په رسمولو سره او یا د یوې ریاضیکی عملي $\vec{F}(x,y,z)$ په مرسته خپل نتایج ښودلای شئ، البته یوه خبره ده هغه دا چې دغه نقشه چې مونږ د کومې کتلې په مرسته تر لاسه کړه که همدغه کتله بل نفر استعمال هم کړي نو بیا د هغه نفر له پاره دغه نقشه مفیده ده او که همدغه کتله استعمال نه کړي نو بیا دغه نقشه د بل نفر لپاره مفیده نه ده.دا چې قوه د کتلې سره مستقیماً متناسبه ده، ښه به دا وي چې داسې یوه نقشه رسمه شي چې په امتحاني کتله باندې د قوې مقدارونه ښایي، بلکې په عوض یې $\frac{\vec{F}}{m_0}$ قوه په واحد د کتلې وښایي، یا $\frac{N}{kg}$ ددی مقدار واحد دی چې د $\overrightarrow{m_0}$ دکتلې په مقدار پوری مربوط دی.که چیری مونږ په مختلفو مقدارو سره کتلې انتخابې کړو، نو دامشابه نقشه چې تر لاسه کیږی .هغه مونږ ته په هره نقطه کې دمشابه قؤو مقدار په واحد دکتلې راښائي مونږ $\frac{F}{m_0}$ ته دجاذبې ساحه وایو . تاسی ته به معلومه شی چې دا په هره نقطه کې دازاد سقوط تعجیل g سره هم مساوی ده:

$$\vec{g} = \frac{\vec{F}}{m_0} \qquad (2-1)$$

د$\vec{g}$ ساحه داسی یو وکتور دی چې جهت ئی مونږ ته په هماغه نقطه کې دځمکې دجاذبې دقوی جهت او مقدار ئي دجاذبې دتعجیل ثابت راښائي.مونږ هغه قوه چې په هره نقطه کې د $m$ په کتلې عمل کوی په هماغه نقطه کې د $m$ دکتلې او $\vec{g}$ دمقدارونو دضرب څخه په لاس راوړؤ .

:

$$\vec{F}=\overrightarrow{mg} \qquad (2-2)$$

پدې څپرکی کې به مونږ یو ګټور مفهوم دبرقی ساحی لپاره روښانه کړو چې هغه مشابه ساختمان دجاذبې قوی پر واحد چارج (په غیر دجاذبې قوی څخه په واحد دکتلی )داچې برقی قوه پکې شامل ده برقی ساحه یووکتوری کمیت دی.برقی ساحه په همغه شکل سره چې مونږ دقوی پر کتلی څخه د ځمکې د جاذبې تعجیل $g=\frac{F}{m}$ پیدا کاوه په لاس راوړو یعنی مونږ به برقی ساحه دبرقی قوی په واحد دچارج سره پیدا کوؤ ($\vec{E}=\frac{\vec{F}}{q}$)مخکې لدې چې دساحی مفهوم په خلکو کی عام شی ، دیو جسم څخه په بل جسم باندی عامله قوه دیوی مستقیمی رابطی په توګه تصور کیدل دجاذبې په صورت کی په لاندی شکل سره ښودله کیږی .

کتله ⟷ کتله

داښایی چی دادوه کتلی مستقماً یو په بل اثر کوي ددغه نظری له مخې دیو جسم دحرکت تاثیر ژر بل جسم ته انتقالیږي.

دساحی په ارتباط په اوس وخت کی دخلکو مفکوره په لاندی ډول ده

کتله ⟷ ساحه ⟷ کتله

له دی څخه څرګندیږي چی یو جسم یا کتله مستقیماً له بل جسم یاکتلی سره تعامل نه کوي اونه یو له بل سره یو ځای کیږي بلکه دهغه بل جسم په وسیله د رامنځته شوي جاذبې ساحی سره اړیکه پیداکوی.اوبیا له بل جسم سره اړیکه نیسی.داپه دی معنی سره چی لومړی کتله په فضاء کی یو ساحه رامنځته ،کوی کومه چی په هره نقطه کی معلومه اندازه لري او دوهمه کتله بیا له دغی ساحې سره اړیکه نیسي .دغه رامنځته شوی ساحه

ددوارو کتلويا هم ددوارو جسمونو ترمنځ ديو منځګړي حيثيت لري .په دوهم جسم باندی وارده شوي قوه په لاندی ډول سره پيدا کولای شو $\vec{F} = m.\vec{g}$ .

دلته که چيرته موږ يو جسم ياکتله له خپله ځايه بي ځايه کړو نو دجاذبی په ساحه کي هم تغير راځي او دغه تغيرات دنورد سرعت په څير حرکت کوي.

۲-۲ برقي ساحه:

دجاذبې دساحی د مخکی تشريح له مخې کولې شو چي مستقيماً په الکتروستاتيک کې کولمب قانون چی يو برقي چارج باندی دبل چارج دقوی په اړه دی مونږ ددی قابل ګرځوی چی . چارج ⇄ چارج

د تيرپه څيردوهم ځل لپاره بيا هم د دوارو برقي چارجونو تر مينځ ديو منځګړي په توګه د ساحی په رامنځ ته کولو سره مونږ پورتنی رابطه په لاندې ډول سره ښودلای شو .

چارج ⇄ ساحه ⇄ چارج

له دي څخه معلوميږي چی لومړی برقي چارج يوه برقي ساحه رامنځ ته کوی .اوبيا دوهم برقي چارج داول چارج دبرقي ساحی سره په متقابل عمل کی راځی زموږ مشکل په دی خاطر ددوارو برقي چارجونو ترمنځ دمتقابل عمل او اړيکو داندازه کولو ستونزه ده دغه دوه جدا ستونزې دي .

۱- اول د لومړي برقي چارج په وسيله په فضاء کی رامنځ ته شوی برقي ساحه په هره نقطه کی داندازه ګيری او يا هم دمحاسبې په اساس پيدا کول دی.

۲- دهغه قوی پيداکول چی دغه برقي ساحه يی په دوهم برقي چارج باندي واردوی چی په فضاء کی په يوه ټاکلی نقطه کښې قرار لری.د ۲-۱معادلی په مقايسه په جريان پوری مربوطه د جاذبی ساحی په څير مونږ د $\vec{E}$ په برقي ساحه کې د برقي ساحې د پيدا کولو له پاره د څو برقي چارجونو په موجوديت کې چې د $q_0$ مثبت امتحاني چارج باندی عمل کوي د لاندې مساوات څخه استفاده کوو:

$$\vec{E} = \vec{F}/q_0 \qquad (2-3)$$

په پورته رابطه کې د $\vec{E}$ وکتور د قوې يعنې $\vec{F}$ سره هم جهته دي، ځکه $q_0$ يو مثبت چارج دی او سکالري کميت دی .د برقي ساحې معرفي کول په دې طريقه د $q_0$ امتحاني چارج څخه مستقل دی. ۲-۱ شکل رانښايي کوم چې مونږ د برق ساحې د $P$ د يوې خاصې نقطې له پاره استعمال کړی و، مونږ د $q_0$ مثبت امتحانی چارج په $P$ کې ږدو او په $q_0$ د الکتروستانيک قوې د معرفي له پاره چې برقي جسم برقي ساحې احاطه کړې دی کوم چې په شکل کې نه دی ښوول شوې، نو ۲-۳ معادله برقي ساحه ښايي په$b$۲-۱شکل کې.

نــوټ: $\vec{F}$ او $\vec{E}$ موازي دي کوم چې په ۲-۳معادله کې معرفي شوي، په لاندې شکل کې يې ښودنه کوو.




۲-۱شکل ($a$) : ۲-۱:احاطه کوونکي چارجداره جسم په $q_0$ مثبت امتحاني چارج د $P$په نقطه کې د **F** قوه واردوي($b$) :.برقي ساحه د $p$ په نقطه کې په احاطه کوونکې چارجداره جسم عمل کوي.

۲-۱جدول د بعضې برقي ساحې د $N/C$په واحد ښيي.

| برقي ساحه په $N/C$ | موقـــعيت |
|---|---|
| $3x10^{21}$ | د يورانيم د هستې په سطحه کې |
| $5x10^{11}$ | د هايدروجن د اتوم د الکترون متوسطه شعاع |
| $3x10^{6}$ | په هوا کې د برق د سقوط واقع کيدل |
| $10^{5}$ | د فوتو کاپي د ماشين چارج داره طرف |
| $10^{5}$ | د TVپه سټ کې د الکترون د نور اچونې تعجيل |

| | |
|---|---|
| د پلاستکي چارج شوی ږمنځې سره نږدې | $10^3$ |
| د اتموسفیر څخه لاندې | $10^2$ |
| د کورني سرکټ د مسي سیم په داخل کې | $10^{-2}$ |

د برقي ساحې مقدار عبارت دی له قوه په واحد د چارج چې د SI په بین المللي سیستم کې یې واحد عبارت دی د N/C چې معادل واحد ئي v/m دی چې په اته ویشتم څپرکی کې پری بحث کیږی.

نــوټ :ددی مشابه دځمکی دجاذبی تعجیل چې g دی همیشه $m/sec^2$ واحد دی چې په عوض ئي N/kg. m هم استعمال کیدای شی (یعنی چه قوه دکتلې په واحد تقسیم شی. )ددواړو ساحو یعنی دځمکی دجاذبی ساحی او برقی ساحی خاصیت ورته والی لری، یعنی په ترتیب سره دواړه دقوؤ تقسیم دی (دکتلې اوچارج په واحد )۲-۱ جدول .بعضی برقی ساحی چې په کموځایو کې واقع کیږی راښائی. مونږ ۲-۲ معادله دجاذبی په ساحی کې دجاذبی دقوی دپیداکولو لپاره استعمالوله ، په څیر ئي مونږه په برقی ساحه کې، په چارج لرونکې جسم باندی دواردی شوی قوی مقدار محاسبه کولای شو .
یوځل چې مونږ په یوه نقطه کې دازما ېښتی جسم په کومک سره برقی ساحه پیداکړه بیانو مونږ په دغه ځای کې q چارج لرونکی جسم باندی دواردی شوی قوی مقدار هم پیداکولای شو:

$$\vec{F} = \overrightarrow{qE} \qquad (2-4)$$

دلته برقی ساحه یعنی $\vec{E}$ دنورو شتو چارجونو په وسیله رامنځ ته شوی ده نه دا چی د q چارج په واسطه رامنځ ته شوی ده .پورتنۍ رابطه په اسانۍ سره کولای شی هغه مقدار قوه پیدا کړي چی دغه نور چارجونه یی په q چا رج باندی واردوی.اوس موږ په همدي پوهیدلای شو چي ددوه چارجونو یعنی $q_1$ او $q_2$ تر مینځ برقی ساحه څرنګه دیو مینځګړي په حیث وظیفه اجراکوي.لکه څرنګه چی په۲-۲ شکل کی ښودل شوی ده د $q_1$ چارج چی په $A$ کی موقعیت لري په ټولو چارچاپیره نقطو کي برقي ساحه رامنځ ته کوي

که فرض کړو په $B$ موقعت کې یې ارزښت $E_1$ دي.مونږ کولای شو دبرقی ساحی دمعلومولو لپاره چی خپل ازماینښتی چارج په $B$ کې ځای په ځای کړو او بیا په دی باندې د $q_1$ له خوا وارده شوې قوه اندازه کړو.که چیر ته مونږ د $B$ په موقعت کی د $q_2$ مخالف چارج ځای په ځای کړو .نوپه دی صورت کی به برقی قوه $F_{21}$ وی، کومه چی مونږ ۲-۴ رابطی په واسطه پیدا کولای شو:

$$\vec{F}_{2.1}= q_2.\vec{E}_1$$



۲-۲شکل.

دلته مونږ اول د A په موقعیت کې د $q_2$ چارج په واسطه دازماینښتي چارج څخه په استفادې سره برقي ساحه $E_2$ پیداکووبیا په $A$ موقعیت کې د $q_1$ چارج په ځای کولو سره مونږ د $q_2$ له خوا په $q_1$ باندې دواردې شوې قوې مقدار پیدا کوو $F_{1.2}$=$q_1.E_2$ ، ($d$۲-۲) شکل، د نیوټن ددریم قانون په اساس قوی سره برابری او مخالف دی یعنی: ($F_{2.1}$= -$F_{1.2}$)دغه قوی مساوی او مخالفې دی.خو بیا هم ددواړو چارجونو په واسطه رامنځ ته شوې برقی ساحه سره تفاوت لري. مونږ وایو چی دجاذبی دساحی مشابه دوړو چارجونو برقی ساحه هم پیدا کولای شو کله چی په برقی ساحه کی دچارجونو توزیع مختل کیږی په دی صورت کی دبرقی ساحی دمقدار معلومولو لپاره زیاته مناسبه ده چی ولیکو: .

$$\vec{E} = \lim_{q_0\to 0} \frac{\vec{F}}{q_0} \qquad (2-5)$$

که څه هم مونږ داول څپرکی څخه پوهیږو هغه داچی دا لمت معمولا نه صفر کیږی ځکه چی امتحانی چارج هیڅ کله کوچنی نه وی په غیر د $e$ ابتدایی چارج څخه البته برقی ساحه دچارجونو د مجموعی په خاص موقعیت پوری اړه لری.

**۲-۱نمونه ئی مسله:**که چیرته یو الکترون $q = -e$ دِ یوچارج لرونکی جسم سره نږدی کیښودل شي دتجروبوی قوی جهت د$y$+ په لوری دی که مقدار ئی $3,60x10^{-8}N$ وي .

$a$ : په دغه موقعیت کی برقی ساحه څومره ده؟

$b$ :دهغه قوی مقدار پیدا کړی چی دهمدغه چارج لرونکی جسم لخوا په یوه بله برخه $q = +2e$ باندی واردیږی؟

**حــــل:**$(a)$ مونږ د ۲-۴ معادی داستعمال څخه لرو :

$$E_y = \frac{F_y}{q} = \frac{3.60 \times 10^{-8}\ \text{N}}{-1.60 \times 10^{-19}\ \text{C}} = -2.25 \times 10^{11}\ \text{N/C}.$$

دبرقی ساحی جهت د $y$ په منفی جهت کی دی .

$(b)$ قوه د∝ په زری په لاندی ډول ده د۲-۴معادلی له مخی لرو:

$$F_y = qE_y = 2(+1.60 \times 10^{-19}\ \text{C})(-2.25 \times 10^{11}\ \text{N/C}) = -7.20 \times 10^{-8}\ \text{N}.$$

قوه د $y$ په منفی جهت کی ده ددی جهت مشابه د برقی ساحی جهت هم دی .ولی دالکترون دپاسه قوه دبرقی ساحی په مخالف جهت کی ده.

اود∝ په ذري قوه په الکترون باندې د قوي څخه دوه برابره لویه ده ځکه د ∝ د ذرې د چارج مقدار دوه برابره دالکترون د چارج دمقداردی.

## ۲-۳دنقطوی چارجونو برقي ساحه:

په دغه برخه کي موږ دنقطوی چارجونو برقي ساحه په نظر کی نیسو.لومړی یو منفرد چارج په نظر کی نیسو او بیا دانفرادي چارجونو (یومجموعه) یو سلسله یا ترتیب په نظرکي نیسو او مونږ دچارجونو دوامدار توزیع عمومیت ورکوؤ .که فرض کړو چی دیو $q$ نقطوي چارج څخه د $q_0$ یو مثبت ازمایښتی چارج د $r$ په فاصله کی پروت دی په $q_0$ باندی دعاملی قوی مقدار دکولمب دقانون له مخي عبارت دی له:

$$F = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{q_0|q|}{r^2}.$$

دازمایښتی چارج دساختمان او ځای له مخې دبرقي ساحی اندازه د۲-۳ معادلی څخه عبارت ده:

$$E = \frac{F}{q_0} = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{|q|}{r^2}. \qquad (2-6)$$

$E$ او $F$ دواړه د $q$ په خطی محور یو شان جهت لری پداسی حال کي که چیرته $q$ مثبت وی نو دواړه بیرون طرف ته او که چیرته $q$- مفی وي نوبیا دواړه داخل طرف ته هم جهت وی. په ۲-۳ شکل :دمثبت نقطو ي چار ج سره نږدې په مختلفونقطوکی دبرقی سا حي مقداراوجهت ښائی..



**۲-۳ شکل: د $E$ برقی ساحه د $q$ دمثبت نقطوی چارج سره نږدی په مختلفو نقطوکی ده نوټ: د $E$ جهت په هر ځاي کی په شعاعيي ډول د $q$ څخه بيرون قرار لري د $P_1$ او $P_2$ نقطو کی برقي ساحه چي د $Q$ څخه مشابه فاصله لري مساوي مقدار لري د $P_3$ په نقطه کي برق ساحه چی د $Q$ څخه يی فاصله د هغو دوه چنده ده او يو پر څلور د هغوي د مقدار ده**

دمنفي چارج په صورت کی پورته شکل څرنگه رسمولي شو؟د $N$ گروپ نقطوی چارچونود برقي ساحی $E$ دپيدا کولو لپاره په لاندي ډول عمل کوو:

1 – لومړی په هره راکړل شوي نقطه کي د $n$هرچارج لپاره چی موجودوی $E_n$ محاسبه کوو.

2 – راکړل شوی ټولی وکتوری ساحی سره په خپلو کي جمع کوو تر څو د $\vec{E}$ نتيجوي ساحه نقطي د پاسه د دي معادلي په شکل پيدا کوو.

$$\vec{E} = \vec{E}_1 + \vec{E}_2 + \vec{E}_3 + \cdots$$

$$\sum \vec{E}_n \quad (n = 1,2,3, \dots N) \qquad (2-7)$$

داجمع يوه وکتوری جمع ده د۲-۷ معادلی د ټو ل چارجونو لپاره ده(د **۴-۵معادلی** په شان).

**۲-۲نمونه ئی مسئله**:دهليوم په يوآيونايزشوی اتوم کی يعني ( چي له هغي څخه د دوو اليکترونونو څخه يو الکترون لري شوي دی)داليکترون او هستي تر منځ د بيلتون فاصله $26.5\ Pm$ ده. د برقي ساحي اندازه ئی پيدا کړی، که هسته د الکترون په موقيعت کي ځای ونيسي ؟

**حـــل** :مونږ **۲-۲معادله** استعمالو ، $q$ دهستی چارج دی چی برابردی $+2e$ سره :

$$E = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{|q|}{r^2} = \frac{(8.99 \times 10^9\ N\cdot m^2/C^2)[2(1.60 \times 10^{-19}\ C)]}{(26.5 \times 10^{-12}\ m)^2}$$
$$= 4.10 \times 10^{12}\ N/C.$$

دغه اندازه دهغی اندازی 8 برابره ده کومه چی دهایدروجن په یوالکترون باندی دبرقي ساحی په شکل لاسته راځی( ۲-۱جدول وګورئ ) ددغه زیاتوالي لامل دا دی چي:

۱: په هلیوم کي هستوي چارج د هایدروجن پرتله دوه برابره دی.

۲: اوهم په ایون لرونکي هلیوم کی الکترون هستي ته نږدي واقع دي.

**۲-۳نمونه ئی مسئله:** د ۲-۴ شکل ښئ چی د $q_1$ چارج $+15\mu C$ او د $q_2$ چارج $q_2 = +2.3\mu C$ وی په داسی حال کی چی اول چاج د $x$ دمحورپه مبداءکی قرارلری اودوهم چارج $x = L$ کی قرارلري چیرته چی $L = 13cm$ وی د $x$ په محور باندي د $P$ کومه نقطه کي برقي ساحه له صفر سره مساوي کیږي؟

**حــــل:** دغه نقطه به هرومرود چارجونو په منځ کي وجودلري ځکه چی په همدغه موقیعت کي ددواړو چارجونو یعني $q_1$ او $q_2$ له خوا په یوازمایښتي چارج باندی وارده شوی قوي یو د بل مخالفی وی که چیرته، $q_1$ په واسطه برقي ساحه $E_1$ او د $q_2$ په واسطه برقي ساحه $E_2$ وي ددغه دواړووکتورونو اندازه باید سرهم مساوي وي یا $E_1 = E_2$ :

مونږ ۲-۲ رابطی څخه لیکلی شو چي:

$$\frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{q_1}{x^2} = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{q_2}{(L-x)^2},$$

چیرته چی $x$ د $P$ دنقطی محوردی ددواړو خوا ودمربع جذرنیولو څخه وروسته د $x$ قیمت په لاندی توګه لاسته راوړو:

$$x = \frac{L}{1 \pm \sqrt{q_2/q_1}},$$

په پورته رابطه کي دجذر مربع علامه کیدای شي مثبت وی اویا منفي وي د $L$ او $q_1$اوهم د $q_2$ دعد دی ارقامو په وضع کوو سره ترلاسه کوو .

$x = 5.8cm$ او $X = -54.6\ cm$




**۲-۴شکل: د p په نقطه کی د $q_1$ او $q_2$ چارجونو برقی ساحه سره هم ساوی اویو دبل مخالفه ده نوځکه د $P$ په نقطه کی اصلی ساحه صفرده.**

(1) په اولني حل کی کومه یوه نقطه چی پیداءکړی وه دچارجونوتر منځ وه چی داحل زمونږ عوښتنه وه.

(2) دوهم حل چی پیداشوی وه یوه نقطه ددواړوچارجونوچپ طرفته وی په دی نقطه کی داصحیح ده چی $E_1 = E_2$ سره مگردساحی په همدې نقطه کی اوپه یوشان جهت کی دوکتوری جمع صفرکیدای نشی نوموږد دوهم حل څخه صرف نظرکوو

## برقی داپپول:

په کائناتوکی زیات شمیراجسام کولای شوپه اسانۍ سره ارزیابی کړو، لکه مونږ چی په دغه څپرکی کی مخکی یادونه کړیده . ځینی اجسام مختلف قسم خواص لری .مثلاً ځینی اجسام داسی یوخاصیت لری چی مساوی مثبت اومنفی چارجونه لری .چی د $d$ په فاصله کی یوله بله څخه قرارلری.خوبیاهم دهغی ابتدایی چارج ($Net\ Charge$) وجودنلری.دمثال په ډول یوایون لرونکی مالیکول لکه $Nacl$ په لوړه تودوخه کی دبخاریاغازپه شکل دچارج له مخی خنثی دی،خو بیا هم هغه $Na^{+}$ ایون مثبت فرض کیږی اود $Cl^{-}$ دایون سره یوځای کیږی.ددی پیښی بیلگه داوبومالیکولونه دی چی د ډیروموادودمنحلیدوسبب گرځی.

تعریف: ددوه مساوي اومخالفوچارچونوترکیب ته چي یوله بل څخه په یوه فاصله کي قرارولری برقي دایپول یا *Electric Dipole* ویل کیږي.

په هغه رابطوکی ، کومه چي مونږته برقي دایپول ښایي، مونږدی نتیجی ته رسیږوچي په هره برخه باندي د $q$ چارج اندازه اودهغوی ترمنځ دجدااوالی فاصله $d$ اکثره وخت یوځای ذکرکیږی یعنی دچارج اوفاصلی دمقدارونودحاصل ضرب څخه حاصلیږی

$$p = q.d \qquad (2-8)$$

.

چي همدی مقدار ته مونږ د $P$ برقي دایپول مومنټ ویلای شو -دغه مقدار دوکتور په حیث کار کوی مونږ وکتوری برقي ډایپول مومنټ داسی تعریفوو چي اندازه به یی $P = q.d$ او جهت دمنفی چارج څخه دمثبت چارج په طرف به یی دهغه لیکی په امتداد وی چي دواړه چارجونه سره وصلوی $a$**۲.۵**شکل برقي ډیپول او هغه وکتوری برقي دایپول مومنټ راښایي دمثال په ډول په سودیم کلوراید کی په هر ایون باندی د $q$ چارج اندازه $e$ده او د جدایي اندازه شوی فاصله $0,236\ nm$ ده نو پدی اساس د مالیکول دایپول مومنټ په لاندی ډول دی:

$$P = ed = (1.60 \times 10^{-19} C)(0.236 \times 10^{-9} m)$$
$$= 3.78 \times 10^{-29}\ C.m$$

اندازه شوی مقدار $3,00\ x10^{-29}\ C.m$ دی. دغه اندازه ښایي د سودیم څخه الکترون په مکمله توګه لرې شوی نه دی او د کلورین سره تړلی دی –تر یو معین حده پوری الکترون دسودیم او کلورین سره تړلی دی .تر یو معین حده پوری الکترون د سودیم او کلورین تر منځ ویشل شوی دی-او په نتیجه کی یی دایپول مومنټ رامنځته کړی که څه هم اندازه یی دتوقع برخلاف کمه ده، مونږ اوس د $E$ برقي ساحی دایپول په $P$ نقطه کی د $x$ په فاصله چي ددایپول په نیمایي کی قرار لری څنګه چي په $b$**۲-۵** شکل کی ښودل شوی پیدا کوو .




۲-۵ شکل،

مثبت او منفی چارجونه $E_+$ او $E_-$ برقی ساحی رامنځته کوی ددواړو برقی ساحو اندازه د $P$ په نقطه کی سره یو شان ده ځکه چی دغه د $P$ نقطه له د واړو چارجونو څخه مساوی فاصله لری همدارنګه $b$۲-۵ شکل مونږ ته راښای د $P$ په نقطه کی د$E_+$او$E_-$ برقی ساحو جهتونه چه د قوی دمقدار پواسطه ښودل شوی .د $P$ په نقطه کی دمجموعی برقی ساحي دپیداکولو لپاره په لاندی ډول۲-۷معادلې دوکتوری جمع په واسطه حاصلوو :

$$\vec{E} = \vec{E}_{-} + \vec{E}_{-}.$$

د۲-۷معادلی څخه د هر چارج څخه دبرقی ساحو اندازه عبارت ده له:

$$E_+ = E_- = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{q}{r^2} = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{q}{x^2-(d/2)^2}. \qquad (2-9)$$

دا چی $E_+$ او $E_-$ برقی ساحی یو شان اندازه لری او هم په یو شان زاویه $\theta$ کی پراته دی چی د $z$ جهت کې هم ښودل شوي، د $X$ اجزاء د ټولی ساحی لپاره:

$$E_+ \sin\theta - E_- \sin\theta = 0$$

ټوله ساحه $\vec{E}$ ده د دی دپاره چی یوازی د $z$ د اجزاؤ دمقدار د اندازې څخه لرو:

$$E = E_+ \cos\theta + E_- \cos\theta = 2E_+ \cos\theta \quad (2-10)$$

له شکل څخه مونږ ګورو چی د $\theta$ دزاویې کوساین په لاندی ډول څرګندیږی:

$$\cos\theta = \frac{d/2}{\sqrt{x^2 + (d/2)^2}}.$$

که۲-۹ رابطه په۲-۱۰ کی وضع شی نو پلاسی راوړو چی:

$$E = (2)\frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{q}{x^2 + (d/2)^2}\frac{d/2}{\sqrt{x^2 + (d/2)^2}}$$

یا

$$E = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{\mathrm{p}}{[\mathrm{x}^2 + (\mathrm{d}/2)]^{3/2}} \qquad (2-11)$$

اکثره په۲-۸ رابطه کی $p = qd$ د دایپول مومنټ استعمال کړو نود۲-۱۱ رابطه په لاس راځی.

نـوټ:هغه مسله چی داستوانی مشابه د $z$ محور لپاره لرو، هغه داده چی مونږ باید د $x$ محور انتخاب کړو چی دهر یوه جهت د ډایپول په محور عمود وی، او ساحه ئی د۲-۱۱ په رابطه کی راکړل شوی وی، بعضی وختونه مونږ د $p$ په نقطه کی د یو برقی ډایپول برقی ساحه معلوموؤ کومه چی $x$ فاصله ئی له دیپول څخه ډیره زیاته ده په دی صورت کی مونږ ددوهمه درجه مساوات ($Binomial\ equation$)دانکشاف په مرسته په لنډه توګه د دایپول ساحه پیداء کولای شو:

$$(1 + y)^n = 1 + ny + \frac{n(n-1)}{2!}y^2 + \cdots.$$

راځئ چی ۲-۱۱ رابطه د دوهم ځل لپاره داسی ولیکو:

$$E = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{p}{x^3}\frac{1}{[1 + (d/2x)^2]^{3/2}}$$
$$= \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{p}{x^3}\left[1 + \left(\frac{d}{2x}\right)^2\right]^{-3/2}$$

دانکشاف څخه وروسته داسی لیکو:

$$E = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{p}{x^3}\left[1 + \left(-\frac{3}{2}\right)\left(\frac{d}{2x}\right)^2 + \cdots\right].$$

اوس که چېرته $d \ll x$ وي نوداکفایت کوي چې یواځې اولنۍ برخه یې په قوس کې ولیکونودبرقی ساحی داندازې لپاره چی کوم فورمول ارایه کیږي هغه دډایپول په یوه خاصه نقطه کی دمنځنی‌مستوی په واسطه دلاندی رابطی په شکل افاده کیږی:

$$E = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{\mathrm{p}}{\mathrm{x}^3}. \qquad (2-12)$$

د $z$ محورپه اوږدوکښې هم مشابه حالت رامنځ ته کیږی$b$**۲-۵** شکل کی د $z$لومړي مثال ته مراجعه وکړئ یوه بله عمومي نتیجه داده چی دساحی په هره نقطه کی $x,z$ هم محاسبه کیدلای شی ددی لپاره دوهم مثال وګورئ . په ټولوحالاتوکی ساحه دفاصلی په نقاطوکی $r$ د$\frac{1}{\mathrm{r}^3}$ څخه فرق کوی. دادډیپول دساحې لپاره یومشخصاتي نتیجه ده . ساحه $\frac{1}{r^3}$ د نسبت په چټکۍ سره توپیرکوی دچارجونونسبتاًپیچلې ویش هم شتون لری چې برقي ساحه ئې ورکوي کوم چی د $r$ دطاقت په تغیرسره فرق کوی دبرقی ساحی دتغیراتودمثالونولپاره 11 تمرین او4 مثال ته مراجعه وکړې په همدی ترتیب ددوه قطبیت، $Xz$ ساحی د محور، په اطرافوکی هم لاسته راځی ددی دوضاحت لپاره د$b$**۲-۵** شکل $z$ محوراوله مسئله وګورئ.

همدارازپه $x,z$ مستوي کی بله عمومی نتیجه داده چې ساحی په هره نقطه کی دمحاسبې وړدی.د دی دوضاحت لپاره پورته ذکرشوی مرجعی دوهمه مسئله وګورئ.په ټولوحالاتوکی ساحه په یوه خاصه نقطه کی د $r$ دیوی مشخصی فاصلی نه تر $1/r^3$ دایپول پوری فرق کوي چی دادبرقی دایپول دساحی مخصوصه نتیجه ده چی ساحه په ډیرزیات سرعت سره دفاصلې په واسطه تغیرکوي نسبت $1/r^2$ ته.دلته یوڅونوریشونکی چارجونه هم موجوددی چی برقی ساحه تولیدولای شی کومه چی په لوړه سطحه د$r$ دپه برعکس طاقتونوسره فرق کوی ددی لپاره څلورمه .مسئله او 11 تمرین وګوری.مثلاًد $1/r^4$ دساحی دتغیراتولپاره برقی څلورقطبیت جوړوی.

### ۲-۴ دمتمادي چارجونو دويش برقی ساحه:

په ۲-۵ برخه کې موهغه قوه چې په نقطوي چارجونو اريديدله مطالعه کړه يعنی هغه مسلسل ويشونکی چارجونه مطالعه کړل ، کوم چی دلايتناهي چارجی زرود مجموعی په حيث فرض کړی شوي وی دغه چارجونه مونږدنقطوي چارجونوپه حيث فرض کړيدي.
اوبيا د دغه چارجونو انتګرال نيول کيږی تر څوواردده قوه پيدا کړو.

د متواترو ويشل شويو چارجونو د برقی ساحی د معلومولو لپاره په لاندی ډول عمل کوو لومړی مونږ ويشل شوی چارجونه د $dq$ په ډيرو وړو وړو برخو باندی ويشو چی دلته $dq$ کيدای شي لاندې حالتونه ولري :

$$\sigma dA \text{ او } \rho dv, \lambda ds$$

1.که چارج په خطي شکل سره ويشل شوي وي نوبيا($\lambda$ دخطي چارج کثافت اويا چارج دفاصيلي په واحد)

2.که چارج په يوه سطحه ويشل شوی وی نوبيا($\sigma$ د سطحی چارج کثافت دي اويا چارج په واحد د سطحی)

3.که چارج په حجمی شکل سره ويشل شوی وی نوبيا ( $\rho$ دحجمی چارج کثافت ياچارج په واحدحجم وی ) .

که چيرته $dq$ يونقطوی چارج وي، نود $P$ په نقطه کی دويشل شويو چارجونو دبرقی ساحي دمعلومولولپاره له لاندې رابطی څخه استفاده کوو:

$$dE = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{|dq|}{r^2}. \qquad (2-13)$$

د $dE$ دوکتورجهت د $dq$ دعلامی په وسيله تعينيږی دهغې قوې دجهت په اساس چی $dq$ به يی په يومثبت ازماينښتي چارج باندې د $P$ په نقطه کی واردوی

د $P$ په نقطه کی دټولو ويشل شويو چارجونو لاسته راغلی برقی ساحه دلاندی رابطی په مرسته ترلاسه کيږی:

$$\vec{E} = \int d\vec{E}. \qquad (2-14)$$

دوضعیه کمیاتوپه سیستم کې دمرکبوله مخی د ۲-۱۴ معادله دلاندې دری مرکبولپاره لیکو:

$$E_x = \int dE_x, \quad E_y = \int dE_y, \quad E_z = \int dE_z, \qquad (2-15)$$

لکه څنګه چې مونږپه لاندې ډول وکولای شودتناسب په اساس محاسبه نوره هم ساده کړوچی یویادوه انتیګرالونه له منځه ځی اویاهم قیمتونه یې سره مساوي کیږی.

## دچارج منظم خط :

دچارج یوشان لیکه د ۲-۱۳ معادلی څخه د ۲-۱۵ معادلی پوری، دمثالونودتطبیق په حیث مونږبرقی ساحې ته دچارجونودلوی لیکی په توګه فکرکولایشو. (مثلاًیوه نری، چارج شوی میله) که دیوی نری، چارج لرونکی میلی برقی ساحه په نظرکی ونیسوچی اوږدوالی یی$L$ اود مثبت خطی چارج کثافت یی $\lambda = \frac{q}{l}$ وی چیرته چی $q$ هغه مجموعی چارج دی چی دغه میله یې لري .د ۲-۲ هندسی شکل په واسطه محاسبه کیږي.مونږغواړوچې برقي ساحه د $P$ په نقطه کې پیداکړوچی له میلي څخه د $y$ په فاصله دعمودی محورپه نیمائی کی قرارلری (د $y$ محورپه مثبت جهت کې)د $dE$ برقی ساحې اندازه د $P$ په نقطه کی $dq$ عنصري چارج دمقدارپه وسیله د ۲-۱۳ رابطی په واسطه اندازه کیږی:




**۲-۲شکل**: د يوي چارج لرونکی ميلي د برقي ساحه د $P$ په نقطه کي د $dq$ په شان د ټولو عنصري چارجونو مجموعي تاثير.

مونږه محاسبه کولي شوچی $E_x = o$ ځکه چی دميلی دپاسه په هيڅ ځاي کي $dq$ عنصري چارج $d\vec{E}$ مرکبي د $x$ په محور لاسته نه راځي، همدارنګه مونږپوهيږوچی $E_z = o$ دی ځکه چی دمثبت $Z$ دهر $dq$ لپاره په $-z$ کی هم $dq$ موجوددی . کله چی له دوه ازمايښتی چارجونو څخه لاسته راغلی د $dE$ وکتورونه سره يوځای کړونو $z$ له منځه ځی. د $P$ په نقطه کی يواځي اويواځی $E_y$ له صفره سره مساوي نه دی په دی اساس مونږلروچی:

$$dE_y = dE\cos\theta = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{\lambda\, dz}{y^2+z^2}\frac{y}{\sqrt{y^2+z^2}}.$$

چيرته چی مونږ ۲-۱۳ رابطه د $d\vec{E}$ لپاراو $r^2=y^2+z^2$ لپاره استعمالوؤ

$Cos\,\theta=\frac{y}{r}$ , $dq = \lambda\, dz$ نود $P$ ټوله ساحه عبارت ده له :

$$E_y = \int dE_y = \int_{-L/2}^{+L/2}\frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{\lambda y\, dz}{(y^2+z^2)^{3/2}}.$$

$z$ دانتيګرال څخه بيرون وباسواود $y$ سره چی ثابت دی يوځای کوومونږپه لاس راوړو ( په اوله ضميمه کی 18 انتيګرال وګورئ)

$$E_y = \frac{1}{4\pi\varepsilon_0} \frac{\lambda L}{y\sqrt{y^2+L^2/4}} \qquad (2-16)$$

دا رابطه د $y$ دمحورپه مثبت جهت باندی د $P$ په نقطه کی برقی ساحه چی دخطی چارج په واسطه پیدا شوي رابنايئ.

نوټ: دانتیجه مونږکولی شود ۱-۱۵ رابطی څخه مستقیماًپه لاس راوړودهغه قوولپاره چه دچارج دخط او $q_0$ نقطوی چارج په منځ کی چی $\lambda.L$ په $q$ عوض شی ۲-۳ رابطه استعمال شی$E_y = F_y/q_0$ حاصلیږی .لکه څنګه چی مونږپه برقی دایپول کی یادونه کړی وه،دلته هم د $z$ په محورباندی سلندری توازن رامنځ ته کیږی اومونږداهم کولای شوچی د $y$ محوردمیلی په هرجهت باندی دمیلی سره عمود انتخاب کړو۲-۷شکل د$x,y$په مستوی کی د یوانوخت مثبت چارج لرونکی میلې برقي ساحه ښائ لکه څنګه چی مونږقوه په (لومړی) څپرکی کی محاسبه کړه نوپه هغی کی دامهمه وه چی برقی ساحه محاسبه کړواوثابته کړوچی هغه صحیح لیمیت لری کله چی $y \to \infty$ ، ۲-۱۲ معادله دبرقی ساحی نږدیوالی نقطوی چارج ته ښائ. پوهیږوچی:

$$E_y = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}.\frac{q}{y^2}$$



۲-۷شکل.

چیرته چی$q = \lambda.L$ دی کله چی دارزیابی لاندی نقطه په خط کی حصاره وی او $y$کوچنی وی د $L$ په مقایسه نود ۲-۱۲ معادلی دلیمټ څخه خبره کیږی په هغه

صورت کی چی $\lambda$ثابته وی اود $Eq$ لیمټ ونیسوکله چی $L \gg y$ وی نوپدی حالت کی دبرقی ساحی لپاره لاندی رابطه لرو:

$$E_y = \frac{\lambda}{2\pi\epsilon_0 y} \qquad (2-17)$$

ساحه مستقیماً دمیلی څخه فاصلي نیسی اوپه هماغه فاصله کی بیرته میلی ته راګرځی د دپورته رابطی څخه تاسوکیداشئ په تعجب کی شئ دساحی دحسابولوڅخه په لایتناهی خطې چارجونوکې، لازمه خوداوه چی ساحه په محدودچارج کي موجوده وایی.

کله چی دهرحقیقي خطې چارج لپاره فقط محدوده فاصله وی، څرنګه چی نقطی په خط کی بندی اولری وی یودبل څخه، ۲-۱۷رابطه مونږته راښایی چی ګټورنږدیوالي برقی ساحی ته د۲-۱۷او۲-۱۲ رابطودنتیجی په منځ کی فرق کله ناکله بی معنیً وی . دغه تقریبی نتیجی پدي حالت کې ډیری فزیکی لیدنی ورکوی .ځکه چی د $E$ تغیردمیلی دفاصلی سره زیات بی ځنډه ښکاري.

**دچارج یوه منظمه حلقه ($Disk$) :**

داچی مونږپه برقی ساحی بحث اوخبری وکړو .د $R$ په شعاع حلقه منظم د چارج کثافت انتقالوی.داضرورنه ده چی مکمله محاسبه وکړود۲-۱۳ رابطی په واسطه مونږهغه قوه محاسبه کړی .چی د $q_0$ په نقطوی چارج باندی عمل کوی .هغه قوه چی دحلقی چارج یی د $q_0$ په نقطوی چارج باندی دحلقی په محورباندی وارده وی د۱-۱۲ رابطی په واسطه محاسبه کیږی په ۱-۳ رابطه کی $\overrightarrow{E_z} = \vec{F_z}/q_0$ مونږکولای شوچی برقی ساحه په هغه نقطهکی پیداءکړوچی د $z$ په مثبت جهت کی ده. مناسبه ده چی دیوی حلقی چارج پهمستقیمډول د۱-۱۲رابطی څخه حاصل کړو:

$$E_z = \frac{\lambda}{2\epsilon_0} \frac{Rz}{(Z^2+R^2)^{3/2}} \qquad (2-18)$$

چیرته چی مونږ$q = \lambda(\pi R)$ استعمالووبرقی ساحه مستقیما دحلقی دمحورپه اوږدوکی (د$z$محور)اولری دحلقی څخه ده ، ۲-۱۸ رابطه د $z+$ او $z$ - لپاره صحیح

ده که چیرته حلقه منفی چارج شوی وی دساحی نقطی دمحورپه اړدوکی دمحوردجهت سره مخالف جهت لری په مشابه طریقه مونږکولای شوچی دچارج په یوه صفحه کی برقی ساحه

د۱-۱۷ رابطی څخه پیداء کړو :

$$E_z = \frac{\sigma}{2\epsilon_0}\left(1 - \frac{z}{\sqrt{Z^2+R^2}}\right) \qquad (2-19)$$

مونږدلته دیوی صفحی د برقی ساحه لپاره دسطحی چارج دکثافت اصطلاح چی چارج ئی $q = \sigma A = \sigma(\pi R^2)$ دی استعمالوو دا د یوی نقطی ساحه ده چه د Z د محورپه مثبت جهت کی ده چی د صفحی څخه د $z$ په فاصله کی واقع دی که دساحی نقطی دصفحی څخه لری وی،که دغه صفحه مثبت چارج شوی وی په۲-۱۹ رابطه کی صرف $z > o$صحیح دی دابه څنګه اصلاح شی که چیری $P$ د $Z$ محورپه منفی لوری کی واقع وی؟

**دچارج نامحدوده قشر($An\ Infinite\ Sheet\ of\ Charqe$ ):**

راځی چې اوس د ۲-۱۹ رابطې دلمیټ حالت ترغورلاندی ونیسوچی $R \to \infty$ وی ددی په خاطرچي چارج لرونکې حلقی دچارجونوغیرمعینه یانامحدوده ساحه جوړه شی مونږفرضووچې څرنګه $R$ زیاتوالي کوي، مونږحلقې ته چارج اضافه کووددي په خاطرچې ($\sigma$) ثابته پاتی شی . ددغه شرایطوپه نظرکی نیولوسره مونږ ۲-۱۹رابطه په لاندې شکل سره لیکلاي شو :

$$E_z = \frac{\sigma}{2\epsilon_0} \qquad (2-20)$$

پورته نتیجه یوډیره ګټوره ده ځکه کله چی مونږحلقی ته نژدی یونودحلقی منظم چارج دکثافت لپاره داتقریباًمناسبه اندازه ده، اوکه چیري مونږدحلقې له کونجونوڅخه لری یونوهمدغه نتیجه ګټوره بریښي.مونږدانشوویلایی چی دلته چارج په یوه دایروي، مستطیلی،مربعي اویاکوم بل شکل سره خپریږی اویاهم په یوغیرمنظم شکل سره خپریږی .پورتنې نتیجه دهری پراخه منظمی چارج لرونکی صفحی یاورقی لپاره

ضروری اومهمه ده .داکومه پروانلری چی شکل یی هریووی. دلته برقی ساحه یومنظمه اندازه لري(اودمثبتی چارج شوی صفحی یاورقی ) لپاره دصفحی چارج خارج ته رهنمائ کوی.

## دچارج منظم شکله کروي قشر

($Uniform\ spherical\ shell\ of\ charqe$):په۱-۵ کي مونږدمنظم چارج لرونکی کروی قشردوه خصوصیات اوځانګړتیاویی ترلاسه کړی، وي اودا په ازماینښتي چارج باندی په داخل کی هیڅ قوه نه وارده وی،اوپه ازماینښتی چارج باندی په باندنیونقاطوکی چی کومه قوه وارده وی له هغه قوی سره برابره ده لکه دټول سطحی یاقشرټول چارج چی دهغی په مرکزکی په یوه نقطه کی موجودؤو .دهغه دوه خصوصیاتو په اساس مونږکولای شوچی دیونری منظم چارج لرونکی قشرچی چارج ئی $q$او شعاع ئی $R$ ده پیداکوواو س فرضوؤ چی دواړه مثبت دي.په دی صورت کی دقشر $Shell$ له مرکزڅخه په مختلفوفاصلوباندی دبرقی ساحی لپاره مونږلاندی رابطی لرو:

$$E = 0 \qquad (r < R). \qquad (2-21a)$$

$$E_r = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{q}{r^2} \quad (r \geq R). \qquad (2-21b)$$

دلته کوچني $r$ په برقی ساحی کی دساحی دشعاع دجهت نمایندګی کوی،

دسطحی په داخل کی برقي ساحه صفرده په باندینیونقاطوکی برقی ساحه دنقطوي چارجونوپه څیرده نوځکه دابیلګه په۲-۳ شکل کی ښودل شوی برقی ساحی په شان ده.

مونږدچارج لرونکي سطحودخصوصیاتوڅخه په استفادی سره کولای شوترڅوپه یوه دایره کی چه شعاع یی $r$ ده، په دایروی ډول دویشل شویوچارجونوبرقی ساحه معلومه کړود کارداسانتیا لپاره داسی فرض کووچی ددایری په داخل کی چارجونه په منظمه توګه ویشل شوي دی که چیرته په کره کی د حجمی چارج کثافت ثابت وی.




۲-۸شکل.

او ټول چارج ی $Q$ وی نو حجمی کثافت ئی عبارت دی:

$$\rho = \frac{Q}{\frac{4}{3}\pi R^3}. \qquad (2-22)$$

فرض کړی چی دغه کره مونږ په ډیرو نریو قشرونو باندي ویشو چی شعاګانی ($radius$) په $r$ او د شمیرزیاتوالی (ګنوالی) په $dr$ سره وښایو ،که چیرته مونږ یو ازمایښتی چارج د $r$ په فاصله باندی دقشردمبداء څخه داخل کی کیږدو ( $r < R$ ) په دی موقیعت کی په امتحانی چارج برقی ساحه دقشردکوچنیو شعاع ګانو لپاره $a$۲-۲۱ معادلی څخه استفاده کووچی په دی حالت کی دټول داخلی قشردپاره $E = o$ او دلویو شعاع ګانو لپاره د $b$۲-۲۱ معادلی څخه استفاده کوو.چی دقشرونودساحی ټول تعداد د $r$ دټولو کوچنیو شعاګانو لپاره په مبداء کی دنقطوی چارج په شان دی چی قیمت یی عینی دابتدایی چارج دساحی د قیمت په شان دی چی دتعادل په صورت کی دکری په داخل کی مجموعی چارج $q$ او شعاع ئی $r$ وی کوم چی دچارج دحجمی کثافت څخه راکړل شوی دی نود $r$ په شعاع دقشر دحجمی کثافت له مخی مجموعی چارج مساوی دی د :

$$q = \rho(\frac{4}{3}\pi r^3) = Q\frac{r^3}{R^3}, \qquad (2-23)$$

که دچارج دکثافت قیمت ۱-۲۲ معادلی څخه په $b$۲-۲۱ معادله کی وضع شی نود برقی ساحی په په دی موقیعت کی دکری په داخل کی په شعاعی ډول دبرقی ساحی اجزاء راکوی یعنی :

$$E_r = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{Qr}{R^3} \qquad (r < R). \qquad (2-24)$$

که فرض کړوچې $Q$ منفي وی نو دبرقي ساحه جهت داخل طرف ته دی اوکه $Q$ مثبت وي نوبیا دبرقي ساحی جهت بیرون طرف ته قرارلري که چیرته $r > R$ نوبیابرقي ساحه عیناً داسې ده لکه په ۲-۲معادله کی چې د $Q$ دنقطوی چارج د برقي ساحی پشان ده چی چارج په مبداءکې قرارولري.نـوټ :که چیرته $r < R$ نوبیاد $r$ په خطی ډول سره برقي ساحه زیاتوالي کوي اوکه چیرته $r > R$ نوبیاد $1/_{r^2}$ په څیرکموالی کوي۲-۸ شکلد برقی ساحی مقدارد $r$ په تابع راښائی.

**۴-۲نمونه ئی مسئله**:که چیرته دیوپلاستکی میلي اوږدوالي $L = 220\ cm$ اوشعاع $R = 3.6mm$ وي اود $q$ منفي چارج چی مقداریی $3.8 \times 10^{-7}c$ دی په یو نواخت ډول ئی دسطحی دپاسه خپور شوی وی د پلاستیکې میلې دمنځینۍ نقطې سره نژدې برقي ساحه څومره ده اوهم دمیلې د سطحي په یوه بله نقطه کې برقي ساحه څومره ده؟

**حـــل** :اکثراًچی دمیلی اوږدوالی بی نهایته اوږد نه وی د یوی نقطی لپاره د هغی دسطحی دپاسه او نږدی دمینځنۍ نقطی سره ئی مؤثروالی ډیراوږد دی نوموړ هغه فقط **۲-۱۵** معادلی داستعمال څخه دمیلی دپاره ی د چارج خطی کثافت عبارت دی له:

$$\lambda = \frac{q}{L} - \frac{-3.8 \times 10^{-7}\ C}{2.2\ m} = -1.73 \times 10^{-7}\ C/m.$$

د۲-۱۷ معادلی څخه د $y = 0,0036\ m$ لپاره لرو:

$$E_r = \frac{\lambda}{2\pi\epsilon_0 y}$$
$$= \frac{-1.73 \times 10^{-7}\ C/m}{(2\pi)(8.85 \times 10^{-12}\ C^2/N \cdot m^2)(0.0036\ m)}$$
$$= -8.6 \times 10^5\ N/C.$$

منفی علامه راښایی چی میله منفی چارج شوي ده چی دبرقی ساحی جهت یی په شعاع توګه داخل لوری ته دی او دمیلی دمحورلوری ته متوجه دی.په خشکه هواکي چیرته

برقي ساحه $Ey = 3.10^6 N/C$ وي، نوبیاشغلي رامنځته کیږی خودلته چی مونږکوم مثال حل کړددي په خاطرچې شعلې رامنځ ته نه شي نومونږچی کومه برقي ساحه ترلاسه کړه هغه دپورته ساحې $Ey = 3.10^6 N/C$ څخه د $4 - 3$ فکتورپه اندازه کمه ده.

## ۲-۵دبرقی ساحی خطونه (***Electifield Lines***):

دبرقی ساحی مفکوره دلومړی ځل لپاره میکایل فرادی ($Mcheal\ Farady$)پواسطه په (19) پیړی کی وپیژندل شوه.هغه دبرقی ساحی ریاضیکی شکل ونه ښود بلکه ددي پرځای ګرافیکی شکل ته وده ور کړه په کومه کې چې هغه تصور کاوه چې دبرقی چارج شاوخوا ساحه شاید قوی کرښی وی نن ورځ موږ هیڅ کله هم دقوی دکرښو په مفکوره باندی یقین نه شوکولاي کومه چې $Farady$په هغه وخت کی پری فکر کړی وه .مګر مونږ یقین کوو او دهغه په څیر د برقی ساحی لپاره یوه مناسبه او اسانه لاره تصور کوو چي هغه دبرقی ساحی خطونه دی.




۲-۹شکل($\boldsymbol{a}$):په یوه منظمه ساحه کی دبرقی ساحی خطونه.($\boldsymbol{b}$) : په غیر منظمه ساحه کی د برقی ساحی خطونه.

$a$۲-۹شکل دبرقی ساحی خطونه ږراښائی کومه چې په یوه منظمه برقی ساحه کی قرار لری دامو باید په پام کې وی چې خطونه یوبل سره موازی او په یوه برابره ساحه کې سمیږی ، $b$۲-۹شکل دهغو خطونو ښکارندوي دي چې یوه غیر منظمه ساحه ښیۍ دقانون یا قرار داد له مخی مونږ دساحی خطونه دلاندی خاصیت له مخی رسموو $Tangent$ دبرقی ساحی د خطونو چی په مستقیم ډول دهری نقطی څخه تیریږی

په هغه فضاء کی دبرقی ساحی جهت په هغه نقطه کی رابښائی.په$a$۲-۹ شکل کی د مثال په ډول دبرقی ساحی لوري د $P$ په نقطه کې عموداً پورته طرفته ده چې دساحی خطونو ئی ($Tangent$)دی ځکه ساحه یو نواخت ده ،دبرقی ساحی خط ددی پراخی فضاء په هره نقطه کی همدا جهت لری ،$b$۲-۹شکل کوم چی یو نواخته ساحه نه ښائی د برقی ساحی جهت ئی د $P_1$او $P_2$ په هره نقطه کی متفاوت دی ، دهر حالت لپاره دبرقی ساحی خط مستقیماً دهغه نقطی څخه مماس تیریږی دبرقی ساحی دخطونو لپاره چی دارنګه خواص لری .باید داسی رسم شی چی: دبرقی ساحی خطونه د مثبت چارج څخه شروع او په منفی چارج ختم شی دمثال په ډول ۲-۱۰شکل دیوی مثبتی چارج لرونکی نقطی برقی ساحی خطونه ښیی. چی دخطونو جهت ئی په شعاعی ډول پورته طرفته دی .نو ځکه په هره نقطه د $P$ کې ساحه شعاعی ده.

ـ د ساحی خطونه له مثبت چارج څخه شروع کیږی او مخ پر بی نهایت یالاېتناهی پراختیامومي تر هغه چې منفی چارج ته آخر کې ورسیږي.

ـ دساحی خطونو ددی مخالف جهت لری که چیری چارج منفی وي (یعنی په شعاعی ډول داخل طرفته) وی.

یو وروستنی خاصیت دبرقی ساحی خطونو دادی چې:

ـ دبرقی ساحی مقدار په هره نقطه کې متناسب دی د ساحی دهغه شمیر خطونو سره په واحد دهغه سطحی، چی په هغه برخه کی ئی عموداً قطع کړی ده .

یا په بله ژبه هر څومره چې دبرقی ساحی خطونه زیات هری نقطی ته نژدی وي نو په هماغه اندازه به په هغی نقطه کې ساحه هم غښتلی (قوی) وي. $b$۲-۹شکل ددی لارښونه مونږ ته کوی چې دساحی اندازه او مقدار زیات دي درسم ښکتنی برخه کې نسبت پورتنی برخي ته. په $a$۲-۹شکل بیا دا راښای چې دساحی دخطونو واقع کیدل په ټولو نقطو کې یو شان دی.ددی څخه څرګندیږی چی هره برقی ساحه په هره نقطه او هر چیری یوه اندازه قدرت لری .دمثال په ډول ۲-۱۰شکل د مثبت نقطوی چارج سره نږدی دبرقی ساحی خطونه یو بل سره نږدی دی او د چارج څخه لری دبرقی ساحی خطونه دیوبل څخه لری دی.




۲-۱۰شکل.




۲-۱۱ شکل :په دی شکل کی د برقی ساحی خطونـه نژدی یوی نازکی او هم شکله چارج لرونکی صفحی ته واقع دی.او مونږ دصفحی په کنج کی گورو چی دا خطونه هم جهته او عموداً واقع دی.



**۲-۱۲ شکل** :دبرقی ساحی خطونه دیو برقی.قطبیت سره واقع دی.د **2-12 شکل** قطبیت ته نژدی ساحی راښيي یعنی دا واضح کوی چی څرنگه دبرقی ساحی خطونه له مثبت چارج څخه شروع او په منفی چارج باندی ختم کیږی



**۲-۱۳ شکل** :دا**شکل** مونږ ته دبرقی ساحـــی **خطونه** چی دوه یو شان او مثبت **چـــارجونو** ته نـــژدی واقع دی راښیي۔

نـوټ:دبرقی ساحی دخطونو تراکـم د دوه چـارجـونـو پـه منځینـی ساحـه کـی.په**۲-۱۲**شکل کی ډیر او په **۲-۱۳**شکل کی کم دی.او همدا رنگه په دایـپول کـی بـرقـی ساحه ډیـره بـرخه دربر نـیسی نـظـر دوه مثبتو چارجونو ته .



**۲-۱۴ شکل:** پدی انځورکی دوه نمونـی دبرقی ساحی ښکاری .چی پـه "*a*"شکـل کی چارجداره صفحه موازی بـرقی خطـونه تولیدوی.او په "*b*"شکل کی دوه یوشان ولی مختلف برقی چارجونه واقـع دی.چـی داپیول ته ورته دی.

په دی شکل مډلونـو جـوړولو سره مـونږ کولای شو چی دبرقـی ساحـی خطونـه پـه ښه شکل وګورو ، او داهم بایـد پـه یـاد ولرو چی دا ډول انځورونه دوه بعـدی دی.او حقیقی شکل چی دری بعدی وی .او دخطونـو فاصله په دوه بعدی او دری بعدی کی یـو شان نه ده .او همدارنګه برقی ساحی خطـونـه کیدای شی هم شکله او یاهم غیرمنظم وی.

## ۲-۲ په برقی ساحه کی نقطوی چارج:

په مخکینۍ برخه کی مو ولیدل چی:

چارج ⟷ ساحه ⟷ چارج.

په اوله برخه کی مونږ د چارجونو متقابل اثر او د چارج حسابول ارایه کړل او د برقی ساحی نتیجه څه ده ؟ په دی او ورستنۍ برخه کی به مونږ دوهم قسمت مطالعه کړو .چی څه به واقع شی که چیرته یوه چارجداره زره په یوه معلومه برقي ساحه کی کیږدو ؟

د ۲-۴شکل څخه لرو چی د $q$ په یوه برقی چارج باندی د $\vec{E}$ په یوه برقی ساحه کی د $\vec{F}$ برقي قوه وارد یږي چې عبارت ده له:

$$\vec{F} = q\,.\vec{E}$$

دبرقی زری دحرکت مطالعه په برقی ساحه کی د نیوټن ددوهم قانون په مرسته مطالعه کولای شو چی عبارت ده له:

$$\sum \vec{F} = m\vec{a}$$

چی لاسته راغلی قوه په برقی زرو، به برقی قوه او یا بل ډول قوی وی .لکه څنګه مو چی دنیوټن په قانون کی لوستلی وه.په هغه حالت کی پورتنۍ موضوع ښه روښانه کولای شو چی قوه ثابته فرض کړو، مونږ په دی څپرکی کی هغه حالت ته مراجعه کوو چی قوه او برقی ساحه پکی یونواخته او ثابته وی، دیو لوی یونواخت چارجداره قشر په محوطه کی دتکرار په شکل پورته عملیه اجراء کیږی لکه په۲-۴ برخه کی چی مونږ پری بحث کړی وه ، دیو لوی زوج متحدالشکله چارج لپاره مونږ کولای شو چی دوه مختلف النوعه چارجداره قشرونه استعمال کړو،که د بطری د ترمینل سره موازی فلزی پلیټونه وصل شوی وی .په لاندی نمونه ئی مسله کی فرضوو چی دپلیټونو تر منځ فضاء کی همیشه په ناڅاپی توګه دساحی شتوالی صفر کیږی کله چی زری په هغه فضاء کی وی خو دپلیټونو تر منځ فضاء کی به ساحه او فاصله په سرعت سره کمه شی .مونږ داسی نشو جوړولای .

دابه لویه اشتباه وی چی مونږ د زرو حرکت حساب کړو او د څنډ و دزرود اثرڅخه صرف نظروکړو.

**۲-۵** نمونوی مسئله :یوه چارجداره د غوړو یوه قطره چی شعاع ئی $R = 2.76\ \mu m$ او د چارج کثافت ئی $\rho = 918\ Kg/m^3$ وی په یوه برقی ساحه کی لویږی که د برقی ساحی مقدار $E = 1,65 \times 10^6\ N/C$ وی ، نود چارجداره څاڅکی د چارج مقدار او جهت پیداء کړی؟ او هم که $2e$ زری ته نږدی شی او د هغی په واسطه جذب شی او برقی ساحه ثابته پاتی شی د زری تعجیل پیداء کړی؟

$a$ _که وغواړو چی څاڅکی ثابت او په تعادل کی وی. باید چی دڅاڅکی وزن او هغه قوه چی دبرقی ساحی څخه پری عمل کوی په تعادل کی راولو:

**حــل** :$(a)$ دڅاڅکی دتوازن په حالت کی ساتلو لپاره .دڅاڅکی $mg$ وزن باید دبرقی ساحی د $qE$ برقی قوی دمقدار سره برابره وی کومه چی په څاڅکی باندی عمل کوی ځکه چی برقی ساحه په لاندینۍ برخه کی الکترون رهنمائی کوی د $q$ هغه چارج چی په څاڅکی باندی عمل کوی هغه باید چی منفی وی ځکه چی دقوی مخالف باید هغه ته په حرکت لاربنودنه وکړی دتوازن حالت ئی لاندی ډول دی:

$$\sum \vec{F} = m\vec{g} + q\vec{E} = 0$$

د $y$ اجزاوی راکوی نو په لاس راوړو:

$$-mq\ + q(-E) = o$$

دنامعلومه $q$ لپاره لرو:

$$q = -\frac{mg}{E} = -\frac{\frac{4}{3}\pi R^3 \rho g}{E}$$

$$= -\frac{\frac{4}{3}\pi(2.76 \times 10^{-6}\ m)^3(918\ kg/m^3)(9.80\ m/s^2)}{1.65 \times 10^6\ N/C}$$

$$= -4.80 \times 10^{-19}\ C.$$

که مونږ $q$ د $-e$ برقی چارجونو په شکل ولیکو نو: $q = n(-e)$ چرته چی $n$ دڅاڅکی دپاسه دبرقی چارج شمیر دی:

$$n = \frac{q}{-e} = \frac{-4.80 \times 10^{-19}\,C}{-1.60 \times 10^{-19}\,C} = 3.$$

$(b)$_که مونږ دڅاڅکی دوه زیات شوی الکترونونه جمع کړو ،نو چارج ئی عبارت دی له:

$$q = (n+2)(-e) = 5(-1{,}60 \times 10^{-19s}C) = -8{,}00 \times 10^{-19}C$$




**۲-۱۵ شکل: ۲-۵** نمونوی مسله د $\vec{E}$ په یو نواخته برقی ساحه کی منفی چارجداره څاڅکی واقع دی د د څاڅکی حرکت (ټکان) ښکته د $m\vec{g}$ وزن له امله او پورته د $qe$ دبرقی قوی له امله دی.

دنیوتن ددوهم قانون له مخی لیکلای شو :

$$\sum \vec{F} = m\vec{g} + q\,\vec{E} = m\vec{a}$$

د $y$ مرکی عبارت دی له:

$$-mq + q\,(-E) = ma$$

مونږ دتعجیل لپاره لرو:

$$a = -g - \frac{q'E}{m}$$
$$= -9.80\ m/s^2 - \frac{(-8.00 \times 10^{-19}\ C)(1.65 \times 10^6\ N/C)}{\frac{4}{3}\pi(2.76 \times 10^{-6}\ m)^3(918\ kg/m^3)}$$
$$= -9.80\ m/s^2 + 16.3\ m/s^2 = +6.5\ m/s^2.$$

د ځاځکی تعجیل په مثبت جهت کی دی په دی محاسبه کی دچسپناکه کشش قوی څخه صرف نظر شوی، کومه چی همیشه په دی موقعیت کی ډیر مهمه ده ، مونږ دځاځکی (زری) دتعجیل تاثیرپه هغه لحظه کی پیداکړی ؤ چه خارجی دوه الکترونونو دکشش قوه لرله چی د ځاځکی (زری) په سرعت پوری مربوطه وی ، داستراحت په شروع کی صفروه اوزیات والی ئی د ځاځکی د حرکت څخه شروع شوی او همدارنګه دتعجیل په مقدار کی ئی زیاتوالی کړی دی.داتجربه د (Millikan) دغوړو د ځاځکی د تجربی اساس دی کومه ئی چی استعمال کړی وه د برقی چارج دمقدار داندازه کولو لپاره داتجربه ددی برخی د بحث یوارخ دی.

**۲۲-۲نمونوی مسئله:** ۲-۲شکل ښائی د الکترودو دسیستم منحرف کیدل دچاپ کونکی درنګ دیوی فواری دیو ځاځکی،کومه چی دهغه د $m$ کتله $1,3.10^{-10}kg$ د $q$ یوچارج چه د $-1,5 \times 10^{-13}c$ دی نقلوی او داخلیږی دکړو پلیتونو سیستم ته په

$V = 18\ m/sec$ په رفتار سره ددی پلیتونو د $L$ فاصله $1,6\ cm$ده او د $E$ دبرقی ساحی مقدار دپلیتونو منځ کی $1,4 \times 10^{6}\ N/C$دی ، دپلیتونو دښئو څخه لری دځاځکی عمودی انحراف څومره دی که دپلیتونو په ښئو کی د برقی ساحی دتغیر څخه صرف نظر وکړو ؟

**حـــل:** اجازه راکړی، که $t$ هغه وخت وی چی په هغه کی منحرف سیستم څخه ځاځکی په مستقیم ډول تیریږی نو عمودی او افقی تغیرمکان ئی عبارت دی له $y = 1/2\ at^2$ او $L = vt$ څخه $a$ دځاځکی دتغیر مکان تعجیل دی دمخکنی ساده مسلی په شان مونږ کولای شو چی د $y$ دمرکبو لپاره دنیوتن دوهم قانون پشان ولیکو :

$$-mg + q\,(-E) = ma$$

په اسانی سره کولای شو چې د برقي ساحې تاثیر په ځاځکي $-qE$ دی .ډېر مهم په دې حالت کې په غیر د جاذبې قوه $mg$ او همدارنګه د ځاځکې تعجیل کولای شو چې د $qE/m$ـ څخه په لاس راوړو .د دې دوه موقیعتونو دتغیرمکان دمعادلو دقیمتونو په وضع کولو سره لرو:

$$y = \frac{-qEL^2}{2mv^2}$$

$$= \frac{-(-1.5 \times 10^{-13}\,C)(1.4 \times 10^6\,N/C)(1.5 \times 10^{-2}\,m)}{(2)(1.3 \times 10^{-10}\,kg)(18\,m/s)^2}$$

$$= 6.4 \times 10^{-4}\,m = 0.64\,mm.$$

دا انحراف په کاغذ شاید ډیر زیات وی ځکه په غیر له دی درنگ دڅاڅکی مسیر د انحراف څخه د آزادیدو وروسته په فضاء کی د کاغذ په مخ مستقیم خط دی او سرعت ئی دخط دپاسه زیاتیږی، په۲-۱۲ شکل کی فرضوؤ چی درنگ څاڅکی همدارنگه شکل شاید مجسم کړی نو دالازم دی چی د $q$ چارج دڅاڅکی دپاسه کنترول شی .کوم چی دانحراف خاصیت له امله ئی طرزالعمل په داخل کی دسلو څخه کم دی .یو ځل بیا مونږ دچسپناکه کشش قوی او نورو قوؤ څخه کومی چی اساساً د څاڅکی په دی لوی سرعت کی وجود لری صرف نظر کوو.

## دابتدائي چارج اندازه کول:

نن مونږ پوهیږو چې دبرقی چارج صفات اوکمیت د تیوری او فورمول په واسطه اندازه کیدا شي.چې مقدار ئي ($1,602\ 176462 \times 10^{-19}\ C$) قبول شویدی .او دچارج د غه مقدار دفزیک د نورو ثابتو قیمتونو په څیر د مختلفو تجربو په نتیجه کې رامنځ ته شویدی .دلومړی ځل لپاره مونږ کله چی پدی پوه شو چې څنگه په عددی ډول چارج اندازه کیږی .او چارج په څه ډول اندازه شویدی.؟.ددغه پوښتنو لپاره ځوابونه دیوامریکائي فزیک دان (Robert A. Millikan) د تجربو څخه ترلاسه کیدای شي . دهمدغه تجربو په ترڅ کې نوموړی عالم په 1923م کال کې دفزیک په برخه دنوبل نړیواله جایزه تر لاسه کړه .۲،۱۷شکل دملیکان دتجربی الات ښائي .یوه دستگاه چې عنصر په وړو زرو بدلوی معرفی کوی .دتیلو واړه څاڅکی د $A$حجری ته داخلوی.بعضی ددی څاڅکو څخه کولای شي چې پدی پروسه کې مثبت یامنفی چارج تر لاسه کړی .یو څاڅکی چې د $q$ منفی چارج لری چې د $c$ حجری ته دیو واړه سوری دلاری چې د $P_1$ په پلیټ کې دی داخلیږی .که چیرته د $c$ په حجره کې برقی ساحه نه وی دوه قوی دڅاڅکی دپاسه عمل کوی.




۲-۱۷شکل.

چې یوه ئی د $mg$ وزن چې جهت ئی ښکته لور ته او بله دکشش قوه ده چې جهت ئی پور ته خواته دی چې ددی قوی شدت د ثاځکی د جریان دسرعت سره متناسب دی.کله چې دڅاځکې سرعت د $V$ ثابت مقدار ته ورسیږی په دی حالت کې دواړه قوی سره توازن پیدا کوی.د $\vec{E}$ برقی ساحه چې ښکته خواته ده .په حجره کې د $P_1$ او $P_2$ دپلیټونو په منځ کې پورته دبیټری سره وصل کوؤ، اوس د $\overrightarrow{qE}$ دریمه قوه دڅاځکې دپاسه عمل کوی .که چیری $q$ منفی وی دا قوه پورته لوری ته ده .او مونږ فرض کوؤ چې اوس څاځکې پورته خواته د $V$ په نوی نهائی سرعت سره جریان لری .په هر حالت کې دکشش دقوی جهت دڅاځکې دحرکت دسرعت سره مخالف دی .چې مقدار ئي متناسب دی دڅاځکی د سرعت سره د $q_1$ چارج کولای شو چې د $V'$ او $V$ دسرعتونو د مخې اندازه کړو .ملیکان چې د $q$ مقدار په اطمنان سره د ( $q = ne \quad n = 0 \pm 1 \pm 2 \pm 3 \dots$ ) رابطی له مخې پیدا کړی وه دا هغه چارج دی چې دڅاځکی دپاسه څرګندیده .فقط څو برابره دصحیح عدد دټاکلی اصلی اندازی وه د $e$ داساسی چارج،کوم چې ملیکان دهغه د $1{,}64x10^{-19}\ C$ قیمت لرلو څخه نتیجه اخسیتی وه، کوم چې هغه مکمل ثابت قبول شوی مروج قیمت دی دملیکان تجربی دتیوری او فورمول په واسطه د چارج دثبوت قانع کوونکی وسیله برابره کړه.




۲-۱۸شکل.

## په غیري منظمه برقي ساحه کی حرکت:

تر اوسه پوری مونږ یوازی هغه منظمی برقی ساحي په نظرکی نیولی په کوم کی چی برقی ساحه په مقدار کی ثابته وه او جهت ئی اکثره د هغه فضاء دپاسه وه په کومه کی چی زره حرکت کوی، خو اوس مونږ اکثره دهغه ساحو مقدار پیداء کړ چی غیر منظمی دی دمثال په ډول مونږ۲-۱۸ شکل کی دمثبت چارج یو حلقه فرضوؤ دا برقی ساحه د حلقی د محور د پاسه د۲-۱۸معادلی په واسطه ورکړشوی ده اوس مونږ فرضوو چې یو چارج لرونکی جسم دیو لری فاصلی ځخه د حلقی د $Z$ د محور په طرف د $V_0$ په لومړنی سرعت سره پرتاب کوو .دحلقی ځخه په لویه فاصله کی د جسم حرکت د محور په اوږدو کی دی برقی ساحه(او په همدی دلیل برقی قوه دجسم دپاسه )زیاتوالی

مومی.دجاذبی قوی له نطره غورځول او یوائی په زری باندي برقی قوی ته نظر کول دي . مونږ ځرنگه کولی شو چی دهغی راتلونکی حرکت تحلیل کړو؟ په داسی حالاتو کی باید

5 – 5 تحلیلی میتودونو څخه د قوو دمربوطه موقیعت لپاره دهغه بحث په شان چی په برخه کی د قوو مربوطه وخت وه کاراخلو .دی ته معادل د یو میتود ساختمان په

۱۲-**۵**برخه کی ورکړل شوی،څکه لکه څنګه چی مونږ په څلورم څپرکی کی وربادی بحث وکړ الکتروستاتیکی قوه یوه متناوبه محافظه کاره قوه ده .مونږ کولی شو چی دحل د لاسته راوړلو لپاره عددی میتود استعمال کړو او په دی منظور دا حرکت په ډیرو کوچنیو انټروالونو ویشو په کوم چی مونږ کولای شو چی هغه تعجیل په لاس راوړو کوم چی ثابت ته نږدی وی یو تقریبی حل دکمپیوتر په وسیله لاس ته راوړل کیدای شی ددی محاسبی لپاره مونږ کولی شو چی یوه حلقه د $R = 3cm$ په شعاع او د $x =$ $+2x10^{-7}c/m$ دخطی چارج دکثافت لرونکی ده.

یوپروتون ($q = +1{,}6x10^{-19}C$ و $m = 1{,}67x10^{-27}\ kg$)دمحور په اوږدو کی داولنی موقیعت څخه د ($z = +0.5\ m$) په فاصله او ($V_{z0} = -7x10^5\ m/sec$)په اولنی سرعت پرتاب کیږی ( داولنی سرعت دمنفی والی معنی دا ده چی داپروتون حرکت کوی د حلقی په لوری ښکته خواته کوم چی غورځیږی د $x, y$ په مستوی کی) مثبته چارج لرونکی حلقه په مثبت چارج لرونکی پروتون باندی یوه ددفعی قوه واردوی چه دا د هغه سرعت ته کموالی ورکوي .په $a$ ۲-۱۸ شکل کی مونږ دپروتون دحرکت هغه نتیجه رسم کړی چی کافی لمړنی حرکی انرژی دحلقی سطحی ته درسیدو لپاره نلری او دا پروتون ناڅاپه دحلقی دسطحی دپاسه په یوه نقطه کی ارامیږی او وروسته له دی د $z$ دمحور په مثبت جهت کی د خپل حرکت معکوس دحلقی په شان په نوی تعجیل حرکت کوی.

نــوټ:دا اعتراض دحلقی په نږدی فضاء کی دی دپروتون دا سرعت تقریباً ثابت دی.څکه په لری فاصله کی برقی ساحه ضعیفه ده .

$b$ ۱۸ – ۲ شکل دپروتون دحرکت هغه حالت روښانه کوی چی حلقی ته درسیدو لپاره زیاته اولنی حرکی انرژی لری ددفعی قوه دپروتون حرکت بطی کوی ولی هغه نه ودروی پروتون دپخوا په شان د سرعت په کم مقدار سره حلقی ته رسیږی ، یو ځل بیا دحلقی په وړاندی دپروتون دحرکت سرعت ثابتوالی ته ډیر نږدی کیږی.

## ۲-۷په برقي ساحه کې داېپول(*A Dipole in an Electric Field*):

کله چې موږ یو برقي داېپول د ($a$۲-۵شکل په شان )په یوه خارجي برقي ساحه کې ځای په ځای کړو هغه قوه چې په مثبت چارج باندی عمل کوي په یوه جهت کې وی. او هغه چه په منفي چارج واردیږي .هغه به په بل جهت کې وي .ددغو قوودخالصو اغیزو دمحاسبې کولو لپاره دا غوره ده چې د $P$ داېپول مومنتم وکتور وکارؤو .کوم چې P=qd مقدار لري کوم چې اشاره کوی دمنفي چارج څخه د مثبت چارچ په لوری داېپول مومنتم لیکل دیوه وکتور په ډول موږ ته ددی اجازه راکوی تر څو په برقي داېپول کې شاملې اساسي رابطې په لنډه توګه و لیکو.۲-۱۹شکل یو داېپول د $\vec{E}$ په یوه منظمه برقي ساحه کې ښائي داساحه دداېپول خپله نه ده بلکه د خارجي نماینده څخه حاصل شوی او په شکل کې ښودل شوی نه ده.د $P$ داېپول مومنت دساحې له جهت سره د $\theta$ یوه زاویه جوړوی مونږ فرض کوؤ چې ساحه منظمه ده نو ځکه $\overrightarrow{E}$ مشابه مقدار او جهت د $+q$او $-q$ په موقعیت کې لري نوپدی خاطر په $+q$ او $-q$ باندی واردی قوی د $F = Eq$ مساوی مقدار لري مګر جهتونه ئې مخالف دي لکه $a$ ۲-۱۹ شکل کې چې ښوول شوی .




۲-۱۹شکل.

په دایپول باندی خالصی قوی دخارجی ساحه له امله صفردی ولی هلته خالص تاکلی ترک دهغی په مرکز کی دکتلی دنرم تاویدلو لپاره شته چی د $P$ دایپول د $\vec{E}$ په لیکه برابره وی ترک په هر چارج باندی د $\tau = F_r$ څخه حاصلوو خالص ترک ددایپول په مرکز کی ددوه قوو دمقدار دخاص جمعی څخه عبارت دی یعنی:

$$\tau = F\frac{d}{2}sin\theta + F\frac{d}{2}sin\theta = Fd\ sin\ \theta, \qquad (2-25)$$

او جهت ئی دصفحی په داخل کی د صفحی په مستوی عمود دی لکه څنګه چی په $b$۲- ۱۹ شکل کی ښودل شوی دی .موږ کولای شو چی ۲-۲۵ معادله ولیکو.

$$\tau = (qE)d\ sin\ \theta = (qd)E\ sin\ \theta = pE\ sin\ \theta. \quad (2-26)$$

۲-۲۲ معادله کیداشی په کتوری بڼه ولیکل شی

$$\vec{\tau} = \vec{P}x\vec{E} \qquad (2-27)$$

دا رابطه په جهت کی اړیکه لری .لکه څنګه چی په $b$۲-۱۸ شکل کی د دری ویکتورونو په وسیله ښودل شوی ده، دا حالت په عمومی ډول په $dynamics$ کې هغه وخت منځ ته راځی چی ثابتی قوی عمل وکړی موږ کولای شو چی دا سیستم په دواړو یعنی هم دقوی په معادلی او هم دانرژی د معادلی په وسیله وښایو نو په دی وجه موږ به هغه کار ته توجه کوو.کوم چی د برقی ساحی دایپول دیوی$\theta$ زاوی په راګرځیدو سره اجراء کوی دمناسب فورمول کارول دچور لیدونکی حرکت لپاره ۱-۱۱معادله ده هغه کار کوم چی دیوی خارجی ساحی دا $dipole$ دګرځولو په وسیله د $\theta_0$ دزاوئی څخه په آخری زاوئی د $\theta$ کی اجراء شوی وی :

$$W = \int dW = \int_{\theta_0}^{\theta} \vec{\tau}.d\vec{\theta} = \int_{\theta_0}^{\theta} -\tau d\theta, \qquad (2-28)$$

چیرته چي د $T$ ترک عمل کوي د خارجي برقي ساحي پواسطه په ۲-۲۸ معادله کی منفي علامه ضروري ده د $T$ ترک د $\theta$ د کمیدو میل لري د وکتور په علمي اصطلاح کي، $\vec{\tau}$

ترک او $d\vec{\theta}$ مخالف جهتونه لری همدارنګه $\vec{\tau}.d\vec{\theta} = -\tau\, d\theta$ د ۲-۲۸ او ۲-۲۲معادلو د ترکیب څخه مونږ پلاس راوړو:

$$w = \int_{\theta_0}^{\theta} -pE\, sin\,\theta\, d\theta = -pE\int_{\theta_0}^{\theta} sin\,\theta\, d\theta$$

$$= pE(cos\,\theta - cos\,\theta_0). \qquad (2-29)$$

پس داجراء شوی کار عامل د خارجي ساحي محصول دي چي د دایپول د مثبتي (+) ساحي د سیستم پوتانسیالی انرژي په منفي بدلیدو سره مساوي دي مونږ لرو:

$$(2-30) \quad \Delta U = U(\theta) - U(\theta_0) = -W = -pE(\cos\theta - \cos\theta_0).$$

که مونږ د $\theta_0$ زاویه $90^{\circ}$ قبوله کړونو پوتانسیال انرژی $U(\theta_0)$ به صفر وي داهغه زاویه ده چی د $\theta$ د هري زاوي لپاره ئی پوتنسیالي انرژي مساوي ده د:

$$U = -pE\, cos\,\theta \qquad (2-31)$$

که په وکتوري شکل یي ولیکو نو لرو:

$$U = -\vec{P}.\vec{E} \qquad (2-32)$$

بناپردی $u$ اضغری ده کله چی $\vec{P}$ او $\vec{E}$ سره موازی وی.داوبویومالیکول دبرقی دیپول مومنت جوړښت لري چه یو ډیرکوچنی الکترومقناطسی موج په کره ای داشونوکی لری دالکترومقناطس د کوچنی موج شعاع د برقی ساحی دایپول مومنت داوبودمالیکولونود دورخوړلومیل په منظم ډول په برقی ساحه کی لری داوبوآزادمالیکول کولی شی دتعادل دحالت لپاره مخکی او وروسته واقعاًنوسانی حرکت وکړی.بلکي په موادوکی (مثلاًدغذاپشان) داوبودمجاورومالیکولونوترمنځ متقابل عمل پواسطه د ترک زاویه وی حرکت معکوس کوي (یا په برقي ساحه کي د ډایپول د دوران د امله د پوتنسیالي انرژی کموالي سره حرکی انرژي زیاتیږی)په داخلی انرژی کی دبرقي ساحي جهت په هرو $2x10^{-10}sec$ کی معکوس کیږی او همدارنګه

ډايپول مومنټ هميشه کوشش کوي چې د ساحې انرژي تبديله کړي د غدا په پخولو کې مونږه کولاي شو د يو ډايپول د حرکت مفهوم ترجمه کړو په يوه خارجي ساحه کې دا دواړه اساساً د يو ترک د هغه دوران ډايپول په برقي ساحه کې چې د۲-۲۷ معادلې په اساس تنظمیږي يا ديوي پوتنسيالي انرژي پواسطه چې هغه اضعري کيږي کله چې ډايپول د برقي ساحې سره د ۲-۳۲ معادله په صف کې راشي .

۲-۷نمونه يی مسئله: د اوبو $H_2O$ د بخار يو ماليکول يو برقي ډايپول مومنټ لري چې مقدار ي $P = 6{,}2 \times 10^{-30}\ C.m$ (دا لوي ډايپول مومنټ د اوبو د جوړولوزيات خواص لري فقط د يو مهم جنس پشان قابليت لري چې تقريباً د يو عمومي محلل په شان عمل کوي).

۲-۲۰شکل داماليکول چی دری هستی اودالکترون توزيع په احاطه کی رانبائی د $\vec{P}$ برقی دايپول مومنت دوکتورپه شکل بيانوی دمحورمشابه دايپول مومنت پيداءکيږی . ځکه دامرکزی عامل دمثبت چارج منطبق نه دی دمنفی چارج دمرکزی عامل سره (دمقايسه کولويوحالت هغه يوماليکول دکاربن دائی اکسايد $CO_2$ دلته دری اتومه په يوخط مستقيماً وصل شوی دکاربن دوسط سره اواکسيجن ئی په يوبل طرف کی دمثبت چارج مرکز او دمنفی چارج مرکز ددی ماليکول دکتلی په مرکز منطبق دی اود $CO_2$ برقی دايپول مومنت صفردی).

($a$)ـ د $H_2O$ داوبوپه ماليکول کی دمثبت اومنفی چارجونودجدااوالی مرکزی عامل څومره لری دی؟

($b$)ـ داوبوپه ماليکول اعظمی ترک په هغه صورت کی چی دبرقی ساحی مقدار $1{,}5 \times 10^4\ N/C$دی څومره دی؟

($c$)ـ فرضووچی داوبو$H_2O$ دماليکول دايپول مومنت دساحی مخالف جهت کی وی برقی ساحی به څومره کار انجام کړی وی دماليکول په خپل محوردڅرخيدلولپاره چی په دی ساحه کی ئی منظم کړی؟

حــل:

($a$)ــ دلته (10) الکترونه او (10) متناظرمثبت چارجونه په دی مالیکول کی دی،مونږد دایپول مومنت دمقدار دمعلومولولپاره کوالی شوچی ولیکو:

$$P = qd = (10e)(d)$$

$e$ ابتدائی چارج دی مونږغواړو $d$ چی دجدائی فاصله ده په لاسراوړونو:

$$d = \frac{p}{10e} = \frac{6.2 \times 10^{-30}\ \text{C}\cdot\text{m}}{(10)(1.60 \times 10^{-19}\ \text{C})} = 3.9 \times 10^{-12}\ \text{m} = 3.9\ \text{pm}.$$

داپه دی مالیکول کی تقریباً $4\%$ د $OH$ دباندی فاصله ده.

($b$)ــ همدارنگه ۲-۲۲ معادله رابنائی چی ترک هغه وخت اعظمی دی چی $\theta = 90^{\circ}$ شی که داحاصل شوی قیمت په دی معادله کی وضع کړولرو:

$$\tau = pE \sin\theta = (6.2 \times 10^{-30}\ \text{C}\cdot\text{m})(1.5 \times 10^{4}\ \text{N/C})(\sin 90^{\circ}) = 9.3 \times 10^{-26}\ \text{N}\cdot\text{m}.$$

($c$) ــ د دایپول دخرخیدولپاره اجراءشوی کارد $\theta_0 = 180^{\circ}$ څخه تر $\theta = O^0$ پوری د۲-۲۹ معادلی څخه حاصلیږی:

$$\begin{aligned} W &= pE(\cos\theta - \cos\theta_0) \\ &= pE(\cos 0^{\circ} - \cos 180^{\circ}) \\ &= 2pE = (2)(6.2 \times 10^{-30}\ \text{C}\cdot\text{m})(1.5 \times 10^{4}\ \text{N/C}) \\ &= 1.9 \times 10^{-25}\ \text{J}. \end{aligned}$$

دیومالیکول د داخلی انرژی دسنجش لپاره چی متوسط تغیرکی برخه اخلی دکوټې دحرارت په درجه کی $3/2\ KT = 6.2 \times 10^{-21}\text{J}$ داخلی انرژی ده،چی 33,000 کرته لویه ده.

ددی پوښتنی دوضعیت څخه حرارتی هیجان کولای شی چی ټول دایپولونه دخپل میلان له امله دساحی سره په یوه لیکه کی برابرکړی په هغه صورت کی چی دمالیکولونومجموعه دکوټې دحرارت په درجه کی موجوده وی د دایپول مومنت سره

تصادفاًجهت لرونکی کیږی دیوی برقی ساحی دتقاضاله مخی په دی مقدارسره کولای شي یو ناځیزتاثیردداپیول مومنت په لیکه کی ولری ځکه په دالویه داخلی انرژی سره که چیرته مونږخواهش ولرود داپیولونوپه لیکه راتللولپاره مونږضرورزیاته قوی ساحه اوډیره ښکته دحرارت درجه بایداستعمال کړو.




۲-۲۰شکل: د $H_2O$ دیومالیکول دالکترونودتوزیع ، دری هستی اود $\overrightarrow{P}$ برقی دي پول مومنت راښائی.

## ۲-۸داتوم هستوی ماډل (اختیاری):

نن ورځ مونږپوهیږوچی یواتوم مرکب دی دکوچنۍ هستی چی د $ze$ مثبت چارج لری . چرته چه $z$ داتوم اتومی نمبردی.چی داهسته دډیرلوی حجم په واسطه احاطه شوی چی د $z$په شمیرالکترونونه پکی دحرکت په حال کی دی چی هریوئی د $-e$ یوچارج لری،داچی داتوم دالکترونوشمیر (منفی چارج) اودهستی مثبت چارج برابردی نوپه دی اساسی ا توم دچارج له حیثه خنثی دی همدارنګه مونږپوهیږوچی داتوم دکتلی 99,995 % په هسته کی دی.د 20 قرن په لومړیوکلونوکی داواقیعت نه وه پیژندل شوی اوهلته داتوم دجوړښت په هکله مختلفی نظرئی وی اوخاصتاًددی مثبت چارج دتوزیع په هکله ډیری نظرئی موجودی وی.دهغه یوازنۍ نظرئی موافق چی په هغه وخت کی دقبول وړوه هغه دا وه چی دمثبت چارج توزیع ډیره یالړه ټوله په یونواخت ډول داتوم دکری دحجم په داخل کی ده . داتوم دجوړښت داماډل ته دتامسن ماډل وائی.چی وروسته J. J. Thomson دهغه څوک وه چه دائی پشنهادکړ. (تامسن اول چارج اندازه

کړي وه دالکترون دکتلې دنسبت څخه اوهمدارنګه اکثره دالکترون کاشف په شان ئې اعتباردرلود ).هغه همدارنګه دامډل دچرګۍ دهګۍ په شان بیان کړي وه څکه الکترونونه ټول په کره کې دمثبت چارج څخه دکشمش په شان جداءخپاره شوي دي.یوه امتحاني لاره ددې مډل داده چې تصمیم ونیول شي د اتوم د برقي ساحې دپوښتنې لپاره چې یوه وړانګه دمثبت چارج څخه پرتاب کوي داقبلوؤ چې نږدې ده دډیري وړي زرې هغه وړانګې ته چې داتوم په برقي ساحه کې انحراف کوي اویاجداءکیږي،په لاندې بحث کې مونږبیانو،دپرتاب هغه تاثیرچې د کرې دمثبت چارج په نتیجه کې مینځ ته راځي. مونږفرضووهغه پرتاب شوي جسم دهغه دواړولپاره چې داتوم څخه ئې حجم ډیرلږدي اودالکترون څخه ډیرزیات دی دالکترونودالاره ډیرناڅیزه تاثیر لري دپرتاب شوي جسم دجداءکیدولپاره.اوفرضولای شوچې اتوم دسکون په حالت کې پاتې شي په هغه وخت کې چې پرتاب شوي جسم متحرک کیږي.مونږ کولای شو چه دتامسن داتوم دیو مډل انحراف تخمین کړو چیرته چه مثبت چارج داتوم په ټول حجم کې په یونواخت ډول توزیع شوي وي دمثبت یونواخت کروي چارج برقي ساحه ۲-۷ معادله دچارج شوي کرې څخه بیرون نقطوکې او ۲-۲۴ معادله ئې دچارج شوي کرې په داخلي نقطوکې راکوي. په همدې شان کولای شو چه برقي ساحه یې په سطحه کې حساب کړوکومه چه په۲-۸شکل کې ښودل شوي ده ممکنه ده په دې توزیع کې لویه ساحه حاصله کړومونږیودروندااتوم تشریح کوولکه دطلاءپه شان، کوم چې د $Q$ مثبت چارج لري د$79e$ په اندازه اود $R$ یوه شعاع چې $1{,}0 \times 10^{-10}m$ ده دالکترون څخه صرف نظرشوي دمثبت چارج برقي ساحه د $r = R$په وضع کولو سره لرو:

$$E_{max} = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{Q}{R^2} = 1.1 \times 10^{13}\ \text{N/C}.$$

زمونږپه تجربې کې چې د پرتاب شوي جسم لپاره ده که چیرې د ∞ زرې دوړانګې په شان استعمال شي کومه چې د $q$ مثبت چارج ئې د $2e$ په اندازه اود $m$ یوکتله د $6{,}6 \times 10^{-27}Kg$ په اندازه لري . د∞ زره دهلیوم زره ده چې دبعضې رادیوکتیو

تجزئی په وخت کی خپریږی چی دحرکی انرژی اندازه ئی فقط دهری زری لپاره $9,6 \times 10^{-13}$J ده $K = 6\ MeV$ دهدا انرژی تاسی کولی شی په اسانه تحقیق کړی دزری لپاره چی $1,7 \times 10^{7}\ m/sec$ سرعت لری.هغه زره چی داتوم دسطحی سره نږدی تیریږی کومه چی په دی تجربه کی ددی اتوم لویه برقی ساحه چی په زره عمل کوی چی قوه ئی برابره ده د:

$$F = qE_{max} = 3,5 \times 10^{-6}\ N$$

**۲-۲۱ شکل یوه کلی طرحه دهندسی شکل دیوی تجربی، دزری دپراگندگی (جدوالی) راښائی. ددی انحراف حقیقی محاسبه نسبتاًمغلقه ده . بلکه مونږکولای شوچی بعضی تخمینی ساده محاسبی،داعظمی انحراف اوزیږوالی لپاره اجراءکړو.**

راځی فرض کړوچی پورته قوه ثابته اود $\Delta t$ په وخت کی داسی عمل کوی چی دپرتاب شوی جسم دگرځیدوفاصله داتوم دقطرسره برابره شی چی په ۲-۲۱ شکل کی ښوول شوی ددی وخت انتروال عبارت دی له:

$$\Delta t = \frac{2R}{v} = 1,2 \times 10^{-17}\ s$$

داقوه زری ته د $a$ پري کونکی تعجیل ورکوی،کوم چی د $\Delta v$ یوپري کونکی سرعت تیاره وی چی عبارت دی له:

$$\Delta v = a\,.\Delta t = \frac{F}{m}\,\Delta t = 6,4x\ 10^{3}\ m/s$$

زره شاید د θ دوړی زاوئی په اندازه انحراف وکړی دهغی په باره کی داتخمین کوو:

$$\theta = tan^{-1}\frac{\Delta v}{v} = 0,02^{\circ}$$

دانوعه دجدائی (پراگندگی) تجربه لومړی د (رادرفورت) اوملگروپه واسطه د(انگلینډ)په مانچسترکی په 1911 م کال کی اجراءشوه دوی د ∞ الفاءیوه وړانگه

دطلادیوی نازکی ورقی څخه تیره کړه.اودښی احتمال دتخنیل تصمیم ئی دالفادزرو چی د θ په مختلفوزاویوجداء(پراګنده) شوی وی دهغوی داصلی جهت څخه وینو البته دوی ونشوکړای هغه دالفازری چی داتوم دزروڅخه تیریږي کنترول کړی.په واقیعت کی په غیردتقوی څخه دتحریک له امله ډیری زیاتی دالفاءزری کولای شی چی تیری شی داتوم دهغه حجم څخه چی په ۲-۲۱شکل کی دی اود(تامسن دمډل مطابق)داعظمی زاویی څخه کم انحراف مونږ شوحساب کړو.ددی تجربی نتیجی هغه وښودله.




۲-۲۱شکل.

اګرچی دالفا دټولوزروانحراف هغه زاویوته چی لوی نه وی دیودرجی دیوپرسلمه$\frac{1}{100}$ برخی په نسبت یوکوچنی عدد (شاید د 1څخه تر$10^4$) وی انحراف دلویو زاویو په غیرد $90^\circ$ څخه کاملاًدتامسن دمډل سره په ټکرکی دی،اودی رادرفورد دی وبناته اړکړچی داځماپه ژوندکی ترټولوحیرانوونکی کاروه.داتقریباًدومره حیرانوونکی وه لکه ته چی یو$15inch$ قشرلرونکی نازکه ټوټه دکاغذدسوځیدوڅخه بیرون کړی اوهغه بیرته راوګرزی اودستاسره اصابت وکړی.دجداءکیدوددی قسم تجربی په اساس رادرفوردانتیجه اخستی وه.

هغه مثبت چارج چی دیواتوم په ټوله کره کی نه دی خپورشوی بلکه په یوه کوچنی منطقه کی (هسته ده) چی داتوم مرکزته نږدی ده وجودلری په دی حالت کی

دطلاداتوم دهستی شعاع $7x10^{-15}\ m(7Fm)$ چی په اټکلی ډول $10^{-4}$ کرته داتوم دشعاع څخه کوچنی ده. هغه حجم چی هستی اشغال کړی $10^{-12}$ داتوم دی.

کولی شوچی اعظمی برقی ساحه اومطابقه قوه ئی چی دالفاپه یوه زره، هغه چی دهستی دترلی سطحی څخه تیریږی محاسبه کړو.که چیرته مونږهسته دیومنظم کره ئی توپ په شان فرض کړوچی چارج ئی $Q = 79e$ اوشعاع ئی 7fm وی اعظمی برقی ساحه ئی:

$$E_{max} = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{Q}{R^2} = 2{,}3 \times 10^{21}\ N/C$$

دا اته کرته د برقی ساحی دلوی مقدار په نسبت زیات دی هغه چی عمل کوی داتوم دموډل دسطحی په یوه زره چه قوه یی مطابقت کوی:

$$F = q\,E_{max} = 740\,N$$

دایوه لویه قوه ده . مونږ کولی شوچی خپلی مخکینی محاسبه لنډه کړواوفرض کړوچی داقوه ثابته ده اوعمل کوی په یوه زره د $\Delta t$ په وخت کی.هغه وخت چی دزری دحرکت فاصله ئی دهستی دقطرسره برابره شی عبارت ده له:

$$\Delta t = \frac{2R}{v} = 8{,}2 \times 10^{-22}\,s$$

داتغیرمطابقت کوی دزری دهغه سرعت سره چی په تخمینی ډول عبارت دی د:

$$\Delta v = a\,\Delta t = \frac{F}{m}\,\Delta t = 9x10^{7}\ {}^{m}/_{s}$$

چی دادهغه دخپل سرعت سره دمقایسی وړدی. مونږهغه داتوم دیوی هستی لپاره حساب کړی دی. کولای شوچی یوه برقی ساحه پلاس راوړو کومه چی په کافی اندازه لویه ده دپرتاب شوی جسم دمعکوس حرکت څخه دهستوی اتوم دموډل په اساس رادرفوردپه دی وتوانید چی دزراتولپاره یوخاص فارمول په لاس راوړی، کوم چی په هره زاویه سره رادرفوردیوی مناسبی نتیجی دصحیح فورمول لپاره دجداءشوو زاراتودشمیرپه هره خاصه زاویه په لاس راوړ،اوتجربی ئی ددی فورمول سره موافقه

پریکړه وښووله اوهغه همدارنګه مناسب استعمال د فورمول دنښه شوواتومونوداتومی نمبر $z$ وښود ،علاوه پردی دهغه زراتولپاره چی زیاته انرژی لری اوپه حقیقت کی په هسته کی نفوذکوی(وګوری ۱-۷ نمونه ئی پوښتنه) استعمال کړ.دامډل ئی همدارنګه دهستی دشعاع لپاره استعمال کړ.

دکلاسیک اورنځ لری کوونکی سلسله دهغه دتجربی اوروښانه شرح بنیاد ، دنوی اتومی مډل اودهستی دطبعیت لپاره کیښود.رادرفورد په عمومی توګه ددی ساحوداعتبارو‌ړمؤسس دی.دکلاسیک اوتخیلی تجروبودسلسلی څخه دمډرن اتوم اوهستوی فزیک اساس کیښودل شو .ددی ساحی زیات اعتباراوکریدټ درادرفورد ته ورکړشوی.

## څوځوابه انتخابه پوښتنی

۲-۱ ساحه څه شی دی؟

۲-۲ برقی ساحـــــه

۱ـ هغه برقی ساحه چی په ۲-۳ معادله کی تعریف شوی د $q_0$ په کوچنی مثبت چارج پوری اړه لری که چیری په عوض ئی هغه معرفی شی چی په کوچنی چارج پوری مربوطه وی اومساوی مقدارونه ولری.وروسته اولنۍ اواخیرنۍ معرفی شوی ساحودمقایسی څخه اشاره کوی دیته چی:

(A): مشـابــه جهـت اومساوی مقـــدارلری.

(B): مختلف جهت اومسـاوی مقـــدارلـــری.

(C): عینی جهت اومختلف مقـدارونه لـری.

(D): مختلف جهت اومختلف مقدارونه لری

۲-۳دیـونـقـطـوی چـــارج برقـــی ساحــه:

۲ـ د $+q$ یونقطوی چارج په مبداءکی،او $+2q$ نقطوی چارج د $x = a$ کی قرارلری چیرته چی $a$ مثبت وی.

($a$): لاندی جملوڅخه کومه یوه صحیح ده؟

($A$) چارجونوته نږدی اود $x$ دمحورڅخه بیرون ،کیدای شی برقی ساحه صفروی.

($B$) چارجونوته نږدی اود $x$ محورڅخه بیرون ،کیدای شی دبرقی ساحی مقداراعظمی وی.

($C$) دچارجونوپه منځ کی په یوځای کی،کیدای شی برقی ساحه صفروی.

($D$) د $x$ په محورپه محدودونقطوکی چی دچارجونوپه منځ کی نه وی،کیدای شی برقی ساحه صفروی.

($b$): په لاندی کومه نقطه کی به د $a$ انرژی لرونکی نقطه شتوالی لری چیرته چی دبرقی ساحی مقدارصفروی؟

$-\infty < x < o$ ($A$)

$o < x < a$ ($B$)

$a < x < \infty$ ($C$)

($D$) $E$ د $-\infty < x < \infty$ په ناحیه کی له منځه نه ځی .

۳_ $+q$ نقطوی چارج په مبداءکې او $-2q$ یونقطوي چارج په $x = a$ موقیعت لری چیرې چې $a$ مثبت وی.

($a$) :کومه یوه له لاندینیوجملوڅخه صحیح ده؟

($A$): چارجونوته نږدی به د $x$ محورڅخه لری برقی ساحه صفروی.

($B$): چارجونوته نږدی به د $x$ محورڅخه لری دبرقی ساحی مقداراعظمی وی.

($C$): دچارجونوپه منځ کی به برقی ساحه صفروی.

$(D)$: برقی ساحه د $x$ په محور په محدودو نقطو کی صفروی نه د چارجونو په منځ کی.

$(b)$: په کوملاندینیوناحیوکی یوه نقطه شته ده کومه چی دبرقی ساحی مقدارئی صفروی؟$(A)$: $o < x < \infty$

$(B)$: $o < x < a$

$(C)$: $a < x < \infty$

$(D)$: $-\infty < x < \infty$ په $E$ ناحیه کی له منځه نه ځی.

**۲-۴** دمتوالی چارجونودتوزیع برقی ساحه:

**۴**ـ دچارج دیونواخت حلقی دمحوردپاسه $E(z)$ دبرقی ساحی مقداربه:

$(a)$: $E(z)$ شایدتر ټولو ډیرلوی قیمت ولری چیرته چی :

$(A)$ $z = o$

$(B)$ $o < |z| < \infty$

$(C)$ $|z| = \infty$

$(D)$ $A$ او $C$ دواړه صحیح دی

$(b)$: $E(z)$ به صفروی چیرته چی:

$(A)$: $z = o$

$(B)$: $o < |z| < \infty$

$(C)$: $|z| = \infty$

$(D)$: $A$ او $C$ صحیح دي

**۵**_ د $E(z)$ برقی ساحی مقدار دیوی منظمی چارجداره صفحی دمحوردپاسه عبارت دی له:

$(a)$:$E(z)$ شاید ترټولولوی قیمت ولری چیرته چی:

$(A)$: $z = o$

$(B)$: $o < |z| < \infty$

$(C)$: $|z| = \infty$

$(D)$: $A$او $C$ صحیح دی

,

$(b)$:$E(z)$ به صفروی چیرته چی:

$(A)$: $z = o$

$(B)$: $o < |z| < \infty$

$(C)$: $|z| = \infty$

$(D)$: $A$او $C$ صحیح دی

**۲-۵ دبرقی ساحی خطونه:**

**۲ـ۲-۲۲شکل** دبرقی ساحی کرښې دیوه برقی ډایپول ګرچاپیره راښائی کوم یوله غشوڅخه د $P$ په نقطه کی ترټولو په ښه ډول برقی ساحه ښودلی شی؟




**۲-۲۲شکل**:څوځوابه ۲ پوښتنه.

**۷ـ۲-۲۳شکل** د برقی ساحی کرښې راښایی د$A$، $B$، $C$ دری جهته چارچونو دپاره نو:

$(a)$:کوم چارچونه مثبت دی؟

($b$): کوم چارج ترټولو زیات مقدار لري؟

($c$): د تصویر په کومه ناحیه یا ناحیو کې به برقي ساحه صفر وي؟

($A$): نږدې $A$ ته.

($B$): نږدې $B$ ته.

($C$): نږدې $C$ ته.

($D$): په هیڅ ځای کې هم نه




۲-۲۳شکل:څو ځوابه ۷پوښتنه.

۲-۷ یو نقطوي چارج په یوه برقي ساحه کې:

**۸ـ** د $x$، $y$ او $z$ درې کوچنۍ کرې چې مساوي مقدار د چارج لري او په ۲-۲۴شکل کې له علامو سره ښودل شوي دوی متساوي الاضلاع مثلث په راسونو کې ځای لري چې د $x$ او $y$ ترمنځ فاصله ئې د $x$ او $z$ ترمنځ فاصلې سره مساوي ده د $y$او $z$ کرې په یو ځای کې موقیعت لري کوم ځای کې چې د $x$ کره د ډیر کم اصطکاکه سطحې پرمخ آزادانه حرکت کوي.

($a$):دبرقي قوې جهت د $x$ په دایره کې چه په هغه نقطه کې شکل کې ښودل شوي څنګه دی؟($b$):کوم مسیر به د $x$ کره واخلي کله چې آزاد شي؟




۲-۲۴ شکل:خوښوا به ۸پوښتنه.

**۹ـ** یوالکترون په منظمه برقی ساحه کی د مثبت اومنفی چارج شوی موازی پلیتونوپه منځ کی قرارلری.په الکترون باندی به په کوم ځای کی ترټولوزیاته برقی قوه اغیزه وکړی؟

$(A)$: کله چی الکترون مثبتی ورقی ته نږدی وی.

$(B)$: کله چی الکترون منفی ورقی ته نږدی وی.

$(C)$: کله چی الکترون دوورقوپه منځنۍ برخه کی قرارولری.

$(D)$: دموقیعت په نظرکی نه نیولوسره دوورقوپه منځ کی په امتحانی الکترون باندی یوشان قوه اغیزه کوی.

**۱۰ـ** که چیری لاندینۍ اندازه ګیرۍ جوړی شوی وی دچارج $10^{-19}$ $C$ په واحداتوکی (دوړوڅاڅکودیوی سلسلی چارجونوڅخه کوم یوئی دچارج دلوی اصلی یواحد څخه دی،هغه ددی شوی ورکړل $Data$ ،یامفروضاتوڅخه استنباط کړی؟

| | | |
|---|---|---|
| 48 | 19.2 | 28.8 |
| 9.6 | 38.4 | 24 |

$1{,}6 \times 10^{-19}\ C$ : $(A)$

$4{,}8 \times 10^{-19}\ C$ : $(B)$

$9{,}6 \times 10^{-19}\ C$ : $(C)$

$48 \times 10^{-19}\, C$ : $(D)$

**۲-۷په یوه برقی ساحه کی یو دایپول:**

**۱۱ـ دبرقی ساحی دفضاءپه یوه ټاکلی محل کی قبلوؤچی** $E_x = E_z = o\ ,\ E_y \neq o$ وی او $\partial\vec{E}/\partial x \neq 0, \partial\vec{E}/\partial y = \partial\vec{E}/\partial z = 0$ وی

$(a)$ : **هغه اساسی قوه په یوه برقی دایپول چی د** $x$ **دمحورسره موازی وی په دی ساحه کی:**

$(A)$: د $x$ دمحورپه امتداد ده.

$(B)$: د $y$ دمحورپه امتداد ده.

$(C)$: د $z$ دمحورپه امتداد ده.

$(D)$: دیوه دپاسه هم نه ده.

$(b)$ :اساسی ترک په یوبرقی دایپول چی د $x$ دمحورسره موازی دی په دی ساحه کی:

$(A)$: د $x$ دمحورپه امتداد دی.

$(B)$: د $y$ دمحورپه امتداد دی.

$(C)$: د $z$ دمحورپه امتداد دی.

$(D)$: دیوه دپاسه هم نه دی

((پوښتنــــی))

1ـ دسکالری ساحی اووکتوری ساحی په شان زیات نومونه تاسی کولی شئ واخلئ؟

2ـ$(a)$: دځمکی اویوی تیږی ترمنځ دځمکی دجاذبی په ساحه کی ایامونږویلای شوچی ځمکه دتیږی دجاذبی په ساحه کی واقع کیږی؟

$(b)$: څومره دجاذبی ساحه مناسب ده چی تیږه دځمکی مربوطه کړی(وتړی)؟

3ـ یو مثبت چارج شوی توپ دوریښمو په یو اوږد تارځوړند دی، مونږغواړو چې په افقی سطحه کی دځوړند شوی چارج د $\vec{E}$ برقی ساحی شدت پیداءکړو .ددی لپاره مونږ په یوه نقطه کی $(q)$ مثبت نقطوی چارج ږدواو $\frac{F}{q_0}$ اندازه کوو ،شاید $\frac{F}{q_0}$ به د $\vec{E}$ په نسبت دپوښتنی په هماغه نقطه کی به لږمساوی اویازیاتوی؟

4ـ دیوامتحانی چارج سره دبرقی ساحی په لټولوکی،مونږاکثره داسانتیالپاره فرضووکه هغه امتحانی چارج مثبتوی،نوایاداواقعاًپه دی ساحه کی څومره تفاوت منځ ته دراوړی؟دشرح کولولپاره ئی تاسی یو ساده حالت پیداءکړی.

5ـ ولی هیڅکله دبرقی ساحی خطونه یو بل نه قطع کوی؟

6ـ په ۲-۱۳ شکل کی ولی دساحی خطونه ګرچاپیره دشکل په څنډوکی ښکاره کیږی؟کله چی شاته وغزیږی نو په منظمه ډول دشکل دمرکزڅخه وړانګی خپره وی؟

7ـ یو نقطوی چارج په یوه برقی ساحه کی دساحی دخطونو ښی لوری ته حرکت کوی . ایا په هغه باندی څومره قوه عمل کوی؟

8ـ په۲-۱۴شکل کی ولی ښوول شوی چی دوښو ددوانوکرښی دبرقی ساحی دکرښودپاسه واقع کیږی حال داچه :دوښو دانی په نارمل حالت کی برقی چارج نلری په $1962.P.19$ کال دجنوری په میاشت کی امریکائی $O.Jefimenko$ په اثبات ورسوله چی دبرقی ساحی له امله په هادی کی دبرق جریان منځ ته راته اوپه ورځپانه کی ئی نشرکړ).

9ـ څه ده د $Static\ cling$ دپیښی منشاء.هغه چی بعضی وخت،دخشکه شوی دماشین څخه دجامو په لری کولو کی ښکاره کیده؟

10ـ دوه نقطوی چارجونه چی مقداراوعلامی ئی معلومی نه دی،د $d$ دفاصلی په اندازه یودبل څخه جداءدی،د دوی ترمنځ دوصل کوونکی خط دپاسه په یوه نقطه کی برقی ساحه صفرده،د دوی دچارجونو دمحاسبه کولو لپاره څه کولی شی؟

11ـ دوه نقطوی چارجونه چی مقدار او علامه ئی معلوم نه دی .د $d$ په فاصله دیوبل څخه جداء واقع دی:

($a$): ایاممکن ده چی $E = o$ شی به کومه نقطه کی چی دچارجونوپه منځ کی دوصلوکوونکی خط دپاسه نه وی . څه ته ضرورت دی چی دنقطی حالت اوځای وپیژنو ؟

($b$): ایاممکنه ده دچارجونودوه نقطی داسی ترتیب شی ترڅو $E = o$ (هیڅ نقطه نشته) وی؟ایالاندئی هم ممکنه ده؟

12ـ دوه چارجونه چی علامه او مقدارئی معلوم نه دی. د $d$ په فاصله یودبل څخه جداء اینښودل شوی دی . مونږکولی شوچی دمحورڅخه په لری نقطوکی $E = o$ ولرو (بی شمیره مانع) تشریح ئی کړی؟

13ـ په ۲-۳نمونه ئی پوښتنه کی یوچارج په ۲-۴ کی د $P$ په نقطه کی د تعادل په حال کی واقع دی ځکه چی کومه قوه ورباندی عمل نکوی:

($a$) :تغیرمکان لپاره دچارجونودوصل کوونکی خط امتداد په هکله معلومات ولیکی؟

($b$) :د دی خط ښی لوری ته دتغیرمکان په هکله معلومات ولیکی؟

14ـ په۲-۱۲ شکل کی قوی دچارج ښکتنی نقطی پورته وړی اومحدودی کړی ئی دی،اوس دچارج په دی محل کی دخطونو نورازدحام (ډیروالی) ، دی ته اشاره کوی چی $E$بی حده لوی دی،په یوه بی حده لویه ساحه کی دیو چارج ښکته راوړل داراښائی چی په هغه بی حده لوی ئی قوی عمل کړی ددی نه حل کیدونکی معماځواب څه دی؟

15ـ د $q$ نقطوی چارج د $m$ په کتله په غیرمنظمه ساحه کی دسکون (استراحت) څخه آزاد شوی:

($a$)هغه ته ولی لازم دی چی دبرقی ساحی هغه خطونه چی دآزادی نقطی څخه تیریږی تعقیبه وی؟

($b$) ایابرقی زره به دبرقی ساحی خطونه څومره تعقیب کړی شرحه ئی کړی؟

16ـ یو مثبت او یو منفي چارج د مساوي مقدار سره د مستقیم خط په امتداد پراته دي، د $E$ جهت د هغه نقطو لپاره ، چې د دې خط د پاسه پرتې دي وښایست:

($a$): د دې چارجونو په منځ کې.

($b$): د چارجونو څخه خارج د مثبت چارج په جهت کې.

($c$): د چارجونو څخه بیرون د منفي چارج په جهت کې.

($d$): د کرښو څخه لرې، خو د چارجونو په منځني سطحه کې.

17ـ د یو برقي دایپول په منځنۍ سطحه کې چې د برقي ساحې سره موازي او یا موازي نه وي د $P$ برقي دایپول مومنت وښایست؟

18ـ د کومې لارې څخه کولی شو چې ۲-۱۲ معادله خرابه وښایو ،د۲-۱۲ شکل د ساحې خطونه که وغواړو چې ارام شي نو لازم دي چې $x \gg d$ څخه وي؟

19ـ ($a$) دوه یو شان برقي دایپولونه په یو مستقیم خط پراته دي لکه چې په $a$۲-۲۵ شکل کې ښودل شوي د برقي قوې مناسب جهت په هر دایپول د بل په موجودیت کې وښایست؟

($b$) فرضوؤ چې د $b$۲-۲۵ شکل په شان هغه دایپولونه بیا رسم شي . په دې حالت کې به او س د برقي قوې جهت څنګه وي؟



۲-۲۵شکل:۱۹ پوښتنه.

20ـ مقایسه کړی هغه لارچې $E$ د $r$ سره مختلف وي د:

($a$) د یو نقطوي چارج لپاره.

($b$) د یو دایپول لپاره او.

($c$) د یو څلور ګوني لپاره.

21ـ دچارج شوی حلقی یاصفحی دبرقی ساحی دمحاسبه کولولپاره چی کوم الجبری (حسابی) مشکل سره مخامخ کیږی هغه مشکل ئی دمحورپه نقطوکی ولی نشته؟

22ـ ۲-۲۰معادله راښائ چی د$E_z$ قیمت دټولونقطولپاره یوشان دی مخکی دیونامحدودی ورقی دمنظم چارجیدوڅخه ایادامعقوله ده ؟ یوقوی فکردادی چی وښایوچه نږدی ورقی ته د هغه ساحه ډیره قوی ده . ځکه همدارنگه چارجونه ډیرمحصوردی؟

23ـ شرحه کړی ستاسی په شتولغتونوکی هغه هدف چی دملیکان د تیلودڅاڅکی دتجربی څخه موترلاسته کړی؟

24ـ دهغه چارج علامه چی دملیکان دتجربی دتیلودڅاڅکی دپاسه دحرکت په اثرلری څنگه ده؟

25ـ ولی ملیکان کوشش نه کاوه چی په خپله دستگاه کی دتیلودڅاڅکوپه عوض دالکترونودموازنی څخه استفاده وکړی؟

26ـ تاسی واړوی (تاؤکړی)برقی دایپول په یوه منظمه برقی ساحه کی څومره کاربه اجراءشوی وی تاسی کولی شی چی دایپول اصلی دریځ دساحی سره وتړی؟

27ـ دیوبرقی دایپول دریځ په یوه منظمه برقی ساحه کی د دایپول دپوتانسیالی انرژی سره آیا:

$(a)$: ډیرلوی دی.

$(b)$: ډیرکوچنی دی.

28ـ یوبرقی دایپول په یوه غیری منظمه برقی ساحه کی قرارلری،هغه اساسی قوه پیداءکړی چی په دی دایپول عمل کوی؟

29ـ یوبرقی دایپول دسکون په حال کی په یوه خارجی منظمه برقی ساحه کی واقع دی لکه په $a$ ۲-۱۹ شکل کی چی ښوول شوی،دحرکت محوه کول ئی وڅیړیی؟

30ـ یو برقی دایپول د $P$ دایپول مومنت لری چی د $E$ منظمی خارجی برقی ساحی سره په یوه ردیف کی قرار لری:

$(a)$ آیا تعادل ئی ثابت دی که نه؟

$(b)$ دهغه تعادل طبعیت او ماهیت وخیږی. چی $P$ او $E$ پکی مختلف جهتونه ولری؟

31ـ یو اتوم په نارمل حالت کی دبرق له حیثه خنثی دی،ولی وروسته دالفا ءزره داتوم په واسطه انحراف کوی لاندی ئی تشریح کړی؟

((تـــمریـــن))

۲-۱ساحه څه شی ده؟

۲-۲برقی ساحه:

1ـ یو الکترون ته دبرقی ساحی په واسطه دمشرق په لوری $1{,}84x10^{9}\ m/\sec^{2}$ تعجیل ورکول کیږی دبرقی ساحی مقدار او جهت ئی معلوم کړی؟

2ـ مرطوبه هوا د $3 \times 10^{6}\ N/C$ دیوی برقی ساحی په واسطه ښکته لوری ته غزول (دهغی مالیکول پخپله آیونایزشوی وی) کیږی په دی ساحه کی دبرقی قوی مقدا. به څومره وی؟

$(a)$: دیو الکترون دپاسه او.

$(b)$: په یو آیون (یوازی دیو الکترون په لری کیدو)؟

3ـ دهیلیوم داتوم دهستی یوه دالفا ءزره، $6{,}6 \times 10^{-27}\ kg$ یوه کتله،او $2e$ په اندازه چارج لری،دبرقی ساحی مقدار او جهت ئی څومره دی؟ شاید هغه یی دخپل وزن سره ئی برابروی؟

4ـ په یوه منظمه برقی ساحه کی ځمکی ته نږدی،یوه زره $-2{,}0x10^{-9}\ C$ یو چارج لری چی په $3{,}0\ x\ 10^{-6}\ N$ یوی برقی قوی باندی ښکته لوری ته عمل کړی:

($a$): دبرقی ساحی مقدارئی پیداءکړی.

($b$): څومره دی دهغه برقی قوی مقداراوجهت چی عمل ئی کړی دی په هغه یوپروتون چی په دی ساحه کی واقع دی؟

($c$): په دی حالت کی دبرقی قوی اودځمکی دجاذبی قوی نسبت څومره دی؟

**۲-۳ دیونقطوی چارج برقی ساحه:**

5ـ دیونقطوی چارج مقدار دارنگه انتخاب کړی، چی دبرقی ساحی شخه چی مقدارئی $2{,}30\ N/C$ دی د $75{,}0cm$ په اندازه لری وی؟

6ـ حساب کړی، ډایپول مومنت دیوالکترون او پروتون هغه چی د $4{,}30nm$ په اندازه سره جداءوی؟

۷ـ حساب کړی، دبرقی ساحی مقدارچی دیوبرقی دایپول په واسطه چی دیوی نقطی دایپول مومنت ئی $3{,}56x10^{-29}\ C.m$ ټاکلی شوی وی؟

8ـ پیداءکړی، برقی ساحه د ۲-۲۲ شکل دمربع په مرکزکی په هغه صورت کی چی $q = 11{,}8\ nC$او $a = 5{,}20\ cm$ قبول کړو؟




۲-۲۲شکل:۸تمرین.

9ـ دیوساعت مخ $-q$ , $-2q$, $-3q$, ... , $-12q$ منفی نقطوی چارجونه لری،په داسی حالت کی اینبودل شوی چی عددی رابطه لری .دساعت عقربه دساحی مزاحمت

نکوی، په کوم وخت کی به دساعت دعقربی جهت دبرقی ساحی دجهت سره دساعت دمخ په مرکزکی یوشان شی (یادونه : دچارجونو شدید مخالفت).

10ــ په۲-۵ شکل کی فرضووهغه دوه چارجونه چی مثبت دی، وښایست دشکل $P$ په نقطه کی د $E$ هغه مقدارچی $x \gg a$ څخه وی نوراکوی:

$$E = \frac{1}{4\pi\epsilon0}\frac{2q}{x^2}$$

11ــ یوقسم دبرق څلورقطبی داسی شکل لری چی څلورچارجونه ئی دهغه مربع په راسونه کی چی ضلع ئی $2a$ دی واقع دی د $p$ نقطه د$x$ په فاصله دڅلورقطبی دمرکز څخه دیوموازی خط دپاسه دمربع په دوه ضلعوکی لکه په۲-۲۷ شکل کی ښودل شوی قرارلری،د $x \gg a$ ،لپاره وښایست چه د$p$ په نقطه کی برقی ساحه تقریباً:

$$E = \frac{3(2qa^2)}{2\pi\epsilon_0 x^4}$$

ده.(یادونه: څلورقطبی ددوه دایپول په شان تلقی کیږی)



۲-۴د پرلپسی ویشل شوی چارج برقی ساحه:

12ــ وښائی ۲-۱۹ معادله دچارج شوی صفحی ($Disk$) دبرقی ساحی لپاره په هغه نقطوکی چی دخپل محوردپاسه ئی دی، دساحی شعاع دنقطوی چارج لپاره$R \ll z$ ده؟

13ــ د $R$ په شعاع دچارج شوی صفحی ($Disk$) دمحورپه امتداد د صفحی ($Disk$) دمرکزڅخه دسطحی په کومه فاصله کی دبرقی ساحی شدت ئی یونیم برابره دساحی دمقدارکیږی؟

14ـ د $R$ په شعاع دچارج شوی حلقی دمحورپه امتداد په کومه فاصله کی دمحوری برقی ساحی قوت اعظمی کیږی؟

۱۵ـ $(a)$: د $q$ ټول څومره چارج لازم دی یوه صفحه چی شعاع ئی $2,50cm$ ده نقل کړی همدارنګه هغه برقی ساحه چی دصفحی $(Disk)$ دسطحی دپاسه ده دخپل مرکزسره برابره ده داهغه مقداردی کوم چی ښکته لوری ته دهوادماتیدوله امله دبرقی جرقی څخه تولیدیږی ۲۲-۱ جدول وګوری؟

$(b)$: فرضوودسطحی دهراتوم تاثیرد $0,015nm^2$ مساحت په برخه کی $x$ دی .څومره اتومونه دصفحی په سطح کی دی؟

$(c)$: د $a$ په نتیجه کی چارج ددی سطحی اتومونه یواضافی الکترون نقلوی،کوم ماتیدل د دی سطحی داتومونوټپاره لازم دی چی چارج ئی کړی؟

16ـ یوه نازکه شیشه ئی میله چی داخل ته تاؤشوی د r په شعاع نیمه دایره ئی جوړه کړی،د $+q$ چارج ئی په منظم ډول پورته نیمائی برخه کی توزیع شوی اود $-q$ چارج ئی په منظم ډول ښکته نیمائی برخه کی توزیع شوی،لکه ۲-۲۸ شکل کی چی ښوول شوی د $E$ برقی ساحه ئی دنیمی دایری د $P$ په مرکزکی پیداءکړي؟



۲-۲۸شکل:۱۲ تمرین.

17ـ د $E$ دبرقی ساحی مقدارچی د $z$ په یوه فاصله دپلاستیکی چارج شوی صفحی $(Disk)$دمحورپه امتداداندزه شوی عبارت دی له:

| z (cm) | E ($10^7$ N/C) |
|---|---|
| 0 | 2.043 |
| 1 | 1.732 |
| 2 | 1.442 |
| 3 | 1.187 |
| 4 | 0.972 |
| 5 | 0.797 |

حساب کړی؟

($a$) : دصفحی ($Disk$) شعاع او

($b$) :دهغه دپاسه چارج؟

18ـ يوه عايقه شوی ميله د $L$ په اوږدوالی د $q$ - چارج چی په منظم ډول ئی په اوږدوالی کی توزيع شوی لکه په۲-۲۹ شکل چی ښوول شوی .

($a$) :دميلی خطی کثافت څومره دی؟

($b$) :پيداءکړی برقی ساحه د $P$ په نقطه کی چی دميلی دانجام (اخر) څخه د $a$ په فاصله کی پرته ده؟

($c$) : که چيرته د $P$ نقطه دميلی د $L$ په مقايسه ډيره لری وی او ميله ديو نقطوی چارج په شان په نظر راشی، وښايست ستاسی د $b$ په هغه ځواب کی دنقطوی چارج دبرقی ساحی څخه څومره کميږی د $a \gg L$ لپاره؟




۲-۲۹شکل:۱۸ تمرين.

19ـ يوکيفی طرحه دساحی دخطونو ،چی يوځای کړی ئی دی دری اوږده برابرخطونه دچارج په عمودی سطح کی، فرضوؤچی تقاطع ددی خطونودچارج په سطح کی

یومتساوی الاضلاع مثلث جوړه وی ۲-۳۰ شکل اودچارج هرخط د8 دخطی چارج کثافت لری .



۲-۳۰شکل:۱۹تمرین.

**۲-۵** دبرقی ساحی خطونه:

20ـ۲-۳۱ شکل دیوی برقی ساحی،دساحی کرښی رانبائی : ددی خط عمودی فاصله په صفحه کی هرځای کی یوشان ده.

$(a)$ : که چیرته په $A$ کی دساحی مقدار $40\ N/C$ وی . دتجربی په نقطه کی څومره قوه په یوالکترون عمل کوی؟

$(b)$:په $B$ کی دبرقی سحی مقدارڅومره دی؟




۲-۳۱شکل:۲۰تمرین.

21ـدیوی نقشی په اساس دبرقی ساحی خطونه،د $R$ په شعاع دیونازکه دایروی صفحی سره چی په منظم ډول چارج شوی،وصل کړی؟

(یادونه : وګوری،دمحدودو نقطوپه شان حالت چی ډیرنږدی دی صفحی ته چیرته چی برقی ساحه ئی په سطح عمود ده اونقطی ورڅخه ډیری لری دی،چیرته چی برقی ساحه دیونقطوی چارج په شان ده ).

22ـ یوه کیفی نقشه دساحی دخطونوچی $+q$ او $-2q$ دوه علیحده چارجونه سره وصلوی رسم کړی؟

23ـ دری چارجونه د ۲-۳۲شکل په شان په یومثلث کی ترتیب شوی،گوروچی دساحی خطونه ئی $+Q$ او $-Q$ ورکوی اودهغوی څخه دهغه قوی جهت چی $+q$ باندی عمل کوی تشخیص کیږی،ځکه نوردوه چارجونه واقع کیږی(یادونه: ۲-۱۲ :شکل وګوری)




۲-۳۲شکل:۲۳تمرین.

24ـ ($a$):په ۲-۳۳ شکل کی نقطه(یانقطی) په داسی ځای کی واقع دی چی هلته برقی ساحه صفرده.

($b$):دساحی دخطونو کیفی نقشه وښایست؟




۲-۳۳شکل:۲۴تمرین.

25_دوه نقطوی چارجونه د $x$ محوردپاسه د $d$ په فاصله جداءایښودل شوی دی۲-۳۴شکل $E_x$ رسم کړی ؟ فرضوۀچی دچارج کیڼی لوری ته $x = o$ دی .د $x$ مثبت اومنفی مقداروګوری؟ $E_x$ رسم کړی مثبت دی که چیرته د $E$ جهت ښی لوری ته وی،منفی دی که د $E$ جهت کیڼی لوری ته وی،که فرض کړوچی $q_1 = 10x\ 10^{-6}C$, او$q_2 = 3,0x10^{-6}C$ $d = 10cm$ وی؟




**۲-۳۴**شکل:**۲۵**تمرین.

26ـ د $q+$او $-2q$ چارجونه د $d$ په فاصله جداءاینبودل شوي د **۲-۳۵**شکل په شان.

$(a)$: $\vec{E}$ د $B, A$ او $C$ په نقطو کې پیداءکړئ؟

$(b)$: دبرقي ساحې دخطونو نقشه په اټکلي ډول وښایست؟




**۲-۳۵**شکل:**۲۵**تمرین.

**۲-۷** په یوه برقي ساحه کې یونقطوي چارج:

27ـ یوالکترون $4,86x10^6\ m/s$ په سرعت سره حرکت کوي چې دمنظمې برقي ساحې چې شدت ئې $1,30\ N/C$ دی ورڅخه موازي تیریږي داسې ترتیبوي چې دخپل حرکت څخه وروسته پاتې کیږي.

$(a)$ : مخکې له دې چې سکون (ارام) ته الکترون ورشي په ساحه کې به ئې سفرڅومره وي؟

$(b)$ : څومره وخت به تیرکړي؟

$(c)$: که چیرته برقي ساحه وروسته د $7,88\ mm$ څخه ناڅاپه ختمه شي څومره انحراف به ئې داولنۍ حرکي انرژۍ څخه کړي وي ترڅوالکترون دلاسه ورکړي؟

28ـ یوه دمزایل (ګلولې،سوشک) ضدسلاح بایدوي ترڅودزرودوړانګو څخه ددفاع لپاره استعمال شي مثلاً دیوپروتون مؤثره وړانګه چې دیودشمن مزایل کولی شي بې

ضرره کړی په دی قسم کولی شی چه وړانګی په ټوپک کی حاصلی شی دبرقی ساحی په استعمال چارج شوی زره تعجیل اخلی.

($a$): که برقی ساحه $2,16x10^4\ N/C$ وی نو دامتحانی پروتون تعجیل به څومره وی؟

($b$):پروتون به څومره سرعت په لاس راوړی که چیرته دساحی عمل د 1,22 cm فاصل دپاسه وی؟

29ـ دوه مساوی اومختلف چارجونه چی مقدارئی $1,88x10^{-7}\ C$ او 15,2 cm په فاصله جداءاینبودل شویدی:

($a$):دچارجونوترمنځ په منځنۍ نقطه کی د $\vec{E}$ مقداراوجهت څنګه دی؟

($b$):څومره قوه (مقداراوجهت ) کولی شی چی عمل وکړی په یوالکترون په دی موقیعت کی؟

30ـ د دوه مختلف چارج شووپلیتونوترمنځ منطقه کی بایدیوه منظمه برقی ساحه شتوالی ولری،ترڅویوالکترون دمنفی چارج شوی پلیت(صفحی) دسطحی څخه آزادشی،اوپه 14,7ns کی په 1,95cm خارجی فاصله کی دمخالف پلیت په سطحی ضربه وارده وی.

($a$): دالکترون سرعت دخپلی ضربی له امله په دوهم پلیت کی څومره دی؟

($b$): دبرقی ساحی مقدارئی څومره دی؟

31ـ دملیکان په تجربه کی دیوڅاڅکی شعاع 1,64nm اوکثافت ئی $0,851\ gr/cm^3$ کله چی برقی ساحه $1,92\ x10^5\ N/C$ وی معمولی وضع لپاره دڅاڅکی دپاسه چارج حساب کړی.د $e$ په اصطلاح؟

32ـدوه نقطوی چارجونه چی $q_1 = 2,16\ \mu c$ او $q_2 = 85,3\ nc$ چارج لری،د $11,7cm$ په فاصله سره جداء دی:

($a$): دبرقی ساحی هغه مقدارپیداءکړی، هغه چی هریویئ دبل په ځای( مکان)کی تولیدوی؟

($b$): دهغه قوی مقدارپیداءکړی، چی په هرچارج عمل کوی؟

33– د 1911م په اولووختونوکی ملیکان دخپلی مشاهدی خصوصیات داسی وښودل:
دچارجونولاندی اندازه،دنوروپه منځ کی څوکرته(څوځله) دیوڅاڅکی دچارج څخه متفاوته وه د دی $data$ څخه که د $e$ دچارج مقدارپیداءکړی، څومره به وی؟

| | | |
|---|---|---|
| $6.563 \times 10^{-19}$ C | $13.13 \times 10^{-19}$ C | $19.71 \times 10^{-19}$ C |
| $8.204 \times 10^{-19}$ C | $16.48 \times 10^{-19}$ C | $22.89 \times 10^{-19}$ C |
| $11.50 \times 10^{-19}$ C | $18.08 \times 10^{-19}$ C | $26.13 \times 10^{-19}$ C |

**۳۴ـ** د $\vec{E}$ یوه منظمه عمودي ساحه ددوه لویوموازی پلیټونوپه منځ کې جوړه شوي ده،یوه کوچنۍ کره د m په کتله دیوتارپه واسطه چې اوږدوالی ئی $L$ دی .په دې ساحه کې ځوړنده شوی ده،ددی رقاصی ( ځوړنده شوی جسم ) پریود پیداءکړی،کله چې لری د $q+$ چارج ورکړی وی که چیري ته دپلیټ څخه ښکته راوړل شی:

($a$):ایاپه مثبت ډول به چارج شوی وی او ($b$) :ایاپه منفی ډول به چارج شوي وي؟

**۳۵ـ** په**۲-۷**ساده پوښتنه کی درنګ دڅاڅکی ټول انحراف 6,8mm دپام وړکاغذ دپاسه داخرڅخه دپلیټونوترانحراف پوری پیداءکړئ؟ **۲-۱۲** شکل وګوري؟

**۲-۷** په یوه برقی ساحه کی یو داپیول:

**۳۶ـ** یوبرقی داپیول دچارجونوڅخه چې مقدارئی 1,48nC دی جوړشوی دی چې د$6.23\mu m$ دفاصلی په واسطه جدادی،په یوه برقی ساحه کې چې شدت ئی $1100\ N/C$ دی واقع دی :

($a$):دبرقی داپیول مومنت مقدارئی څومره دی؟

($b$): څومره دی ددايپول متقابل دپوتانسيالی انرژی تفاوت چې د ساحی سره ئی جهت موازی یاغیرموازی شی؟

**۳۷ــ** يوبرقی دايپول $+2e$ او $-2e$ چارجونوڅخه چې د$0.78nm$ په اندازه جداءدی،جوړشوی. هغه په يوه برقی ساحه کې چې شدت ئی $3{,}4 \times 10^6\ N/C$ دی قرارلری،حساب کړی دترک مقدارپه دايپول باندي کله چې دايپول مومنت وی:

($a$):موازی

($b$) :په قایمه زاویه او

($c$):دبرقی ساحی سره مخالف وی

**۳۸ــ** د $q = 3.61\ \mu c$ چارج د 28,5cm په فاصله ديوکوچني دايپول چې دخپل عمودي امتدادپه نيمائی کی قرارلری هغه قوه چې په دی چارج عمل کوی مساوی ده د $5.22 \times 10^{-16}\ N$ سره چې په دياګرام کی ښودل شوي ده:

(**a** دهغه قوی جهت چې په چارج عمل کوي څنګه دی او

(**b** دهغه قوی جهت چې په دايپول عمل کوي معلوم کړئ؟

(**c** دهغه قوی مقدارچې په دايپول عمل کوي څومره دی؟

(**d** ډايپول مومنټ د ډايپول وښايا ست؟

**۸-۲داتوم دهستي موډل:**

**۳۹ــ** په۱۹۱۱کې په يوکاغذکی رادرفورد ويلی وه : دبعضی نظريوله جملې څخه ئې دقوی لپاره دا ضروروګڼله چې دالفاءيوی زری ته په يوه لويه زاويه انحراف ورکړی . نواشاره ده،دي ته چې يواتم په خپل مرکزکې د $ze$ مثبت چارج لری چې احاطه شوی د $-ze$دمنفی چارج دتوزيع په واسطه د $r$ په شعاع دکری په داخل کې دمنظمی توزيع په اساس د $E$ برقی ساحه د r په فاصله داتوم دمرکزدداخلی نقطی څخه عبارت ده له :

$$E = \frac{Ze}{4\pi\epsilon_0}\left(\frac{1}{r^2} - \frac{r}{R^3}\right)$$

داپوښتنه تحقیق کړی؟

**۴۰-۳۲-۲شکل** راښائی دتامسن داتوم مودل دهلیوم ددوه الکترونونه $z = 2$ استراحت په حال کې د $2e$ مثبت چارج دکری په داخل کې په منظم ډول ځای په ځای شوی، دالکترونونوترمنځ د $d$ هغه فاصله پیداکړئ ترڅوپه هغه موقعیت کې دسکون په حال کی تعادل راشی؟



۲-۳۲شکل:۴۰ تمرین.

مســائلی

**۱ـ** په **۵-۲**شکل کې وګوری‌هغه یوه نقطه چې د $Z$ فاصله د دایپول دمرکزڅخه دخپل محورپه امتدادکې لری

(**a** وښایاست د $z$ لوی مقدارچې دبرقی ساحی مقداری د $E = \frac{Ze}{4\pi\epsilon_0}.\frac{P}{Z^3}$ په واسطه ورکړل شوی دی ( مقایسه ئی کړی دساحی دهغی یوی نقطی دپاسه چې په عمودی ناصف واقع وی)

(b د $\vec{E}$ جهت څنګه دی؟

**۲ـ** وښایاست هغه اجزاء د $\vec{E}$،چې دیودایپول په واسطه په لری نقطوکې ورکړل شوی د $E_x = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{3Pxz}{(x^2+z^2)^{\frac{5}{2}}}$،$E_z = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{P(2Z^2-X^2)}{(x^2+z^2)}$ په واسطه چیرته چې $x$ او $z$ د $P$ دنقطی مختصات دی،**۳۷-۲**شکل هغه عمومي نتیجه راښائی چې د **۱۲-۲**معادلی، او اولی پوښتنی خاصی نتیجې پکی شامل دي .



۲-۳۷شکل:۲مشکل.

**۳ـ د۴-۲برخې کې یوه چارج شوی حلقه په نظرکې ونیسی.؟فرض کړی چې $q$ چارج دحلقی دپاسه په یونواخت ډول ندی توزیع شوی بلکه د $q_1$ چارج دنیمی حلقی پورتنۍ برخه کې په یونواخت ډول توزیع شوی،اود $q_2$ چارج دحلقی په بلی لاندینۍ برخه کې په یونواخت ډول توزیع شوی . که $q = q_1 + q_2$ وی.**

$(a)$: پیداکړیهغه اجزاءدبرقی ساحی چې هره نقطه ئی دمحوردپاسه دمحورپه امتدادکی جهت ولری،مقایسه ئې کړۍ دمنظم(دیونواخت) حالت سره؟

$(b)$: پیداء کړۍ دبرقی ساحی هغه اجزاءچې هره نقطه ئې دمحوردپاسه په محورعموده وی . دمنظم حالت سره ئې مقایسه کړۍ ؟

**۴ـ ۲-۳۸ شکل راښائی یوقسم برقی څلورقطبی چې هغه عبارت دی، ددوه داېپولوڅخه چې دخارجی نقطوتاثیرئی کاملاً دمینځه نه ځی،وښاياست د $\overrightarrow{E}$ مقداردمحوردپاسه دڅلورقطبی د نقطو،د $z$ دیوی فاصلی لپاره چی دخپل مرکزڅخه لری فرضووچې $Z \gg d$ چې د $E = \frac{3Q}{4\pi\epsilon_0 Z^4}$ په واسطه راکړل شوی دی،چیرته چې $Q = 2qd^2$ وی،دچارج توزیع ته څلورقطبی مومنت وائی.**



**۲-۳۸شکل:۴مشکل**

**۵ـ** د $x$ دمحورپه امتداد دنقطوی چارجونویوه توزیع جوړه کړی، همدارنگه هغه چې چارجونونه لری وی، نودابرقی ساحه د $x$ دمحورپه امتدادد $\frac{1}{r^6}$ په شان بی موقع تنزل کوي .

**۶ـ** د **۲-۳۹**شکل کې دعایق په واسطه پوښل شوی یوه نامحدوده (لایتناهی ) میله چې انتقالوي د $\lambda$ دچارج خطی کثافت (چارج پراوږدوالی ) ،وښایاست د $P$ په نقطه کې هغه برقی ساحه چې دمیلی سره$45°$ په اندازه زاویه جوړه وی،هغه چې دانتیجه ئی د R دفاصلی څخه مستقله ده؟



**۲-۳۹شکل:۶مشکل**

**۷ـ** یوه نازکه غیرهادی میله د L په محدوده فاصله د ■+ یونواخت دچارج خطی کثافت،په پورته نیمه برخه کې اود ■− یونواخت دمنفی چارج کثافت ښکته نیمی برخه کی انتقالوی،مقایسه ئی کړی د **۲-۷**شکل سره؟

(a) یومشابه استدلال ئی،دمیلی د $P$ په نقطه کې دبرقی ساحی دجهت اوحسابولولپاره استعمال کړی؟

(b) په $P$ کې $\vec{E}$ پیداکړی؟

(c) د $y$ دلوی قیمت لپاره ئی لیمټ ونیسی؟هغه به څنگه مربوط وی د $y$ سره دابیان څومره ستاسی په لوریدي؟

۸ــ یوه غیرهادي نیمه کره ئی پیاله د R په داخلي شعاع د q یو مجموعی چارج دخپلی داخلی سطحی دپاسه په منظم ډول خپروی. هغه برقی ساحه چې دمرکزڅخه انحناء(کوږوالی ) لری پیداکړی؟ (یادونه : پیاله دحلقودزیادمقدارسره مقایسه کړی؟)

۹ــ فرض کړی چې دکولمب په قانون کې توان(۲) نه بلکه n دی . وښایاست هغه د $n \neq 2$ لپاره ددی جوړول دبرقی ساحی دخطونو لپاره نا ممکن دی، هغه شاید دبرقی ساحی دخطونو لپاره په**۲.۵**سکشن کی د ساده کولو(اسانتیا )لپاره دخواصو لیست ولری ،چې دیونقطوی چارج دجداءکولوسره سروکارلری؟

۱۰ــ دوه پراخه موازی دمسوپلیتونه چې5,00 cm په فاصله جداء دی اودهغوی په مینځ کې یوه منظمه برقی ساحه **۴۰-۲** شکل په شان شرحه شوی ده،یوالکترون د منفی پلیت څخه ازادیږي، دده سره په یوشان وخت کې یوپروتون دمثبت پلیت څخه ازادیږي دهغه قوی څخه چې دازری ئی یوپه بل وارده وی صرف نظرشوی؟ دهغوی فاصله دمثبت پلیت څخه څومره ده کله چې هغه یودبل څخه تیریږي ایاداتاسی حیرانه وی هغه چې تاسی ئی نه پیژنئ په برقی ساحه کې اوورته ضرورت دی د پوښتنی دحلولولپاره؟




۲-۴۰شکل:۱۰پوښتنه.

۱۱ــ یوالکترون پرتاب کیږي د (۲-۴۱)شکل په شان د $V_0 = 5.83 \times 10^6\ m/sec$ په اولنی سرعت سره اود $\theta = 39.0°$ده، $E = 1870\ N/C$ (په پورته جهت کې) $d = 1{,}97cm$ او $L$=6,20$cm$ وی شاید دالیکترون ټکروکړی دهریوپلیت سره، که چیرته دیوپلیټ سره ټکرونه وکړئ،دکوم پلیټ سره به ئې ټکرکړی وی؟اوپه څومره فاصله به دهغه دنیمائی څنډی څخه لری وی؟




۲-۴۱شکل:۱۱پوښتنه.

۱۲ـیوه الیکترون دیوی چارجداره حلقی دمحورپه اوږدوکې حرکت حاصل کړی، په ۲-۴ برخه کې پري بحث شوی وه،وښایاست چې هغه الیکترون دحلقی دمرکزسره دیوکوچنی اهتزاز داجراءکولومیل لری، چې فریکونسی ئی د $w = \sqrt{\frac{eq}{4\pi\epsilon_0 mR^3}}$ په واسطه راکړل شوی ده؟

۱۳ــهغه کارپیداکړی، چې د$\vec{E}$په منظمه برقی ساحه کې دبرقی دایپول دتاوولولپاره لازمه دی،په دی شرط چی د$\vec{P}$ددایپول مومنت، اود $\vec{E}$ او$\vec{P}$ په مینځ کې اولنی زاویه $\theta$ وی؟

۱۴ـ دیوبرقی داېپول داهتزازفریکونسی، د $P$ برقی داېپول، د I دورانی عطالت،او د تعادل حالت لپاره کوچنۍ د اهتزازدامنی د $\overrightarrow{E}$ په یوه منطمه برقی ساحه کی پیدا کړی؟

۱۵ـ دوه مساوی مثبت نقطوی چارجونه د $+q$ د $z = +a/2$ او $z = -\frac{a}{2}$ په موقعیت کې قرارلری:

$(a)$: د $dE_z/dz$ مشتق د Z دمحورپه امتداد ،دنقطولپاره پیداء کړئ او $dE_z/dz$، $z \ll \frac{a}{2}$ په حدودوکی معلوم کړی؟

$(b)$ : وښایاست هغه قوه چې دیوکوچنی داېپول دپاسه ، دخپل محورپه دې نقطه کی ،چی دچارجونودیوځای کوونکی خط په امتدادد $F = P\left(\frac{dE_z}{dz}\right)$ په واسطه راکړل شوی چیرته چې P د داېپول مومنت دی او $\frac{dE_z}{dz}$ ،د$(a)$دجز دپیداءشوی قیمت دلیمټ څخه په لاس راوړی؟

((کمپیوټری پوښتنی))

۱ـ یوه حلقه د r = 0.1m په شعاع چی د$(2 + sin\theta)\left(2.0\mu\frac{c}{m}\right) = ʎ$ په اندازه دچارج غیرمنظم کثافت ورکړی،پیداءکړی د هغه یوی نقطی عددی مختصات چېرته چې برقی ساحه ی دلاسه ورکړی وی(صفرته رسیږي)؟

۲ـ دچارج کثافت دیوي میلي دپاسه د L په اوږدوالی تمرکزکوی،د x دمحوردپاسه د $ʎ = \left(1.0\mu\frac{c}{m}\right)sin^2(\frac{\pi x}{L})$په واسطه راکړل شوی،د x, y په مستوی کې دبرقی ساحی دخطونوعددی نقشه مینځ ته راوړی؟

۳ـ مقایسه کړی د دوه زروهغه برقی قوه چې په یو بل عمل کوي،هره یوه په برقی ساحه کې دیوبل د تعجیل ورکولوځواب ویونکی ده اودچارجونو حالت ئی دقووپه شان دی چې همدرانګه تبدیلیدل راښائی. دوه مساوی زرې چې هره یوه ئی د $q = +1.9 \times 10^{-9}c$ چارج او $m = 6.1 \times 10^{-15}kg$ کتلی سره،د $3.0 \times 10^4\,m/sec$ په مساوی سرعتونوسره په حرکت شروع کوی د x په مثبت جهت کی. داولنۍ یوې

لپاره $x = 0$ او$y = 6.7 \times 10^{-3}m$ اودبلی لپاره$x = 0$ او$y = 6.7 \times 10^{-3}m$اودواړه ئې د (x, y) په مستوی کې دې، چی هره یوه په دی مستوی کی حرکت ته ادامه ورکوی . مقایسه کړی هغه برقی قوه چې دوی یو په بل وارده وی :

(**a**) :استعمال کړی دکمپیوټریوپروګرام دمسیرد رسمولولپاره د t = 0 څخه تر $t = 1.0x10^{-6}s$ وخت لپاره ځکه تاسی ضرورت لری چې یوددی چارجونولپاره موقعیت اوسرعت محاسبه کړی؟په همدی شان استعمال کړی ترڅوپیداءکړی موقعیت اوسرعت دبل چارج دهری یوی فاصلی(انتروال) لپاره دانتی ګرال په نیولوشروع کوو ،دانتی ګرال دفاصلی (انتروال) لپاره$\Delta t = 1 \times 10^{-8}s$ استعمال کړی؟

(**b**):اوس فرضووچې یوه ددی زروڅخه $q = -1.9 \times 10^{-9}C$ چارج لری .ولی دنوروټولوحالتونو لپاره د t = 0 څخه تر $t = 5.0x10^{-7}\ s$ لپاره دمسیرمشابه طرح لری؟

## دریم څپرکی

### دګوس قانون (Gauss law):

دکولمب قانون مونږهروخت د $\vec{E}$ دبرقی ساحی دمحاسبه کولو دپاره استعمالوو.او په اسانی سره مونږکولای شو چی چارجونه جدا یا پیوسته حالت مطالعه کړو. جمع اوانتی ګرال یئ یوځه مغلق دی (اودشمیرلو لپاره کمپیوتری نیرو ته ضرورت لری). بلکی برقی ساحی تل دپیداکیدلو وړدی.په مخکی څپرکی کی په ځینو حالتونوبحث وشو.ددی دپاره چی بعضی فزیکی حالات په اسانی سره تشریح شی پدی څپرکی کی مونږدکولمب دقانون یومتبادل قانون لولو.چی دګوس دقانون په نوم یادیږی دګوس قانون دبرقی ساحی دحسابولولپاره ډیرساده اوګټور اصول لری چی نن صبا دزیاتوفزیکی عملیودحل لپاره په کار اچول کیږی. که څه هم دواړه قوانین عین نتیجه را وباسی لیکن دګوس قانون یا معادله

زیاته حل اړخیزه ده. دغه موضوع ډیره په زړه پوری ده. چی دگوس قانون هغه موضوع چی دکولمب قانون کی ورځخه صرف یادونه شوی وی په ډیرښه شان تشریح کوی.

۱-۳ دگوس قانون ته اړتیا (د گوس قانون د ټولو کومو شیانو په هکله دی):

تراوسه پوری په الکتروستاتیک کی مونږ هر څه دکولمب دقانون پواسطه پیدا کړل. ۱۴ معادله دنقطوی چارجونو ترمینځ برقی قوه راکوی . دکولمب قانون ددقیقی ارزیابی دپاره یو ښه ریاضیکی فرمول دی مونږ د $q$ چارج برقی ساحه $\vec{E} = \vec{F}/q_0$ په دی ډول سره ښایو چی دلته $\vec{F}$ هغه قوه ده چه $q$ ئی په $q_0$ واردوی په عمومی ډول سره دیو ډیر کوچنی نقطوی چارج د برقی ساحی په نظر کی نیولوسره ممکنه ده چه مونږ برقی ساحه دیوخط یا صفحی لپاره هم پیدا کړو. دگاوس قانون د برقی ساحی دمحاسبی دپاره یو بله لارده، چی دکولمب قانون سره معادل ده یعنی تراوسه پوری چی څه مونږدکولمب دقانون په واسطه محاسبه کړی کولای شودگوس دقانون له لاری هم محاسبه کړو.

## دگاوس قانون ته څه اړتیا ده؟

په داسی حال کی چه د کولمب قانون دهر ثابت نقطوی چارج دبرقی ساحی دمحاسبه کولولپاره کافی دی یو ځواب دا کیدای شی چه دگوس قانون ډیره ساده لاره او طریقه د برقی ساحی د محاسبه کولولپاره په هغه حالاتو کی چه لوړی یوشان ساحی ولری لکه دکروی چارج ویشنه. بل ځواب داکیدای شی چی دگوس قانون نسبت دکولمب قانون ته په لیکلوکی اسان او ژر دی دالکتروستاتیک داساسی قانون پشان دکوم پواسطه چی مونږ کولای شو چی معادلو ته په یوسیستم باندی پرمختګ ورکړو.دټولو مقناطیسی پیښو لپاره کوم چی په ډیر واضح ډول سره د الکتریکی او مقناطیسی ساحوترمنځ اړیکی روښانه کوی.

دریم علت یې دا کیدلای شی چی دگوس قانون دچارجونو د ډیر تیز حرکت لپاره داعتبار وړ دی بلکه دکولمب قانون څخه هغه وخت استفاده کیږی چه د چارجونو دوام او حرکت

ډیرسست وي. نو بالاخره مونږ په واقعي ډول پدې ځپرکې کې وښوده چه دکولمب قانون د گوس د قانون یوخاصه برخه ده نو پدې اساس د گوس قانون نسبت د کولمب قانون ته ډیر عام دی. ددې دلایلو په اساس دګوس قانون دڅلورو اساسي الکترو مقناطیسي معادلو لپاره پدې خاطر تر بحث لاندې نیول کیږي چه نسبت دکولمب قانون ته بنیادي دی.(دمکسویل معادلې دي چې په ۳۸ځپرګې کې پرې بحث کوو ). مخکې تر دې چې مونږ د ګوس قانون تشریح کړو نو لومړي اړتیا دی ته پیښیږي چې یو نوی کمیت پیدا او بحث پرې وکړو چې هغه د برقي ساحې فلکس دی.فلکس د هرې ساحې یو الجبري ښودنه ده چې د وکتورونو په واسطه ښودل کیږي هغه چې د یوې زرې د ناحې دپاسه د ساحې د وکتور، د سطحې انتیګرال په واسطه مشخص کیږي. دلته همدارنګه هندسي شرحه د فلکس لپاره هغه چې بناء ده د ساحې د خطونو په هغه شمیر د ټولې فضا څخه تیریږي.

## ۳-۲د وکتوري ساحې فلکس:

د **Flux** کلیمه د یوې لاتیني کلیمې **flow** څخه اخیستل شوې چې **flow** `د بهیدلو په معنی دی. مونږ دا فلکس د یو وکتوري ساحې په توګه په نظر کې نیسو، چې دبهیدواندازه یې د نومونړو وکتورونو اندازه چې دساحې له یوې خیالي سطحې څخه تریږي ده مونږ فرضوؤ چه د برقي ساحې فلکس یوډیره اشناء بیلګه ده ددې لپاره کوو چې د بهیدونکې مایع سرعتي ساحه په لاس راوړو د یوې بهیدونکې مایع یو نهر په نظرکې ونیسي. چې په هره مشخصه نقطه کې یې سرعت د وکتور سره وښایو ۱-۳ شکل یومشابه جریان چې د سرعت وکتورونه یې د مایع په سطحه کې موازي دي فرضوو چې دغه نهر ته یو سیم چې په مربع شکله حلقه کې راتاو شوي وي د **A** سطحه کې دننه کوو په **۳-۱a** شکل کې د حلقې د موقیعت، مستوي د هغې د جریان په جهت عموده ده .مونږد دغه $\Phi$ فلکس د ساحې د سرعت څخه پیدا کؤو چې مقدار یې د لاندې معادلې پواسطه راکړل شوي دي:

$$|\Phi| = vA \qquad (3-1)$$

دلته V د سرعت مقداردی دحلقی په موقیعت کی دی د فلکس واحد $m^3/s$ دی .او دا قوی ښایی چی په کومه اندازه مایع (سیال) د حلقی څخه تیریږی د ساحی په دی جمله کی دافکرځنگه دی چی (د گوس قانون د معرفی کولو لپاره) مناسب ده چی: فلکس د ساحی د هغه خطونود شمیر څخه عبارت دی چی د حلقی څخه تیریږی.




۳-۱ شکل: ۱-۳شکلدیو سیم حلقه د نهر د جریان د **A** ناحیه کی دننه شوی چی مونږ یی د سرعت د ساحی په ډول یی ښایو:

**(a)** حلقه جریان سره مستقیمه زاویه لری. **(b)**: د θ په یوی زاویی حلقی دوران کړی. چی دناحیی تصویر یی په جریان عمود دی چی عبارت دی له ($A\cos\theta$) (**c**): کله چی ۹۰=θ شی ساده او موثری کرښی د حلقی د مستوی څخه نه تیریږی. (d) دحلقی فضا د($\vec{A}$)وکتورپه واسطه ښودل شوی چه دحلقی په مستوی کی عمود ده. او θ د ($\vec{A}$) اود$\vec{V}$ سرعت تر منځ زاویه ده. (e): **A** یوه بنده سطحه ده چی پنځه مستوی سطحی جوړوی د($\vec{A}$) ناحیه دهری سطحی دخارج لپاره په عادی ډول بیانیږی.

په ۱-۳ شکل کی حلقه دوران کوی هغه داچی خپله لویه مستوی یئ د سرعت په جهت عمود نه ده.

نوټ: هغه شمیر خطونه چی دټولی حلقی **(loop)** دسرعتی ساحی څخه تیریږی د ۱$b$-۳ په شکل کی کم دی د ۱$a$-۳ شکل څخه د پرتاب دمربع مساحت $A\cos\theta$ دی او امتحانیږی ۱$b$-۳شکل په واسطه او خپل ځان به ورباندی قانع کړي هغه شمیر د ساحی خطونه چه دټولی مایلی شوی حلقی د $A$ دسطحی څخه تیریږی،

دهغه شمیرسره برابردی چه د $(\mathbf{A}\cos\theta)$ د کوچنی حلقی څخه تیریږی او په نهر عمود دی نو د $b$ ۱-۳ شکل په موقعیت کی دفلکس مقدار عبارت دی د :

$$|\Phi| = \mathbf{vA}\cos\theta \qquad (3-2)$$

که حلقی دوران کړی وی نود مایع سرعت دهغی د سطحی سره موازی وی لکه په $c$ ۱-۲۷شکل کی په ۲-۳ رابطه کی که $\theta = 90^{\circ}$ ولیکله شی نو فلکس صفر کیږیی ځکه په دی وخت کی هیڅ خط دساحی دحلقی څخه نه تیریږی. دګاوس قانون به مونږ وګورو چی اساسی فلکس د یوتړلی سطحی سره مربوطه وی. دګاوس قانون یوفلکس په تړلی سطحه کی مطالعه کوی نومونږ باید منفی او مثبت فلکس چی دسطحی څخه تیریږی وپیژنو ، د۲-۳ معادلی ښی طرفته چی $\vec{V}$ او $\vec{A}$ په منځ کی نقطه ده دهغوی سکالری ضرب دی. هغه چی مقدار یې دسطحی مساحت اوجهت یې عمود دی د $\mathbf{d}۱ - ۳$ په سطحه اګرچه وروسته له دی د دواړو جهت د سطحی په یوه نقطه کی په $\mathbf{d}۱ - ۳$ شکل کی ښودل شوی دی، چی سره معکوس دی. مونږ فقط یوه لاره لرو چی جهت په یو بل قسم مشخص کړو ، دقرارداد په واسطه د $\Phi$ دعلامی له مخی یئ معرفی سمه نده: مونږ د $\vec{A}$ جهت په عادی حالت کی د تړلی شوی سطح څخه بیرون طرفته انتخابؤو ،پس فلکس دسطحی په واسطه دحجم په منځ کی چی باقی پاتی کیږی مثبت او د حجم داخل طرف ته منفی مطرح شوی دی. پدی انتخاب سره مونونږ کولای شو چی ولیکو: فلکس د یو تړلی سطحی لپاره چی دځو سطحو دارتباط څخه جوړ شوی عبارت دی:

$$\Phi = \sum\vec{\mathbf{v}}\,.\,\vec{\mathbf{A}} \qquad (3-3)$$

چی دلته $\vec{\mathbf{v}}$ دسطحی دسرعت د وکتورونو دجمع حاصل د ټولو خارجی سطحو لپاره یوه تړلی سطح جوړه وی. فلکس یو سکالری کمیت دی ځکه دوه وکتورونه د سکالرپه شکل سره صرب شوی دی.

۳-۱نمونوی مسئله: د *e* ۳-۱ تړلی سطحه فرض کړی یو حجم چی د **5** سطحوپواسطه پوښل (بند ) شوی راښایی. **1** ، **2**او **3** یی په ترتیب د *a* ۳-۱ *c* ۳-۱، او *b* ۳-۱ دشکل د سطحو سره موازی او **4** د **5** په امتداد کی د جریان (نهر )د خطونو سره موازی دی. فرضوؤچی دساحی سرعت یو نواخت دی. نولدی امله یی هر چیرته مقدار او جهت یوشان دی. دتړولی تړلی سطحی مجموعی فلکس حساب کړی؟

حـــل: د ۳-۳ معادلی د استعمال له مخی د تړولی سطحی دمجموعی فلکس لپاره د پنځه واړه سطحو فلکسونه پیداء کوو.نولیکلای شو:

$$\Phi = \vec{v}.\vec{A}_1 + \vec{v}.\vec{A}_2 + \vec{v}.\vec{A}_3 + \vec{v}.\vec{A}_4 + \vec{v}.\vec{A}_5$$

یادونه: د **1** سطحه لپاره د $A_1$ د عادی خارجی وکتور او د $\vec{v}$ د سرعت تر منځ زاویه $180^{\circ}$ ده. نو د $\vec{v}\vec{A}$ دسکالری ضرب د $-\vec{v}\vec{A}$ په شکل لیکلای شو.د **5, 4, 2** سطحو عضویت به له منځه ځی ځکه په هرحال کی $\vec{A}$ وکتور په $\vec{v}$ عمود دی د $A_3$ سطحی لپاره فلکس د($VA_3 \cos\alpha$) په ډول لیکو ، نومجموعی فلکس:

$$\mathbf{vA_1 + o + vAv_3Cos\theta + o + o = -vA_1 + vAv_3Cos\theta ..(3 - 1e)}$$
$$\emptyset = -$$

د *e* ۳-۱ هندسی شکل له مخی مونږنتیجه اخلو چی $A_1 = A_3\cos\theta$ نوپه نتیجه کی په لاس راوړو:

$$\Phi = 0$$

نو د تړلی سطحی مجموعی فلکس (سیلان)صفردی دمثال نتیجه باید حیرانونکی نه وی که مونږ پوهیږو چی د سرعت ساحه دحقیقی زراتو د جریان دپاره یو معادل مثال دی هر خط چی د **1** سطحی ته ننوزی د **3** سطحی څخه خارجیږی، نو مونږ ویلی شو چی *e* ۳-۱ شکل کی ننوتونکی جریان، د وتونکی جریان د مقدار سره مساوی دی، چه دا دهری تړلی سطحی لپاره دتقاضا وړدی. داسی چه هلته دمایع سرچینه او ذخیره نه وی, خوکه ذخیره وی نوجریان ته نوره

مایع هم داخلیږي. چه ترخارجیدنکی مایع ډیره ده او فلکس (سیلان)به منفی وی ، دفلکس (سیلان )مثبت والی منفی والی د ذخیری په مقاومت پوری اړه لری.

دمثال په توګه که دیوی ویلی کیدونکی جامدی داخلی سطحی څخه، $1cm^3$ مایع په یوه ثانیه کی نهر ته داخله شی نو مونږ به عمومی فلکس(سیلان ) $+1\ cm^3/s$ په ډول پیدا کړو.

۳-۱ شکل یو خاص حالت دیو نواخته ساحی او مستوی سطحو راښایی. مونږ په اسانی دغه نظریه یو غیر مشابهه ساحی او سطحوته ورکولای شو چه غیر منظم شکل ولری،هره غیرمنظم سطح د $dA$ وړه سطحه باندی تقسیمیدلای شی د $\overrightarrow{dA}$ وکتور جهت ددی ډیرو وړو سطحو خارج ته دی اوساحه ددی عناصرو په ستې کی د $\vec{V}$ قیمت لری او فلکس دداسی عناصرو مجموعه ده ، چه داخلی سطحی د انتګرال څخه عبارت ده:

$$\int \vec{v}.\overrightarrow{dA} \qquad (3-4)=\Phi$$

پورتنی محاسبه په دی عمومی قضیه کی داعتبار وړ ده. ۳-۴ معادله دیوی تړلی سطحی څخه محاسبه شوی نو فلکس (سیلان ) یی:

۱ـ صفر دی که چیری سطحه هیڅ ذخیره یا سرچینه ونه لری.

۲ـ مثبت دی او مقدار یی مساوی دی که سطحه موازی منبع ولری.

۳ـ منفی او مساوی دی که چیری سطحه یوازی یوه ذخیره ولری اوکه سطحه منبع او ذخیره کی واقع وی نو مجموعی فلکس (سیلان ) صفر ،مثبت او منفی کیدلای شی.

په راتلونکی برخه کی مونږ به وښایو چه دیو بل وکتور نه دفلکس (سیلان ) ته یوشان کتنه.یعنی دبرقی ساحی د $\vec{E}$ دپاره. لکه څنګه چه تاسی مخکی دمخکی پوهیږی کله چی مونږ الکتروستاتیک کی بحث کوؤ.منبع او ذخیره تل منفی او مثبت وی نو استحکام د منبع او ذخیری متناسب دی دچارجونو داندازی سره. دګوس قانون دیوی برقی ساحی فلکس (سیلان) په یوی بندی سطحی کی حسابوی د ۳-۴ معادلی په واسطه، خالص برقی چارج د سطحی په مینځ کی اینښودل شوی.

## ۳-۳د برقي ساحې فلکس (سیلان):

په ۳-۱ شکل کې دبرقي ساحې دښودلو لپاره ساحوي خطونه په نظر کې ونسئ. په دې شرط چې دغه چارجونه د سکون په حالت کې وي که څه هم د سکون په حالت کې هیڅ کوم شی سیلان نکوي خو بیا هم مونږ د سیلان مفهوم استعمالو

### د برقي ساحې د سیلان تعریف:

د سیلان د سرعت سره ورته دی په داسې حال چې د $\vec{v}$ په ځایې $\vec{E}$ ۳-۳ معادلې مطابق ښکاره کیږي. مونږ فلکس ($\Phi$) د برقي ساحې په شان تعریفوو:

$$\Phi_E = \sum \vec{E}.\vec{A} \qquad (3-5)$$

دا حالت د فلکس د سرعت په شان دی. د $\Phi_E$ فلکس اندازه د هغه برقي ساحې د خطونو د شمیر څخه عبارت ده چې د ټولې سطحې څخه تیریږي. $\Phi_E$ مونږ ته راښایي تر څو د برقي ساحې فرق له مقناطیسي ساحې سره وکړو.

۳-۵ معادله د ۳-۳ معادلې په شان په هغو حالتونو کې تطبیق کیږي چې $\vec{E}$ په مقدار او جهت کې ثابت وي د $\vec{A}$ د هر مساحت دپاسه د فلکس د سرعت په شان د برقي ساحې فلکس (سیلان) هم سکالري کمیت دی چې واحد یې ۳-۵رابطې له مخې ($N.m^2/C$) څخه عبارت دی.د ګوس قانون دیوې تړلې سطحې فلکس (سیلان) پیدا کوي. ددې دپاره چې $\Phi_E$ په عام ډول تشریح شي په خاص ډول په هغه حالاتو کې چې $\vec{E}$ یو شان دی.

۳-۲ یوه اختیاري تړلې سطحې راښئ. چې په یوې غیر متجانسې برقي ساحه کې داخل شوې دا سطحه په وړو مربع ګانو تقسیم کوو چې $\overrightarrow{\Delta A}$ مساحت لري چې هره یوه یې ډیره وړوکې ده او مستوي فرض کیږي د سطحې هر عنصر د $\overrightarrow{\Delta A}$ وکتور په ډول چې $\overrightarrow{\Delta A}$ یې مقدار دی ښایو د $\overrightarrow{\Delta A}$ جهت عادي خارج خوا ته کش شوی فرض شوېدی

د ۳-۱ شکل په شان د ا مربعګانی ډیر کوچنی مساحت لری نو $\vec{E}$ د ټولو ورکړل شو سطحو لپاره په ټولو نقطو کی ثابت او یو شان فرض کیږی.

د $\vec{E}$ او $\overrightarrow{\Delta A}$ وکتورونه چی هره مربع اختصاصوی یو د بل سره د $\theta$ زاویه جوړوی په ۳-۲ شکل کی په سطح باندی د دری مربع ګانو لویه منظره ښوول شوی ده چی ۳-۲ شکل، یوه فرضی سطحه چی په یوی غیر متجانسی برقی ساحه کی داخل شویده، راځی چی نوموړی سطحه د $\overrightarrow{\Delta A}$ د کوچنیو مربع ګانو په مساحت باندی وویشو چی هره مربع یی تر دی اندازی پوری کوچنی اوسی چی مسطحه یاهوار وګڼل شی د ساحی هرعنصرکولی شی د $\overrightarrow{\Delta A}$ په ډول وښایو چی مقدار یی د $\Delta A$ قیمت لری د $\overrightarrow{\Delta A}$ وکتور جهت د سطحی څخه د خارج په طرف نارمل نیول کیږی د ۳-۱ شکل په څیر دا چی مربع ګانی ډیر کوچنی مساحت لری نو $\vec{E}$ د هر ی نقطی لپاره دورکړل شوی مربع په مساحت کی ثابت نیول کیږی د $\vec{E}$ او $\overrightarrow{\Delta A}$ وکتورونه چی هره مربع اختصاصوی یو د بل سره د $\theta$ یوه زاویه جوړوی په ۳-۲شکل کی په سطح باندی د دریو مربع ګانو لویه شوی منظره ښودل شوی چی د $a$, $b$ او $c$ په نومونو نومول شویدی.په $a$ برخه کی$\theta > 90^0$ ،$\vec{E}$ داخل ته مخه لری په $b$ کی $E, \theta = 90^\circ$ د سطحی سره موازی ده او په $c$ کی $\theta < 90^\circ$ ، $\vec{E}$ د سطحی بهر خواته مخه لری د ۳-۵ معادلی سره د مشابهت له مخی په ذکر شوی سطحه باندی د برقی ساحی مجموعی فلکس د لاندی معادلی پواسطه پیژندل کیږی:

$$\Phi_E = \sum \vec{E}\,\overrightarrow{\Delta A} \qquad (3-6)$$

پورتنی جمع مونږ ته په یاد راوړی چی $\vec{E}\,\overrightarrow{\Delta A}$ سکالری کمیت دی د سطحی د ټولو عناصرو د مساحت ، لپاره چی ذکر شوی سطحه پری ویشل شوی ده.۲ -3شکل د a برخی نقطو په څیر ساحو لپاره ی جریان منفی محاسبه کیږی د b په څیر ساحو کی صفر او د c په څیر ساحو کی مثبت محاسبه کیږی یعنی په هغه نقطو کی چی د $\vec{E}$ دوکتور جهت بهر خواته مخامخ وی($\theta < 90^0$) د $\vec{E}\,\overrightarrow{\Delta A}$ محصله مثبت او $\Phi_E$ د ټولی

سطحی لپاره مثبت وی په ټولوهغو نقطو کی چی د $\vec{E}$ د وکتور جهت داخل خواته مخامخ وی ( $\theta > 90^0$ د $\vec{E}\,.\,\overrightarrow{\Delta A}$ محصله منفی او $\Phi_E$د ټولی سطحی لپاره منفی وی او په هغو نقطوکی چی د $\vec{E}$ وکتور جهت د سطحی سره موازی وی ($\theta = 90^0$) د $\vec{E}.\overrightarrow{\Delta A}$ محصله صفر او $\Phi_E$ د ټولی سطحی لپاره صفر راځی



**۳-۲ شکل**: د فرضی شکل یوه سطحه چی د $\vec{\mathbf{E}}$ په یو غیر متجانسه برقی ساحه کی داخل شوېدی نوموړی سطحه د $\overrightarrow{\Delta\mathbf{A}}$ په کوچنیو عنصری ساحو باندی ویشل شویده. د $\vec{\mathbf{E}}$ او $\overrightarrow{\Delta\mathbf{A}}$ وکتورونو ترمنځ اړیکه د دریو مختلفو سطحو ( **a**، **b** او **c** ) لپاره ښول شوی دی.

د برقی فلکس دقیق تعریف د ۳-۲معادلی د سطحی د لمیټ د مشتق د جمع په عوض د سطحی د پاسه د انتی ګرال په واسطه په لاندی ډول محاسبه کیږی:

$$\Phi_E = \int \vec{E}\,.\,\overrightarrow{dA} \qquad (3-7)$$

دا سطحی انتی گرال رابنایی چی تر پوښتنی لاندی سطحه باید د $\overrightarrow{dA}$ په څیر په بیحده کوچنیو ساحو وویشله شی او د $\vec{E}.\overrightarrow{dA}$ مقدار د ټولو ساحو لپاره محاسبه او د ټولی سطحی لپاره نوموړی لاسته راغلی ارقام سره جمع شی د گوس د قانون(( $Gauss$ "$law$ )له مخی کولای شو چی نوموړی انتگرال په تړلی سطحه کی معلوم کړو. په دی حالت کی د انتگرال له ننبی سره د یادښت په ډول یوه دایره هم لیکل کیږی لکه $\oint$.

**۳-۲نمونی مسئله:** **۳-۳ شکل** د R په شعاع یو تړلی فرضی سلنډر رابنی. چی د $\vec{E}$ په یوه متجانسه برقی ساحه کی داخل شویدی ،د سلنډر محور د برقی ساحی سره موازی دی د نوموړی تړلی ساحی$\Phi_E$ پیدا کړی ؟

**حـــل**:د $\Phi_E$ دا فلکس کولای شو د a ، b او c ساحو د انتگرالونو له مجموعی څخه تر لاسه کړو ( a ) د سلنډر کینۍ راس(b) د سلنډر سطحه او (c) د سلنډر د ښی راس، ساحی دی د **۳-۷** معادلی په بنسټ د یوی تړلی ساحی لپاره لیکلای شو چی:

$$\Phi_E=\oint \vec{E}.\overrightarrow{dA} = \int_a \vec{E}.\overrightarrow{dA} + \int_b \vec{E}.\overrightarrow{dA} + \int_c \vec{E}.\overrightarrow{dA}$$

په کینۍ قطب کی د $\theta$ زاویه په ټولو نقطو کی $180^0$ ده نو د $\vec{E}$ قیمت ثابت دی او د $\overrightarrow{dA}$ ټول وکتورونه د ساحی سره موازی دی نو لیکلای شو:

$$\int_a \vec{E}.\overrightarrow{dA} = \int \vec{E}\, dA \cos 180^0 = -E\int dA = -EA$$

چیرته چی$A(=\pi r^2)$ د کینۍ راس مساحت دی په ورته توگه د ښی راس لپاره لیکلای شو:

$$\int_c \vec{E}.\overrightarrow{dA} = +EA$$

د سلنډرپه جدارونو کی د $\emptyset$ زاویه په ټولو نقطو کی صفر ده نو لیکلای شو چی:

$$\int_b \vec{E}.\overrightarrow{dA} = 0$$

د سلنډر په سطحه د ټولو نقطو لپاره $\vec{E}.\overrightarrow{dA} = 0$ دی. له دی وجی مجموعی فلکس:

$$\Phi_E = -EA + 0 + EA = 0$$

متوقع نتیجه باید همداسی اوسی ځکه چی د **۳-۵** شکل تړلی ساحه کی چارج شتون نلری .د $e$**۳-۱**شکل په څیر د $\vec{E}$ کرښی (پّه ثابته توګه ) نوموړی جسم ته د کیڼ لوری داخلیږی او ښی لور ته یی تیریږی.




**۳-۳ شکل** نمونه یی مسئله: د یو تړلی فرضی سلنډر $\vec{E}$ په یوه متجانسه برقی ساحه کی د خپل محورسره په موازی ډول داخل شویدی نو ځکه د $\theta=90^0$ ده. نو $\vec{E}.\vec{dA}=0$ د سلند د پا سه د ټولو نقطو لپاره

## فلکس او د ساحی کرښی:

ددي لپاره چی د فلکس او یوي تړلي سطحي څخه د تیریدونکي برقي ساحي د کرښو د شمیر تر منځ اړیکه معلومه کړو راځئ. چي په دي سره سلا شو چي د $q$ هر واحد چارج به د ساحي د کرښو له معلوم له شمیر څخه استاذیتوب کوی مثلا د **۳-۴** شکل په څیر د شپږو کرښی څخه شپږ ساحوی کرښی چی له سطحی څخه بهر خوا ته مخه لری د $+q$ او شپږ کرښی په سطحه باندی ختمیږی د $q-$ په نوم نومولی شو ، که چیری هرچارج په یوه تړلی سطحه باندی محدود اوسی، نو د مثبتی تړلی سطحی برقی فلکس چی $(6+)$ واحده او د منفی چارج لرونکی تړلی برقی فلکس $(6-)$ واحد دی مونږ $(1+)$ واحد فلکس د ساحی د هغو کرښو لپاره تعین کړی چی بهر خوا ته د ټولی سطحی څخه تیریږی او $(1-)$ واحد فلکس مو د هغو کرښو لپاره تعین کړی چی د سطحی د داخل څخه تیریږی دا مهمه نه ده

چې هره د چارج پوښوونکی ساحه څومره پراخه او یا کوچنۍ ده شپږ ساحوی کرښې تل سطحی ته ننوزي او فلکس یې شپږ واحده وي.

په b ۴-۳ شکل کې د ترسیم د ښکتنۍ برخې ساحوی کرښې درې ځلې له سطحې څخه تیریږي.د سطحې له بهر څخه د چارج په لوری په لومړی ځل چې کله نوموړی کرښې سطحې ته داخلیږي مونږ یې (1−) محاسبه کوو ځکه چې مسیریې د سطحې داخل خوا ته دی، د دوهم ځل لپاره نوموړی کرښه (1+) محاسبه کیږي ځکه چې په دې حالت کې د نوموړې کرښې مسیر بهر خواته متوجه وي، او بیا اخر ځل (دریم ځل) چې د نوموړې کرښې مسیر داخل خواته متوجه وي بیا هم (1−) محاسبه کیږي، له دې وجې د سطحې لپاره د فلکس د کرښو خالصه محصله (1−) او د ټولې سطحې د فلکس خالصه محصله (6−) واحده لاسته راځي. دا مهمه نه ده چې د سطحې شکل څومره کوچنی دی یا تر څومره حده غیر منظم یا کنډوکپر دی خو د سطحې خالص فلکس مشابه او یوازې د هغې چارج د مقدار له مخې اندازه کیږي چې سطحې ته داخلیږي.۳-۵ شکل یوه تړلې سطحه ښيي چې $+q$ او q− چارجونو ته نږدې شویده، دنوموړې سطحې خالص فلکس صفر دی ځکه چې دهرې مثبتې ساحوی کرښې په مقابل کې چې له نوموړې سطح څخه بهر ته خارجیږي په مقابل کې یې منفي ساحوی کرښې سطحې ته داخلیږي . داچې دواړه چارجونه مشابه مقدار لري نو د ساحې دخطونو مجموعي شمیر صفر لاسته راځي او خالص فلکس یې هم صفر دی.



۴-۳ شکل: ($a$) شپږ ساحوی کرښې چې د یوې فرضي تړلې سطحې څخه چې لرونکې $q$+ چارج دی تیریږي ($b$) شپږ ساحې کرښې چې د $q$− چارج لرونکي ساحې ته داخلیږي.



۵-۳ شکل: که چیرې یوې سطحې ته نږدې کیدونکې خالص چارج صفر او سې نود ساحوې کرښو ومجموعې شمیر (اومجموعې برقي فلکس) چې له نوموړې سطحې څخه تیریږي هم صفر دی.

اوس فکر وکړئ چې 30+ ساحوی کرښې (یا دفلکس 30+ واحده) له یوې فرضي تړلې سطحې څخه تیریږي کولای شي. معلوم کړئ چې په څومره اندازه چارج به سطح کې شتون لري اود سطحې دننه په کومه ساحه کې موجود دي؟ پوهیږوچې دسطحې داخل خالص چارج 5q+ دی خو په دې نه پوهیږو چې کومه برخه کې یوه زره پوره$5q$+ چارج لري یا په کومه برخه کې دوه د چارجونوزرې $6q$+ او q− چارج لرونکي دي، درې زرې $8q$+ , 4q+ او $7q$− یابه کوم بل مقدارد تام عدد چارج یا بل ممکنه رقم د چارجونو لرونکي دي.همدارنګه چارج یا چارجونه کولای شي دسطحې دننه په هر ځای کې موقعیت ونیسي چې دا داخلي چارج 30+ واحده فلکس را منځته کړي. که چیرې مونږ یوائې جریان وپیژنومونږ دسطح په داخل کې دچارج خالص مقدار معلومولای شو خومونږ نشوکولای دچارجونو موقعیت او په یوه خالصه نقطه کې دهغې مقدار تعین

کړو. او له دی وجهی برقي ساحی ،سطحی اوفضاء کی دنور څه په اړه هم څه نشو ویلای. په هر حال کچیری مونږ یوه کره وی ډوله سطحه ترسیم کړو او په دی پوه اوسو چی فلکس په متجانسه توګه په سطحه کی توزیع شویدی، نو ویلای شو چی ټول چارج دنوموړی کری په مرکزی نقطه کی د $+5q$ یوی زری په ډول ځای لری. چی دنوموړی چارج لرونکی زری د مقدار او موقعیت د پیژندلو لپاره په هره نقطه کی برقی ساحه او موقیعت حسابولای شو. له پورتنی توضیح څخه ویلای شو چی:

دیوی تړلی سطحی څخه تیریدونکی مجموعی فلکس او خالص چارج چی د سطحی په مینځ کی اینبودل شوی ، اړیکه ی تل قوی او قانونی ده، خو مونږ کولای شو له دی اړیکی څخه دکار اخیستلو له مخی یوائی کچیری دچارج او سطحی تر منځ هندسی اړیکی سره ډیر شباهت ولری په فضاء کي دهرو نقطو برقی ساحی معلومه کړو. دګوس قانون دیوی تړلی سطحی فلکس او هغه خالص چارج ترمینځ چی د سطحی په مینځ کی دی اړیکه څیړي.

### ۳-۴دګوس قانون ($Gauss''$ $Law$):

داچی اوس مونږ له یوی تړلی سطحی څخه دتیریدونکی برقی ساحی وکتور فلکس وپیژنده نو مونږ چمتو یو چی دګوس قانون ولیکو. راځی فرض کړو مونږ دمثبو او ومنفی چارجونو یوه ټولګه لرو چی دفضاء په یوه ځانګړي ساحه کی د $\vec{E}$ یوه برقی ساحه جوړوی . مونږ په نوموړی ساحی کی یوه تړلی خیالی سطحی چی دګوسی سطحه ($Gaussian\ surface$) په نوم یادیږی جوړوؤ چی ذکر شویو چارجونو ته به نژدیوالی ولری او یا به یې ونلری. دګوس قانون د نوموړی سطحی د مجموعی فلکس $\Phi_E$ او نوموړی سطحی ته د داخلیدونکی خالص چارج $q$ ترمنځ اړیکه څیړی په لاندی ډول توضیح کیږی:

$$\epsilon_0 . \Phi_E = q \qquad (3-8)$$

$$\epsilon_0 \oint \vec{E} . \overrightarrow{dA} = q \qquad (3-9)$$

هغه حلقه چې د انتیګرال په سر لیدله کیږي، ددې ښودونکې ده چې نوموړې انتیګرال د یوې تړلې سطحې له مخې تر لاسه شوې دی. موږ په ۳-۲ پوښتنه کې ولیدل چې د ګوس د قانون له مخې $\Phi_E$ هلته صفر وه ځکه چې سطحې په مینځ چارج نه وه. لکه څرنګه چې په ۲-۵ برخه کې توضیح شوه د برقي ساحې د کرښو له شمیر سره متناسب دی چې د ساحې سره په عمودي ډول دهغې څخه تیریږي.

د ۳-۹ معادلې انتیګرال اصلا د هغه ساحې د کرښو شمیر راښئ کومې چې له اړونده سطحې څخه تیریږي د ۳-۹ معادلې له مخې دا هم څرګندیږي چې په مجموعي ډول د هغه ساحې د کرښو شمیر چې له یوې سطحې څخه تیریږي باید له هغه خالص چارج سره متناسب اوسي چې نوموړې ساحې یې له ځانونو سره لري. د ګوسي سطحې غوره کول فرضي دي معمولاً داسې سطحه په نظر کې نیول کیږي چې د توضیح تناظر یې لږ ترلږه د سطحې یوه برخه په بر کې نیولې اوسي او برقي ساحه یې ثابت مقدار ولري چې په دې اساس د ۳-۹د معادلې په انتګرال کې یې محصله تر لاسه کیږي. په ذکر شویو شرایطو کې کولای شو د ګوس قانون د برقي ساحې د ارزونې لپاره وکاروو.

د ۳-۲ شکل د یوې دوه قطبي د قوې کرښې (او له دې کبله رامنځته شوې برقي ساحه ښيې) په نوموړې شکل کې څلور تړلې ګوسي سطحې ترسیم شوې دي په $S_1$ سطحه کې برقي ساحه په هره برخه کې بهر خواته متوجه ده نو ځکه د ۳-۲ شکل د $c$ برخې د لیدنې په اساس د $\vec{E}.\overrightarrow{dA}$ محصله د $S_1$ سطحې په هر ځای کې مثبته ده کله چې موږ د ۳-۹ معادلې له مخې د ټولې تړلې سطحې انتګرال لاسته راوړو، نو نتیجه یې مثبته لاس ته راځي له دې وجې د ۳-۹ معادلې څخه دا لاسته راځي چې نوموړې سطحه به په ځان کې مثبت چارج ولري د فارادې د قانون په اصطلاح هم یوې سطحې ته د قوې د داخلیدونکو کرښو څخه د خارجیدونکو کرښو شمیر زیات وي نو ځکه باید نوموړې سطحه مثبت خالص چارج ولري.

له بلې خوا د ۳-۲ شکل د $S_2$ په سطحه کې برقي ساحې په هره برخه کې داخلیږي لکه د ۳-۲ شکل د a د برخې په څیر $\vec{E}.\ \overrightarrow{dA}$ د هرې برخې لپاره منفي راځي او د ۳-۹ معادلې

انتګرال یې هم منفي قیمت ورکوي، کوم چې ددې ښودونکې ده،چې نوموړې سطحه دمنفي چارج لرونکې ده ،ساحې ته د قوې د داخلیدونکو کرښو شمیر نسبت خارجیدونکو کرښو ته زیات دی.

د $S_3$ سطحه په ټولیزه توګه هیڅ چارج نه لري نو د ګوس دقانون له مخې دسطحې مجموعي فلکس هم باید صفر اوسي، چې دا د۳-۲ شکل سره هم تطابق لري یعنې د قوې ګڼې کرښې چې دسطحې پورته برخې ته داخلیږي په همغه اندازه یې له ښکتنۍ برخې څخه خارجیږي. په دې حالت کې تصادم منځته نه راځي تاسو کولای شی هر ډول غیر منظمه بڼه لرونکې سطحه په ۳-۲شکل کې ترسیم کړی. او تر هغې چې نوموړې سطحه کوم چارج و نه لري دهغې ساحې د کرښو شمیر چې نوموړې سطحې ته داخلیږي له هغې څخه د خارجیدونکو کرښو له شمیر سره به مساوي اوسي.

له هغه ځایه چې موږ د دؤو چارجونو مقدارونه سره مساوي ارزؤو، نو د $S_4$ سطحه هم خالص چارج نلري بیا هم د نوموړې سطحې مجموعي فلکس صفر راځي ځینې ساحوي کرښې په بشپړ توګه په سطحه کې سیر لري او له دې وجې د سطحې په فلکس باندې کومه اغیزه نه لري په هر حال هره هغه د ساحې کرښه چې مثبت چارج د ځان پر ځای پریږدي بلاخره په منفي چارج باندې خاتمه مومي هره هغه کرښه چې د مثبت چارج له طرفه راځي او له سطحې څخه د بهر په طرف تیریږي په مقابل کې یې د داخل په طرف بله کرښه له نوموړې سطحې څخه تیریږي ځکه چې هغه د منفي چارج په لټه کې وي له دې وجې مجموعي فلکس صفر لاسته راځي.




**۳-۲ شکل**: دوه مساوي او مخالف چارجونه او کرښې چې په خپله شاوخوا کې د يوې برقي ساحې استازيتوب کوي. په دغه شکل کې د څلور ترلو ګوسي سطحو مقطع هم ښودل شويده.

## دګاوس قانون اودکولمب قانون:

دکولمب قانون دګاوس دقانون څخه اخستل کيدای شي، ددي لپاره بايد دګاوس قانون په يو مشابه مثبت چارج (q+) باندي تطبيق کړو لکه ۳-۷ شکل که څه هم دګاوس قانون دهرډول سطحې لپاره صحيح دی. خومونږ کروي سطحه انتخاب کړي چې د $r$ شعاع لري او چارج ئې په مرکز کې دی. ددي سطحه ګټه داده چې $\vec{E}$ بايد په سطحه عمود وي نو د $\theta$ زاويه د $\vec{F}$ او $\overrightarrow{dA}$ ترمنځ صفرده نو $\vec{E}$ دسطحې په هره نقطه کې يو شان مقدار لري، دګاوسي سطحې جوړول چې دمشابهت ګټه پکې وي داساسي اهميت څخه برخورداره ده.

په ۳-۷ شکل کې دواړه $\vec{E}$ او $\overrightarrow{dA}$ دګاوسي سطحې په هره نقطه کې په شعاعي توګه خارج ته متوجه دي نو د $\vec{E}.\overrightarrow{dA}$ مقدار $E.dA$ دی نو EdA دګاوس قانون د ۳-۹ معادلې ساده شکل لري نو :

$$\epsilon_0 \oint \vec{E}.\overrightarrow{dA} = \epsilon_0 \oint E.dA = q$$

نو ځکه دامقدار دکرې دټولو نقطو لپاره ثابت دي نو دانتګرال څخه يې وباسو لرو:

$$\epsilon_0 E \oint dA = q$$

واقعا دکري دټولې سطحې مساحت $4\pi r^2$ دي نوله دي امله لاسته راځي چې:

$$\epsilon_0 E(4\pi r^2) = q$$

له دي ځايه:

$$E = \frac{1}{4\pi\varepsilon_0}.\frac{q}{r^2} \qquad (3-10)$$

۳-۱۰معادله د $\vec{E}$ دبرقې ساحی مقدارچې د $q$ د نقطوی چارج څخه د r په فاصله کې واقع وی راکوی، چې د۲-۲ معادلي سره برابره ده چې دکولمب له قانون څخه لاس ته راوړل شوي نو دمشابه ګاوسی سطحې په انتخاب سره مونږ دکولمب قانون دګاوس په قانون کې جوړولای شو، دادواړه قوانین دمسايلو په حلولوکې يوشان دي خودګاوس قانون ډيرعام دی نو ځکه دالکترومقناطيس داساسی معادلې په ډول پيژندل شوي. دا جالبه ده چې وليکل شی د تناسب ثابت د کولمب په قانون کی چی د $\frac{1}{4\pi\varepsilon_0}$ دی، که داثابت لنډ په $K$ وښايو دګاوس قانون داسې ليکو:

$$\left(\frac{1}{4\pi k}\right)\boldsymbol{\Phi_E} = q$$

دکولمب په قانون کې مونږ د$4\pi$ څخه صرف نظر کوو نودګاوس په قانون او نورو راتلونکو مرتبطو معادلو کې مونږ $4\pi$ نه ليکو چی په وار وار دا معادله تکرار شويده:

**۳-۵** دګاوس دقانون استعمال:

که په يوجسم کی چارجونه يوشان او لوړمقدار ولری د $E$ دمحاسبې لپاره دګوس قانون استعماليدای شي ددی قانون عملی مثال د يونقطوی چارج دساحی محاسبه ده چی په

۳-۱۰معادله کی پری بحث شوی وه اوس مونږ نور مثالونه راوړو.

**دچارج نامحدوده خط:**

**۳-۸ شکل** دمثبت ثابت چارج نامحدوده خط یوه برخه رابښي چی د چارج خطی کثافت (چارج په واحد دفاصلی ) $\lambda$ دی مونږ دخط څخه د r په فاصله کې برقي ساحه پیدا کوو.په **۲-۴** برخه کې مونږ مشابه دلایل مطرح کړی وه چې په دې حالت کی دبرقی ساحی یوازې شعاعي اجزاء رول لري. نو دا پرابلم مشابه استوانی لری ، نو مونږ یوه دایروی استوانه د r په شعاع اودh په ارتفاع سره دګاوسي سطحې په ډول انتـــخابوؤ، E ثابت دی داستوانی سطحې دپاسه اوپه سطح عمود دی.د $\vec{E}$ فلکس په مینځ ددی سطحه کی(E(2πrh دي څـرنګه چې 2πrh دسطحې مساحت دی نو په دې دایروي قاعدو کې فلکس نه شته ځکه دلته E دسطحو یا قاعدو سره موازي دی نو $\vec{E}.\overrightarrow{dA}$ په کی هر چیرته صفردی.




**۳-۸ شکل.**

په **۳-۸** شکل کې د $q$ چارج دګاوسې سطحې په واسطه احاطه شوي د ګاوس قانون د $\lambda h$ څخه عبارت دی **۳-۹** د معادله نولرو:

$$\epsilon_0 \oint \vec{E}.\overrightarrow{dA} = q$$

$$\epsilon_0 E(2\pi rh) = \lambda h$$

$$E = \frac{1}{2\pi\varepsilon_0 r} \qquad (3-11)$$

دګاوس قانون د انتګرال د استعمال څخه اسانه طریقه ده. دګاوس په طریقه هغه وخت سوال حلولای شو چې ګاوسې سطحه انتخاب کړو. کیدای شی داسطحه مکعبه، کره یابله وي. که څه هم داتړولې سطحې داستعمال وړ دي خودلته یوازې سلندري سطحه مناسبه ده. دګاوس دقانون یو خاصیت دادی چې دهغه مسایلو لپاره پکاریږي چې معلومه اومشابه اندازه ولري.

دچارج نامحدوده صفحه:

**۳-۹ شکل** یوه نرۍ غیرهادي او نامحدوده سطحه ښایې چې ثابتاً مثبت چارج شوي چې دچارج سطحی کثافت ئی( دچارج په واحد سطح )$\sigma$ دی، مونږ صفحې ته دنږدې نقطو ساحه مطالعه کوو.ګاوسي سطحه د $A$ دمقطع لرونکي استوانه ده چې دسطحې یا مستوي څخه تیریږي مونږ ویلای شو چې $\vec{E}$ په قاعدو عمود دی. څرنګه چې $\vec{E}$ دسطحې څخه نه تیریږي نو په فلکس کې برخه نه اخلې فرضاً داستوانې دواړه سطحې دچارج دصفحی څخه مساوي فاصله لري نو $EA$ ددواړو قاعدولپاره ثابت دی او ددواړو لپاره مثبت دی نو دګاوس قانون لاندي نتیجه ورکوي.

$$\epsilon_0 \oint \vec{E}.\overrightarrow{dA} = q \Rightarrow \epsilon_0(EA + EA) = \sigma A$$

چیرته چې $\sigma A$ احاطه شوي چارج دی د E لپاره حاصلوؤ:

$$E = \frac{\sigma}{2\epsilon_0} \qquad (3-12)$$

نـوټ: $E$ دصفحی دهرطرف دټولو نقطو لپاره مساوی دی که څه هم دچارج نامحدود صفحه په فزیکې ډول نه شې موجودیدلای مګر بیاهم تقریباً دمحدودې صفحې په ډول حقیقی نتیجه ورکوي.




۳-۹ شکل.

**دچارج يوکروي ډوله قشر:**

په ۱-۵ عنوان کې مونږ دجاذبې او الکتروستاتيک ترمنځ مشابهت وښود ترڅو دمشابه چارج شوو سطحو دوه خواص چې يو په بل قوه واردوي وپيژنو ، او په ۲-۴ برخه کې مونږ داخواص ددې لپاره استعمال کړل ترڅوبرقې ساحه لاسته راوړو چې هغه مشابه کروي قشروو.

1 يوه کروي قشردخارجې چارج لپاره داسې تمثيل کيږي چې چارج په همدې نقطه کې راټول شوي.

2 يو مشابه چارج شوي برقي قشر په داخلې چارج شوي ذري هيڅ قوه نه واردوي.

په ښکاره ډول دايو دنظر اختلاف دى . آيا دادمشابهت دليل به رامنځته شوي واى که چارج په سطحه کې په مشابه ډول نه واى توزيع شوي؟ د $s_1$ په سطحه دګاوس دقانون دتطبيق په نتيجه کې چيري چې $r > R$ دى. نو لاندي نتيجه لاسته راځې:

$$\epsilon_0 E_r (4\pi r^2) = q,$$

يا

$$E_r = \frac{1}{4\pi\epsilon 0} . \frac{q}{r^2} \quad (r > R \text{ کروي قشر}) \quad \text{يا} \quad ۳\text{-}3$$

لکه په ۳-۷ شکل کې، مشابه چارج شوي قشر دچارج دټولو خارجي نقطو لپاره ديو نقطوي چارج په ډول عمل کوي. چې دادقشر دلومړۍ نظريې ثبوت دی. که دګاوس قانون د $s_2$ په سطحه تطبيق شي چې دلته $r < R$ نو لاندي نتيجه لاسته راځي:

$$E_r = 0 \quad (\text{کروي قشر}، r < R) \quad (3-14)$$

څرنګه چې دګاوسي سطحه هيڅ چارج نه لري اوهم $E$ دسطحې په ټولو نقطو کې يوشان قيمت لري، نو په دې سبب دچارج په يو مشابه قشرکې برقي ساحه له منځه ځي. او کله چې يو امتحانی چارج په هره داخلي نقطه کې ځای په ځای شي هيڅ برقي قوه به حس نه کړي چې دادقشر ددوهمې نظريې ثبوت کوونکي دي.

دادوه نظريې يوازې دمشابه چارج په قشر دتطبيق وړ دي. که چارج په سطحه باندې په غيرمشابه ډول توزيع شي نودچارج کثافت دسطحې په هره نقطه کې فرق کوي. نوکه دا نظرئې نه تطبيق کيږي. مشابهت به له منځه لاړ شي په نتيجه کې به دګاوس په قانون کې دانتګرال څخه $E$ نه شي له منځه تلای. فلکس به دټولو خارجي سطحو لپاره $q/\varepsilon_0$ شي اوداخلي سطحو لپاره به صفرشي.اومونږبه دمشابهت په شان له $E$ سره مستقيمه رابطه نه شو جوړولای. دمشابه چارجې قشر په خلاف په داخل کې به ساحه صفر نه وي.

## يو کروي ډوله دمشابه چارج توزيع:

۳-۱۱شکل دچارج دکروي خپريدلو يو مقطع ښيي. چې شعاع يې $R$ ده. دلته چارج په يو کروي حجم کې خپورشوي. پدې ځای کې دچارج کثافت($\rho$ دچارج په واحد حجم)ثی ثابت دی بلکې $\rho$ د نقطې په فاصلې پوري چې له مرکز څخه يې لري مربوط دی، چې داحالت دکروي مشابهت په نوم يادوي.$\rho$ د $r$ يوه تابع ده خودهرزاويوي کواردينات لپاره تابع نه شي کيدای. راځئ چې د $E$ لپاره او دچارج خپريدني دداخلي او خارجي نقطو لپاره يوه اصطلاح پيداکړو.

هره کروي ، دمشابه چارج توزیع دمتحد المرکز نري قشرونو په ډول فرض کولای شو لکه په ۳-۱۱ شکل کې. په دي حجم کې دچارج کثافت کیدای شي له یو قشر څخه بل قشر ته فرق وکړي، خو مونږ دا قشرونه ډیر نري کوو ترڅو په معین قشر کې کثافت ثابت فرض شي. دمخکینی موضوع له مخې کولای شو دهر قشر عضویت په مجموعي برقي ساحه کې حساب کړو. دهر قشر برقې ساحه یو شعاعي عنصر لري.نومجموعې برقي ساحه هم یو شعاعې عنصرلري. اوس به په هغو نقطو کې شعاعي عناصرد (قشر) حساب کړو چې د $r$ په فاصله کې پراته وي داسې چې $r$ دکري له $R$ څخه لوي دی لکه په۳-۱۱$a$شکل کې د ۳-۱۳معادلي له مخې هر متحد المرکز قشر چې د $dq$ چارج لرونکې وي دبرقي ساحې لپاره د $dE_r$ یو شعاعې عنصر تیاره وي. مجموعې برقي ساحه دټولو عناصرو دمجموعې څخه عبارت ده، څرنگه چې ټول عناصرشعاعې دي نو مونږ دټولو قشرونو دبرقې ساحې دپیدا کولو لپاره دویکتوري جمعې پرځای له الجبري جمعې څخه استفاده کوو:

$$E_r = \int dE_r = \int \frac{1}{4\pi\varepsilon_0}.\frac{dq}{r^2}$$




۳-۱۱شکل.

په کروي ډول دچارج دتوزیع یو مقطع، چې دچارج کثافت په دي غیر هادي ماده کې فرق کوي چې په $a$ شکل کې گاوسي سطحه دچارج د توزیع څخه بهر او د $b$ په شکل کې گاوسي سطحه دچارج دتوزیع په داخل کې رسم شوي. اویالکه څرنگه چې د $q$ په انتگرال کې $r$ ثابت دی نو:

$$E_r = \frac{1}{4\pi\varepsilon_0}.\frac{q}{r^2} \qquad (3-15)$$

چې دلته $q$ دکرې مجموعي چارج دی. نو په دې خاطر په کروي ډول دمشابه چارج بهرنۍ نقطې دبرقي ساحې هغه قيمت لري کوم چې يې په مرکز کې دچارج دغلظت په وخت کې لاره. دانتيجه دجاذبې قوې سره مشابهت لري کوم چې په **۱۴-۵** برخه کې ثبوت شوه. چې دواړه نتيجې دمربوطه جاذبه قوو دمربع دمعکوس په واسطه تعقيبيږي. اوس مونږ دچارج د توزيع دداخلي نقطو لپاره برقي ساحه په نظر کې نيسو ، **۳-۱۱**شکل يو کروي ګاوسي سطحه ښيي. چې$(r < R)$څخه دی.دګاوس دقانون څخه لاندې نتيجه لاس ته راځي:

$$\epsilon_0 \oint \vec{E}.\overrightarrow{dA} = \epsilon_0 E_r(4\pi r^2) = q'$$

يا :

$$E_r = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}.\frac{q}{r^2} \qquad (3-16)$$

چې دلته $q'$ د$q$ يوه برخه ده چې د r شعاع لرونکې کرې په داخل کې واقع دی. دقشرددوهمې تيورۍ په اساس د $q$ هغه برخه چې دکرې څخه بهر واقع ده د $\vec{E}$ په برقي ساحه کې هيڅ کمک نه کوي.ددې محاسبې ددوام لپاره بايد مونږ د $q'$ چارج وپيژنو چې د$r$ شعاع لرونکې کرې په داخل کې واقع دی. ددې لپاره چې $\rho(r)$ وپيژنو نودمشابه چارج يو کره فرضوو. چيرې چې دچارج کثافت ی په هره داخلي نقطه کې مشابه قيمت لري خو دکرې په خارجي سطحه کې دټولو نقطو لپاره صفرده. دداسې مشابه کرې د $r$ دشعاع دداخلي نق

طول دچارج کسر دحجم دکسر سره مساوي دی:

$$\frac{q'}{q} = \frac{\frac{4}{3}\pi r^3}{\frac{4}{3}\pi R^3}$$

يا

$$q' = q\left(\frac{r}{R}\right)^3,$$




۳-۱۲ شکل.

ځرنګه چې $\frac{4}{3}\pi R^3$ د کروی د چارج حجم دی نو $E_r$ پدې ډول دی:

$$E_r = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}.\frac{q_r}{R^3} \quad \left(\text{منظمه کره}\ , r < R\right) \qquad (3-17)$$

۲-۲۴ معادلې ته په کتنې سره دا معادله باید د $r = 0$ لپاره صفر شي. ۳-۱۷ معادله یوازې هغه وخت د تطبیق وړ ده چې د چارج کثافت مشابه وي بې له دې څخه چې r په نظر کې ونیول شي.

۳-۱۷ او ۳-۱۵ باید د r = R لپاره ساحه د چارج توزیع ساحه په سطح کې عینی نتیجه ورکړي. ۳-۱۲ شکل کې د $r < R$ د نقطو لپاره د ۳-۱۷ معادلی څخه $r > R$ نقطو لپاره برقې ساحې د ۳-۱۵ معادلې څخه پیدا کوو.

۳-۳ مثال: له ۳-۱۳$a$ شکل د دوه مشـــابه چارج لرونکو صفحو ښودونکې دی چې $\sigma+= +6.8\,\mu C/m^2$ او $\sigma-= -4.3\,\mu C/m^2$ دی د صفحو چپ طرف، ښې طرف او منځ کې د $\vec{E}$ برقې ساحه پیدا کړئ؟

حـــل: لمړی د هري صفحې برقې ساحه پیدا کوو بیا د برقی ساحې د ځای په ځای کولو د قانون له مخې اضافه کوو، د مثبتو لوحو لپاره له ۳-۱۲ معادلې څخه لرو:

$$E_+ = \frac{\sigma_+}{2\epsilon_0} = \frac{6.8 \times 10^{-6}\ C/m^2}{(2)(8.85 \times 10^{-12}\ C^2/N\cdot m^2)} = 3.84 \times 10^5\ N/C.$$

همدارنگه دمنفی صفحې لپاره:

$$E_- = \frac{|\sigma_-|}{2\epsilon_0} = \frac{4.3 \times 10^{-6}\ C/m^2}{(2)(8.85 \times 10^{-12}\ C^2/N\cdot m^2)} = 2.43 \times 10^5\ N/C.$$

$a$ ۳-۱۳ شکل دغه برقي ساحې دورقو چپ طرف، ښي طرف او دورقو په منځ کې ښي. آخري برقي ساحه په دي دريو ساحو کې د $\vec{E}-$ او $\vec{E}+$ دوکتوري جمعی څخه لاس ته راځي. چپ طرف ته $\vec{E}$ منفی او ښي طرف ته $\vec{E}$ مثبت په نظر کې نیسو:

$$\begin{aligned} E_L &= -E_+ + E_- = -3.84 \times 10^5\ N/C + 2.43 \times 10^5\ N/C \\ &= -1.4 \times 10^5\ N/C. \end{aligned}$$

په نتیجه کې منفی برقي ساحه دچپ طرف ښودونکې ده. او په ښي طرف کې همدا ساحه له مثبت علامې سره موجوده ده. دصفحو په منځ کې:

$$\begin{aligned} E_C &= E_+ + E_- = 3.84 \times 10^5\ N/C + 2.43 \times 10^5\ N/C \\ &= 6.3 \times 10^5\ N/C. \end{aligned}$$

دصفحو په بهر کې برقي ساحه دیوي ورقې دساحې په ډول ده . چې دسطحې دچارج کثافت یې $\sigma_+ + \sigma_-$ یا $+2.5 \times 10^{-6}\ C/m^2$ دي.




۳-۱۳ شکل:($a$) :دوه مخالف چارج لرونکې صفحې چې د $\sigma_-$ او $\sigma_+$ چارج لرونکې دي په موازي ډول واقع شوي دي. هره صفحه د $\vec{E}-$ او $\vec{E}+$ برقي ساحې رامنځته کوي په هغه صورت کې چې بله صفحه نه وي.($b$):چپ طرف دصفحی $L$ ښي طرف دصفحی $R$ او مرکزته $C$ په نږدې ساحو کې شبکوي ساحه د $\vec{E}-$ او $\vec{E}+$ دوکتوري جمع څخه حساب شوي.

۳-۲ دګاوس قانون او هادي اجسام:

دګاوس دقانون په واسطه دمختلفو (مشابه توضیحاتو ) لپاره برقي ساحه حسابولای شو. په همدې ډول دګاوس دقانون په واسطه دهغه هادي خواص هم معلومولای شو. چې برقي چارج انتقالوي، یو ددې خواصو څخه دادی. یو چارج چې په یو مستقل هادي کې ځای په ځای شوي، کاملاً دهادي بهرنۍ سطحې ته ځي، دهادي په داخل کې هیڅ چارج نه شته: راځئ وګورو کله چې یو مقدار برقي چارج په یو مستقل هادي کې ځای په ځای شي. څه به رامنځته شي؟دغه چارج دهادي په هره نقطه کې ځای په ځای کیدای شي. حتی په داخل کې هم، لمړی دهادي په داخلی سطحه کې برقي ساحه وي، خودابرقي ساحه په چارج قوه واردوي ترڅو خپل ځان بیاتوزیع کړي او په ډیر کم وخت کې $10^{-9}\ sec$ کی

برقي ساحه صفر کيږي او چارج حرکت نه کوي. داهغه حالت دی چې دالکترو ستاتيکې تعادل( ثبات ) (*electrostatic equilibrium*) په نوم يادېږي. که دهادي په داخل کې ساحه صفر نه واى نو دهادي الکترونونه به ترقوی لاندي راغلې واى او جريان به ودريدلاى واى. څرنگه چې جريان نه ودرېږي نو مونږ وايو چې دهادي په داخلې سطحه کې برقي ساحه صفر ده. دلته مونږ دمستقل هادي څخه استفاده کوو. مستقل هادي هغه هادي دی چې کوم بهرنی عامل پري اثرونه کړي. هغه سيم چې يو جريان انتقالوي، يو مستقل هادي نه دي ځکه دابايد په يو خارجې عامل لکه بطری پوري تړلي وي. پدي هادي کې برقي ساحه صفرنه ده او (سيم) په الکتروستاتيک ثبات کې نه دي.

که مونږ قبول کړو چې د يو هادي په داخل کې دالکتروستاتيک ترشرائطو لاندي برقي ساحه صفرده نو دگاوس دقانون له مخې چارج بايد دهادي په بهرنی سطحه کې واقع شي. د $a$ ۳-۱۴شکل يو هادي ښيي چې ديو تارپه واسطه ځوړند شوي دی، داهادي د $q$ چارج انتقالوونکې دی او يوه گاوسي سطحه چې دهادي دبهرنی سطحې په داخل کې رسم شوي.

برقي ساحه دهادي په هره نقطه کې صفرده، او دگاوس دسطحې په هر نقطه کې چې دهادي په داخل کې واقع ده، برقي ساحه صفر ده نودگاوس په سطح کې فلکس صفردی. دگاوس دقانون څخه نتيجه کيږي هغه شبکوي چارج چې دگاوسي سطحې په داخل کې وه بايد صفروي. که دسطحې په داخل کې چارج نه وي نو بايد دسطحې څخه بيرون وي.ولې دهادي په داخل کې ساحه صفرده؟ فرضاًکه مونږ يوهادي ديو نري پلاستيک په واسطه پوښ کړو او کله چې هادي کاملاً لري کړو نوبرقي ساحه به په خپل حال پاتي شي، او په هره داخلي نقطه کې به صفر وي. له دي څخه معلوميږي چې برقي ساحه دچارج په واسطه منځته راغلي، نه دهادي په واسطه او هادي يوازي چارجونو ته يو خط السير ښيي. ترڅو چارجونه په اسانی سره په يو موقيعت کې ځای په ځای شي او دهادې په داخل کې يوه صفري برقي ساحه رامنځته کړي.

په داخلي سطحه کې چارج:

که هادي يوداخلې خاليګا ولري آياددي خاليګاپه سطحه به هم چارج رابنکاره شي؟ دداسې يوي خاليګا دجوړولو لپاره يوه خنثی ماده دهادي منځ څخه راباسو داسې چې دچارج توزيع په خارجې او داخلې سطحو کې تغيرونه کړي اوديوبنه ثبوت لپاره دګاوس دقانون څخه استفاده کوو.

د b ۳-۱۴ شکل په شان ديوي داخلې خاليګاپه اطراف يوه ګاوسي سطحه دهادي په داخل کې رسموو ، څرنګه چې په هره داخلې نقطه کې $\vec{E} = 0$ دی نو ګاوسي سطحې کې Flux نشته نو داسطحه هيڅ شبکوي چارج نه لري نو په دي سبب دسطح داخلې خاليګاه کې هيڅ چارج نشته.

که د $q'$ يو چارج دهادي دخالګاه په داخل کې کيښودل شي (هادي نور مستقل نه دی) اوس هم دګاوس دقانون له مخې دګاوسي سطحې په داخل کې ساحه بايد صفروي، ددي لپاره د $-q'$ چارج بايد دسطحې په جدارکې جذب شي. که هادي بهرنی ساحه په اول کې د $q$ چارج ولري نواوس $q+q'$ چارج دکری په خارجی سطحياوهم په شبکوي چارج کې تغير نه راځې.




۳-۱۴ شکل:($a$): يو مستقل هادی چی د $q$ چارج لرونکی دی اود يو تار په واسطه ځوړند دی دهادی داخل کی يو ګاوسی سطحی رسم شوی. ($b$) : دهادې په داخل کی يوه خاليګاه ديوی ګاوسی سطحی پواسطه احاطه شوی.

دهادي څخه بهربرقې ساحه:

که څه هم چې اضافي چارج کولای شي دمستقل هادي داخلي سطحې ته ننوزي چارج په عمومي ډول په دي سطح کې په مشابه ډول نه خپرېږي (که سطحه کروي نه وي) یا په بل عبارت دسطحي دچارج کثافت $\sigma = \frac{dq}{dA}$ له یو نقطې څخه بلې نقطې ته فرق کوي.دګاوس دقانون په واسطه کولای شو دسطحې دهري نقطې دچارج دکثافت اوبرقي ساحي $\vec{E}$ ترمنځ ارتباط پیداکړو، a **۳-۱۵** شکل یو ګاوسي سطحه ښیي. چې دوه قاعدي یا خولي یې A دي یو قاعده یا خوله یې په مکمل ډول دسطحې په داخل کې او بله یې مکمله دسطحې څخه بهرواقع ده، لنډ استوانوي دیوالونه په سطحه عمود دي. ددي ګاوسي سطحې یوه برخه په b **۳-۱۵** شکل کې لویه ښودل شوي.په الکترو ستاتیک کې باید دیو مشابه چارج شوي هادي برقي ساحه دهادي په سطحه باندي عمود وي که داسي نه وي نو $\vec{E}$ په سطحه کې چارجونه دوباره توزیع کوي، چې دادالکترو ستاتیک دثبات په خلاف ده. نو $\vec{E}$ دهادي په سطحه عمود دی، او دګاوسي سطحې دبهرنۍ خولی فلکس د$EA$ څخه عبارت دی.او دداخلې خولی لپاره ی فلکس صفردی ځکه چې$\vec{E} = 0$ دی. داستوانې د سطحې په دیوالونو کې هم فلکس صفردی، ځکه د $\vec{E}$ خطونه دسطحې سره موازي دي او کوم اثرنه شي درلودلای. دq چارج چې په ګاوسي سطح کې داخل دی د $\sigma A$ څخه عبارت دی نو مجموعي فلکس:

$$\begin{aligned}\Phi_E &= \oint \vec{E}\cdot d\vec{A}\\ &= \int_{\text{outer cap}} \vec{E}\cdot d\vec{A} + \int_{\text{inner cap}} \vec{E}\cdot d\vec{A} + \int_{\text{side walls}} \vec{E}\cdot d\vec{A}\\ &= EA + 0 + 0 = EA.\end{aligned}$$

اوس دګاوس دقانون په اساس برقي سطحه پیداکولای شو:

$$\epsilon_0\Phi_E = q,$$

دفلکس او چارج دقیمت ګذاري. وروسته لرو $\epsilon_0 EA = \sigma A$ که دانتیجه د**۳-۱۲** معادلې سره مقایسه شي (برقي صفحو ته نږدي ساحه):

$$\epsilon_0 EA = \sigma A$$

$$E = \frac{\sigma}{\epsilon_0}. \qquad (3-18)$$ s

نو هادي ته نږدې برقي ساحه دهغې ساحې دوه چنده ده په کومه کې چې د هادي صفحې یا ورقي وي. څنګه ددي دووحالاتو ترمنځ فرق کولای شو؟یو چارج لرونکي صفحې دجوړولو لپاره دنري پلاستیک په یو خط باندي چارجونه خپرولای شو.چارج په هغو ځایونو نښلي دکوم ځای څخه چې دوي حرکت نه شي کولای، خویو هادي په دې ډول نه شو چارجولای، مونږ دهادي سطحه داسي فرضولای شو چې په دووبرخو ویشلي وي یوه برخه چې برقي ساحه پکې پیدا کوو او یوه بله برخه،که مونږ په ۳-۱۵ شکل کې هادي ته په کافي اندازه نږدې یو، نو دچارج دیوي صفحې په ډول ئې قبلولای شو. چې دبرقي ساحي سره د$E = \frac{\sigma}{2\varepsilon_0}$ په اندازه کمک کوي، که څه هم چې دهادي باقي سطحه هم همدغه اندازه دبرقي ساحي سره کمک کوی او مجموعي برقي ساحه ددواړو سطحو دجمعي څخه عبارت ده یعني $\frac{\sigma}{\varepsilon_0}$ دغه حالت مستقیماًپه یو هادي تختي کې هم لیدل کیږي، فرضاً داتخته د(A) یوه سطحه لري که دq چارج دتختي په هره برخه ی خپورکړو نو داچارج به دتختې په هره برخه خپور کړو نوداچارج به دتختي په دواړو خواوو باندي په خپله خپور شي،




۳-۱۵ شکل:($a$) : یوه وړوکی ګاوسی سطحه دیوه چارج شوي هادي په سطحه ځای په ځای شوی($b$):دګاوسی سطحی یوه برخه لویه ښودل شوی چه د$q = \sigma A$ چارج لری.

مونږ غواړوهره سطحه د $\frac{q}{2}$ چارج اود چارج کثافت $\sigma = \frac{q}{2A}$ پیداکړو، دتختي هره سطحه د چارج د یوی صفحي په ډول فرض کولای شو چې د ۳-۱۲ معادلي له مخي $E = \frac{\sigma}{2\varepsilon_0} = \frac{q}{4A\varepsilon_0}$برقي ساحه رامنځته کوي. د۳-۱۲ شکل مطابق تختي ته نږدي ښي او چپو ساحو کې برقې ساحه مساوي ده او د دوي یوه مجموعي برقي ساحه $E = \frac{q}{4A\varepsilon_0} + \frac{q}{4A\varepsilon_0} = \frac{q}{2A\varepsilon_0} = \frac{\sigma}{\varepsilon_0}$ رامنځته کوي اودتختي په داخلي برخه د(B په نقطو کی ) ساحه په مخالفو جهتونو کې ده او مجموعه یې صفرده، لکه دیوهادي په شان.




۳-۱۲شکل:په یونری هادی سطحه باندی برقی چارجونه،هره سطـــــحه چارج لري $\vec{E}_l$ او$\vec{E}_q$ برقی ساحی په ترتیب د(**A**) او (**C**) په نقطو قوه وارده وي او د (**B**) په نقطه قوه لغوه کوی.

او س یوه بله د q− تخته، دي تختي ته نږدي کوو نو اوس اصلي هادي مستقل نه دي او چارجونه مشابه نه دي خپاره شوي، دمنفی او مثبتو تختو ترمنځ یوه جاذبی قوه عمل کوي، هره سطحه د $\frac{q}{2}$دچارج پرځای د q چارج او $\sigma = \frac{q}{A}$ برقي کثافت لري، دبرقي صفحو په شان هره سطحه د $E = \frac{\sigma}{2\varepsilon_0} = \frac{q}{2A\varepsilon_0}$برقي ساحه رامنځته کوي، ددي دوو تختو په منځ کې یوه مشترکه برقي ساحه رامنځته کیږي چې ددي تختو دساحو مقدار او جهت یو دبل سره مساوي دي، نو مجموعي برقي ساحه ددي لوحو ترمنځ له $E = \frac{\sigma}{\varepsilon_0} = \frac{q}{A\varepsilon_0}$ څخه عبارت ده، دادیوه موازي لوحو لرونکي خازن یا($condensor$) برقي ساحه ده چې په ۳-۱۷ شکل کې ښودل شوي.




**۳-۱۷شکل:** دوه نرۍ هادي تختې چه مساوي مختلف العلامه چارج لري، $\vec{E}_+$ دمثبتو چارجونو په واسطه رامنځته شوي ساحه او $\vec{E}_-$ دمنفي تختې برقي ساحه ده.

**۳-۴ مـثال:** دفوتو کاپي دماشین دیو چارج شوي قطعي برقي ساحه $2.3\times10^5\ \frac{N}{C}$ ده. که داقطۍ هادي وي نود چارج کثافت په دي قطعۍ کې پیدا کړي؟

**حــل:** له ۳-۱۸ معادلې څخه لرو:

$$\sigma=\epsilon_0E=(8.85\times10^{-12}\ C^2/N\cdot m^2)(2.3\times10^5\ N/C)$$
$$=2.0\times10^{-6}\ C/m^2=2.0\ \mu C/m^2.$$

**۳-۵مثـــال:** دځمکې په سطحه باندي برقي ساحه $150\ \frac{N}{C}$ ده. چې دځمکې دمرکز خواته عمل کوي، دځمکې دسطحې مجموعي چارج څومره دي، که ځمکه دیو هادي په ډول فرض شي؟

**حـــل:** دقوي خطونه په منفي چارجونو ختمیږي، که برقي ساحه دځمکې دمرکز په طرف عمل وکړي نو دسطحې دچارج متوسط کثافت $\sigma$ باید منفي وي. له ۳-۱۸ معادلې څخه لرو چې:

$$\sigma=\epsilon_0E=(8.85\times10^{-12}\ C^2/N\cdot m^2)(-150\ N/C)$$
$$=-1.33\times10^{-9}\ C/m^2.$$

دځمکې مجموعي چارج دچارج دکثافت او د $4\pi R^2$ دضرب دحاصل څخه عبارت دي:

$$
\begin{aligned}
q &= \sigma 4\pi R^2 \\
&= (-1.33 \times 10^{-9}\ \mathrm{C/m^2})(4\pi)(6.37 \times 10^6\ \mathrm{m})^2 \\
&= -6.8 \times 10^5\ \mathrm{C} = -680\ \mathrm{kC}.
\end{aligned}
$$

**۳-۲ مـثال:** يواوږد ناقصه استوانوي هادي چې داخلې شعاع ئې a او خارجي شعاع يې $b$ ده ديو متحدالمحوره استوانوي هادي دقشر په واسطه چې داخلې شعاع يې c او خارجې شعاع d ده احاطه شوي، د۳-۱۸ شکل له مخې داخلي هادي د2q مثبت چارج لري او خارجي هادي $-3q$ چارج لري،دهغه چارج مقدار پيداکړئ چې ددواړوهادي استوانو په سطحو ځای نيسي؟

**حـــــل:** دګاوسي قانون په استوانو ي او کروي اجسامو په عين ډول نتيجه ورکوي. په معين ډول دخارجي هادي له مخې د $r < c$ ساحه کې برقي ساحه صفرده، لکه څنګه مو چې دکروي قشر لپاره ثبوت کړه، دخارجي هادي چارج دداخلې هادي موقيعت ته هيڅ برقي ساحه نه توليدوي، نوداخلي استوانه ددي بحث لپاره يو مستقل يا(Isolated) هادي دي.



۳-۱۸شکل:دوه هم محوره استوانوي هادي قشرونه.

که مونږ داخلي هادي مستقل فرض کړو نو مونږ پوهيږو چې چارج په مکمل ډول ددي هادي په خارجي سطحه کې دي نود a په سطحه چارج نشته اود2q+ د b په سطحه کې دي. که مونږ دخارجي استواني په داخل کې $c < r < d$ يو متحدالمحوره ګاوسي سطحه رسم کړو دګاوس دقانون له مخې هم ويلاي شو چې دګاوس په سطحه کې فلکس صفر دي ځکه د هادي په هره داخلي نقطه کې $\vec{E} = 0$ دي.

او په آخري هموارو سطحو کي هم فلکس صفردي. ځکه د $b < r < c$ لپاره باید ساحه شعاعي وي او دهموارو اخري سطحو سره باید موازي وي، داپه دي معنی ده چې دګاوس دقانون له مخې باید دګاوسي سطحې په داخل کې مجموعي چارج صفر وي، مونږ پوهیږو چې په داخلي هادي کې 2q+ چارج شته ددي لپاره چې صفرشي باید د c په سطحه کې $2q-$ چارج وي، ځرنګه چې په خارجي استوانه کي مجموعي چارج 3q− دي، نود q− چارج دd په سطحه باید ځرګند شي.باید وویل شي چې خارجې سطحه د داخلي هادي دچارج تراثرلاندي راغلي او دیو مستقل(Isolated) هادي په ډول نه ده، نو په دي هادي کې ټول چارج دهادي خارجې سطحې ته نه ځي.

## ۳-۷ دګاوس او کولمب دقوانینو تجربوي امتحانول(ازموینه):

په ۳-۶ عنوان کې مونږ وویل چې چارج دهادي په خارجي سطحه کې ځای نیسي هیڅ چارج به دهادي په حجم کې نه وي او نه به دهادي دداخلي خالیګاه په جدار کي چارج وي، دغه نتیجه مستقیماً دګاوس له قانون څخه په لاس راغلي نو ددي خبري ازموینه په حقیقت کې دګاوس دقانون ازموینه ده، که چارج دهادي په داخل کې وي یاد هادي دداخلي خالیګاه په جدارکې وي دګاوس قانون ناکامیږي او ځرنګه چې دکولمب قانون مستقیماً دګاوس دقانون په تعقیب دي داهم ناکامیږي، په خاص ډول دجاذبې قانون به دقیقاً دمربع دمعکوس قانون نه وي، او د$r$ توان به 2 څخه دډیرکوچني عدد $\sigma$ په اندازه فرق وکړي، نو شعاعي برقي ساحه:

$$E_r = \frac{1}{4\pi\varepsilon_0}.\frac{q}{r^{2+\delta}} \qquad (3-19)$$

چې دګاوس او کولمب په قوانینو کې $\sigma$ دقیقاًصفرده.

ددوه چارجونو ترمنځ دقوي مستقیمه اندازه په (اول) څپرکې کی تشریح شوی،نو اوس مونږ ضرورت نه لرو ترڅو امتحان ئی کړو چې $\sigma = 0$ ده.

په حقیقت کې دا تجربي دهغه تګلاري په تعقیب دي چې په ۳-۱۹شکل کې تشریح شوی یوه چارج شوي فلزي ګلوله چې دیو عایق تار په واسطه ترلي شوي هغه فلزي قطی ته

دننه شوي چې په يوه عايقه سطحه يې تکيه کړي، کله چې داګلوله دقطۍ له دننه سره په تماس کې شي دواړه جسمونه ديوه هادي په ډول کار کوي، نوکه دګاوس قانون صحيح وي ټول چارجونه بايد ددي مرکب هادي خارج ته لاړشي. لکه په $c$۳-۱۹ شکل کې کله چې ګلوله خارج کړو بايد هيڅ چارج ونه لري او نورعايق اجسام بايد دقطۍ له داخل څخه چارج وانخلي اويوازي دقطۍ دخارجي سطحې څخه يې واخلي.




**۳-۱۹ شکل:** دبنجامين فرنکلين په واسطه يو ساختمان ښيۍ چې چارج دهادي خارجي سطحې ته ځي (**a**) چارج لرونکي ګلوله بې چارجه قطۍ ته داخل شوي(**b**)ګلوله د قطۍ په منځ کې ده او سرپوښ ايښودل شوی دګلولي او قطۍ ترمنځ دبرقي ساحي خطونه ښودل شوي.(**c**) کله چې ګلوله له قطۍ سره په تماس کې شې چارج دقطۍ بهرته ځي ګلوله دچارجيدو وروسته هيڅ چارج نه لري نو داثبوتوو چې چارج ټول بهرته خپريږي.

بنجامين فرنکلن(Benjamin Franklin) شايد لمړی سړي وي چې پوه شو چې ديوقطۍ په داخل کې هيڅ چارج نه وي. په 1755 کال کې يې خپل يو متفکرته وليکل:

(مايوه $568.26\ cm^3$ وړوکې نقره يي قطۍ ته چارج ورکړبيامي ديوکارک ګلوله ورداخله کړه چې ديو ابريشيمي تار په واسطه تړل شوي وه. کارک په داخل کې جذب نه شو لکه څنګه چې په بهرنۍ سطحه کې جذب شو، کله چې مې بيرون راويست داسي نه وه چې چارج شوي وی لکه څنګه چې بيرون چارج شوي وه، حقيقت څه دی دليل يې پيداکړه زه خونه پوهيږم)

10 کاله وروسته فرانکلن خپله داتجربه (1804 – 1733)Joscph priestiey ته وړاندي کړه په 1767 کال کې (دکولمب دتجروبو څخه 20 کاله وروسته ) پرستلي دفرانکلن کړنه ولیده او پوه شو چې دقوي د معکوس مربع قانون له دي څخه تعقیب شوي.

پرستلي دجاذبي سره دمشابهت له مخي وویل:داحقیقت چې دفرانکلن دکارک ګلوله دیوی ژوری قطی په داخل کې چارج نه شوه دهغه حقیقت سره ورته ده کومه چې په(5 – 14) برخه کې ذکرشوه ، هغه چې ویل کیدل چې دکروي قشر په داخل کې هیڅ ډول جاذبه تاثیرنه کوي که جاذبه دمربع معکوس قانون مني نو برقي ساحه یې هم باید ومني دفرانکلن تجربي ته په کتني پرستلي دادلیل وړاندي کړاموڼ.شاید فکر ونه کړو چې دبرق جاذبه قوه اوقوانین یې دځمکي دجاذبي قوي سره مشابه اودسطحي له مربع سره اړه لري، که ځمکه دیو قشر په شکل کې وي نو په اسانی سره ښودلای شوچې آیا هغه جسم چې دځمکې په داخل کې دی له یو خوانه به بل خواته ډیرجذب نشي؟

جاذبه قوه په برقی قوی باندی دپوهیدو لپاره کوم ډول کمک کولای شی.میکایل فرادي (Michael Faraday) ددي لپاره چې وښی چارج دهادي په خارجي سطحه کې واقع کیږي مختلفي تجربي وکړي.نوموړي یو لوي بکس چې دفلز په واسطه پوښل شوي وو جوړ کړ، دابکس ئې په یو عایق باندي کیښوداودیوقوي الکتروستاتیکي جنراتور په واسطه یې چارج کړ اوویي ویل ((مادیومکعب په داخل کي بلي شمعي، الکترو متر اونوربرقي ازمویني استعمال کړي خو کوم تاثیرپري ونه لیدل شو.په داسي حال کې چې ددي مکعب یا بکس په خارجي سطحه کې چې قوي چارج شوي ؤ قوي جرقي لیدل کیدي))

دکولمب قانون په فزیک کې حیاتي اهمیت لري، او که په ۳-۱۹ معادله کې $\sigma$ صفرنه وي نودالکترو مقناطیس او کوانتم فزیک په اړه زیاتي نظریې رامینځته کیږي، ددي لپاره چې د$\sigma$ اندازه معلومه شي باید دتجربي په واسطه وښودل شي چې په یو هادي کې ځای په ځای شوي چارج دهادي په بهرنی سطحه کې ځای نیسي، اوسنیوتجربو ښودلي چې د (۳-۱۹) معادله کې$\sigma$ صفرنه ده خوډیره کوچنی ده، (1 – 3) جدول ددي تجروبونتایج

ښيي، ۳-۲۰ شکل دیو دستګاښودونکي دی چې(Plimpton) او (Lawton) په واسطه د $\sigma$ داندازه کولو لپاره جوړه کړي، دادستګاه ددوه برقي قشرونو A او B چې متحدالمرکزدي جوړ شوي،داخلي سطحه یې په (Diameter) کې $1.5\ m$ ده، داخلي قشریو حساس الکترو مترلري ترڅو وښيي که دA اوB سطحو ترمينځ چارج وي.که دادوه قشرونه برقي ارتباط ولري، نوباید چارج مکمل د A په سطحه کې قرار ونیسي ترڅو په دي حالت کې دګاوس اوکولمب قوانین صحیح وي، کله چې د S سو یچ له چپ طرف سره وصل شي نو د N دبطري په واسطه به په دي کره کې یو چارج پیداشي، کوم چارج چې د A څخه B ته ځي نو په الکترومترکي ښودل کیږي، او دیو ي چرقي په ډول به د T دتلسکوب، M هنداري او W کړکي په واسطه ولیدل شي، که څه هم د S سویچ په متناوب ډول دچپ څخه ښي طرف ته وصل شی، او قشر دځمکي یا بطرۍ سره دوصلیدو په وخت کې هیڅ اثرونه ښود. دالکترو مترپه حساسیت باندي له پوهیدو سره (Plimton) او (Lawtin) د $\sigma$ قیمت په ۳-۹ معادله کې داسي حساب کړ چې له صفر څخه د $2.10^{-9}$ په اندازه تغیرکوي چې داډیر کوچني عدد دي، ددي حساسي اودقيقي دستګا په واسطه تراوسه د $\sigma$ قیمت ته ډیرنږدي حدونه ټاکل شو.




۳-۲۰ شکل:د ۳-۱۹ شکل دد ستګاه یو مدرن ډول ښودل شوی، کله چې د $S$ سویچ چپ طرف ته وصل شی چارج د $A$ په سطح کی ځای نیسي ، او د $E$ حساس الکترومتر ددي لپاره

استعمال شوی که چیري د $A$ څخه $B$ ته چارج لاړ شي او وی نبی، پدی ځای کی باید ټول چارج د $A$ په کره یعنی خارجی برخه کی پاتی شی.

۳-۱جدول: دکولمب دمعکوس مربع دقانون ازموین:

TABLE 27-1 Tests of Coulomb's Inverse Square Law

| Experimenters | Date | δ (Eq. 27-19) |
|---|---|---|
| Franklin | 1755 | |
| Priestley | 1767 | . . . according to the squares . . . |
| Robison | 1769 | $< 0.06$ |
| Cavendish | 1773 | $< 0.02$ |
| Coulomb | 1785 | a few percent at most |
| Maxwell | 1873 | $< 5 \times 10^{-5}$ |
| Plimpton and Lawton | 1936 | $< 2 \times 10^{-9}$ |
| Bartlett, Goldhagen, and Phillips | 1970 | $< 1.3 \times 10^{-13}$ |
| Williams, Faller, and Hill | 1971 | $< 1.0 \times 10^{-16}$ |

## څوځوابه انتخابی پوښــتنې:

۳-۱: دګاوس قانون به دڅه په اړه وي؟

۳-۲: دیو وکتوري ساحې فلکس.

۱: دفضاپه یوه برخه کې سرعت لرونکي ساحه موجوده ده، یوه نږدې د $S$ سطح چې په $s_1, s_2, s_3, s_4$ مقطعو تقسیم شوي د $s_1$ اویانورو $s_n$ سطحو خارج کی یوه منبع موجوده ده خو یوه منبع هم په داخل کې نه ده.

الف) د $S_1$ په سطحه د $\Phi_1$ فلکس لپاره څه نتیجه کیږي:

$\Phi_1 = 0$ (**b** $\quad \Phi_1 > 0$ (**a**

c ) $\Phi_1 < 0$     $d$ ) د $\Phi_1$ په اړه نورو اضافي معلوماتو پرته څه نشو ویلي.

ب) په دي سطحو باندي دفلکس په اړه کومه جمله صحیح ده؟

$a$) کم ترکمه یو $\Phi_n$ باید منفي وي.     $b$) کم ترکمه یو $\Phi_n$ باید مثبت وي.

$c$) کم ترکمه یو $\Phi_n$ باید صفروي.     $d$) که $A$ صحیح وي نو $B$ هم صحیح دی.

E یا $A$ یا $B$ صحیح ده دواړه نشي صحیح کیدای.

ج) اندازه ګیری ښودلي چې $\Phi_1 + \Phi > 0$ څخه دی ولي دمعلوماتو له مخي ویلي شو:

$a$) $\Phi_3 = \Phi_4$     $b$) $\Phi_3 = -\Phi_4$

$c$) $\Phi_3 > \Phi_4$     $d$) $\Phi_3 < -\Phi_4$

۳-۳ دبرقي ساحي فلکس:

۲: د $A$ دیوی صیقلي سطح فلکس چې د $\vec{E}$ برقي ساحي لرونکي ده هغه وخت اعظمي ده چې:

$a$) سطحه له $\vec{E}$ سره موازي وی.     $b$) سطح په $\vec{E}$ عمود وي.

$c$) سطح دمستطیل په شان شکل ولري.     $d$)سطح دمربع په شان شکل ولري.

۳: یوه تړلي کروي سطح د (a) له شعاع سره د $\vec{E}$ په برقي ساحه کې واقع ده.ددي سطح له پاسه برقي فلکس $\Phi_E$ څومره دی؟

$a$) $\Phi_E = 4\pi a^2 E$     $b$) $\Phi_E = \pi a^2 E$

$c$) $\Phi_E = 0$     $d$) $\Phi_E$ له نورو معلوماتو پرته نشی حسابیدلای

۴-۳ دګاوس قانون:

۴: دوه متحدالمرکزه کري فرض کړئ، چې مرکزيې مبداء ده او $S_1$ د $a$ شعاع او $S_2$ د 2a شعاع لرونکي دي. په مبداء کې د+q يو چارج شته او نورچارج نشته تاسو د $s_1$ دسطحې فلکس د $S_2$ دسطحي دفلکس $\Phi_2$ سره مقايسه کړی؟

a) : $\Phi_1 = 4\Phi_2$      b) : $\Phi_1 = 2\Phi_2$

c) : $\Phi_1 = \Phi_2$      d) : $\Phi_1 = \frac{\Phi_2}{2}$

۵: د S يوه خيالي سطحه چې د R شعاع لرونکي او مرکز يې په مبداء کې دی، يو مثبت چارج ئی اصلاً په مبداء کې دی او دسطحې فلکس $\Phi_E$ دی دامثبت چارج ورو ورو له مبداء څخه $\frac{R}{2}$ نقطي ته ځي. په دي حالت کې د S په سطح فلکس؟

a) $4\boldsymbol{\Phi_E}$ ته زياتيږي.      b) $\boldsymbol{\Phi_E}$ ته زياتيږي.

c) په خپل حالت پاتی کيږي      d) $\frac{\boldsymbol{\Phi_E}}{\mathbf{2}}$ ته کميږي.

E) $\frac{\boldsymbol{\Phi_E}}{\mathbf{4}}$ ته کميږي.

۶: ترکومو شرايطو لاندي ديوي تړلي سطحې فلکس $\mathbf{\Phi_E}$ پيدا کولای شو؟

a) چې د $\vec{E}$ مقدار د سطحې په هره برخه کې معلوم وي.

b) د سطحې په داخل کې مجموعي چارج معلوم وي.

c) د سطحې په خارجي سطحه کې مجموعي چارج معلوم وي.

d) يو ازي د هري داخلي نقطي چارج معلوم وي.

۷: د S يوه خيالي سطحه د R په شعاع چه مرکز ئې په مبداء کې دی او د +q چارج هم په مبداء کې دی، دسطحې فلکس $\mathbf{\Phi_E}$ دی، د X محور په امتداد دري نورچارجونه د $-3q$ په $X = -\frac{R}{2}$، $+5q$ په $X = \frac{R}{2}$ او $+4q$ په $X = \frac{2R}{2}$ نقاطو کې زيات شوي، د $s$سطحی فلکس حساب کړی؟

a) $2\,\mathbf{\Phi_E}$      b) $3\,\mathbf{\Phi_E}$

$c$) $6\,\Phi_E$ — $d$) $7\,\Phi_E$

$e$) $\Phi_E$ نشی مشخص کیدلای ځکه پوښتنه نوره ثابته نه ده.

۳-۵ دګاوس دقانون تطبیقات:

۸ : د X په محوریو ډایپول پروت دی چې د q+ چارج په x = +d/2 او منفی چارج په $-\frac{d}{2}$ نقطو کې دي، د $y_2$ مستوي چې دچارجونو په مینځ کې ده فلکس به یې څومره وی:

a) صفر — $b$) د **d** مربوط ده.

$c$) د **q** مربوط ده. — $d$) د **q** او **d** مربوط ده.

۹: په **8** پوښتنه کی سطحه چارجونو ته نوره هم نږدی شو ی د سطحی دحرکت په وخت کی ددی سطحي فلکس $\Phi_E$ دی:

$a$) زیاتیږي — $b$) کمیږي

$c$) په خپل حال پاته کیږي.

۱۰: په اتمه پوښتنه کي سطحی ته دوران ورکړل شوی چه د $x$ سره موازی نه دی دسطحی دحرکت په وخت کی فلکس:

$a$) زیاتیږي — $b$) کمیږي

$c$) په خپل حالت پاتی کیږي.

۱۱: پهلاندي کومو حالاتو کې دګاوس قانون ګټور دی؟

$a$) دسلندري یامحدودي مشابه چارج شوي سطحې په مختلفو نقطو کې برقي ساحه پیداکول.

$b$) دیو مشابه چارج شوي استواني سطحې په اخري سطحو کې برقي فلکس پیداکول.

*c* ) دیو مشابه چارج شوي مکعب یابکس په مختلفو نقطو کې برقي ساحه پیدا کول.

*d* ) دیو مشابه چارج شوي مکعب په یوه خوا کې دبرقي فلکس پیدا کول.

۳-۲ دگاوس قانون او هادي اجسام:

۱۲: یو ناقصه هادي گلوله چې د $+q$ چارج کی په مرکز کې ایښودل شوي گلوله کوم شبکوي چارج نه لري:

*a*): دگلولي په داخلې سطحه کې چارج :

الف) $+2q$ ب) $+q$

ج) $-q$ د) 0

*b*): دگلولي په خارجی سطحه کې چارج:

الف) $+2q$ ب) $+q$

ج) $-q$ د) 0

۱۳: فرض کړی چې د 12 پوښتنی په گلوله باندی د $+q$ یو شبکوی چارج ځای په ځای شوی ، نقطوی چارج په خپل ځای پاتی دی:

$a$): دگلولي په داخلې سطحه کې چارج:

الف) $+2q$ دی ب) $+q$ دي

ج) $-q$ دي د) صفردی.

$b$): دگلولي په خارجی سطحه کې چارج:

الف) $+2q$ دی ب) $+q$ دي

ج) $-q$ دي د) صفردی.

۱۴: په ۱۳ پوښتنه کې مرکزي چارج داخلي سطحې ته نږدې لاړ خو په تماس کې کیږي نه:

*a* ) د ګلوله په داخلي سطحه کې چارج:

الف ) زیاتیږي ب ) کمیږي

ج ) په خپل حالت پاتي کیږي. د ) داپه دې پورې مربوط ده چې ګلوله داخلې سطحې ته څومره نږدې ده

*b* ) دګلولی په خارجی سطحی کی مجموعی چارج:

الف ) زیاتیږي ب ) کمیږی ،

ج ) په خپل حالت پاتي کیږي د )دا په دی پوری مربوط دی چی ګلوله داخلی سطحی ته څومره نږدی ده

۳-۷ دګاوس اوکولمب دقوانیو تجربوي ازموینه:

پوښـــتنې:

۱) دکومی جملی داساس له مخې دبرقی قوي خطونه په چارج شروع کیږي اوپه چارج ختمیږي؟

۲) مثبت چارج ته (sources) او منفي چارجو ته (sinks) ويل کيږي او دا چې تاسو د دي اصطلاح په اړه څه فکر کوئ آيا هلته دجاذبې ساحې (source) او (sink) يا موجود دي؟

۳) $\Phi_E$ په واسطه ، دځمکې د جاذبې ساحې فلکس $\Phi_g$ څنګه تعريفوېږي، دځمکې دجاذبې دساحې فلکس ديو اطاق په څنډوکې څومره دی، دا مهمه نه ده چې داخل کې څومره دی د ځمکې ديوې کروی سطحې په احاطو کې اوپه يوې کروي سطحې کې چې دسپوږمۍ دمدارپه اندازه وي پيدا کړئ؟

۴) يوه ګاوسي سطحه فرضوؤ چې دچارج ديوې برخې توزيع ئې احاطه کړي (۳-۲۱ شکل) کې ښوول شوی (**a**) کوم چارجونه دP په نقطه کې په برقي ساحه کې برخه اخلي؟ (**b**) آيا فلکس يوازې د $q_1$ او $q_2$ چارجونو دبرقي ساحې له مخې حسابيدلای شي؟ آيا دابه دمجموعې ساحې ترفلکس کم وی، يازيات وي او که به مساوي وي؟




۳-۲۱شکل:۴ پوښتنه.

۵) فرض کړئ چې دبرقې ساحې خطونه په بعضې ساحو کې همجهته وي، خو په امتداد کې يې مقدار کميږي، په دي ساحو کې دچارج په اړه څه فکر کوئ، دقوي خطونه يې رسم کړئ؟

۶) آيادګاوس دقانون له مخې داصحيح ده چې ديوي تړلې سطحې دخارج چارجونو دقوي دخطونو تعداد دداخلې مثبت چارج سره مساوي دي؟

۷) دیوي کروي ګاوسي سطحې په مرکز کې یو نقطوي چارج ایښودل شوي آیا $\Phi_E$ هغه وخت تغیرکوي.(**a**) که سطحه په عین حجم لرونکي مکعب بدله شي.(**b**) که کره د دي حجم د $\frac{1}{10}$ حجم لرونکي مکعب سره بدله شي. (**c**) که چارج دکرې په داخل کې دمرکز څخه لرې شي.(**d**)که چارج دکرې څخه بیرون کیښودل شي (**e**) که دوهم چارج دکرې خارجې سطحي سره نږدي کیښودل شي (**f**)که دګاوسي سطحې په داخل کې بل چارج کیښودل شي.

۸) دګاوس په $q =_{\varepsilon 0} \oint \vec{E}.d\vec{A}$ قانون کې: ایا$\vec{E}$ باید حتماً د $q$ دچارج په واسطه رامنځته شوي وي؟

۹) یوه سطحه چې یو برقی ډایپول یې احاطه کړی ، ددي سطحی د $\Phi_E$ په اړه څه وایاست ؟

۱۰) فرض کړئ چی که دیوي ګاوسي سطحې په داخل کې کوم ابتدائي چارج نه وي،آیا دګوس دقانون سره برابره ده چی دسطحې دټولو نقطو دپاسه $\vec{E}$ صفر دی، آیا ددي جملې عکس صدق کوي؟

که $\vec{E}$ دسطحې دپاسه په هر ځای کې صفر وي، نوآیا د ګاوس دقانون سره برابره ده چی هلته د سطحی په داخل کې اصلی چارج وجود نه لري؟

۱۱) آیا دګاوس قانون دهغه دري مساويي چارجونود ساحی محاسبه کولو لپاره ګټور دی چې دیو متساوي الاضلاع مثلث په راسونو کې واقع وي، وښایاست ولي اوولي نه؟

۱۲) دQ یو مجموعې چارج په یونواخت ډول په یو مکعب کی چی دضلعو اوږدوالی ئی a دی خپور شوي آیا دp په نقطه کې برقی ساحه چې دمکعب د c دمرکزڅخه د r فاصله لري، د$E = \frac{q}{4\pi\varepsilon_0 r^2}$ په واسطه رامنځته شوي؟ (۳-۲۲ شکل) که نه، نو آیا $\vec{E}$ دیوهم مرکزمکعبی ګاوسي سطحې په جوړولو حساب کیدلای شي، که نه، نو تاسو د $\vec{E}$ په اړه څه ووایاست داسي چې $r \ll a$ وي.




۳-۲۲شکل:۱۲ پوښتنه.

۱۳) ایا $\vec{E}$ باید حتماً دیو چارج شوي ربړی سطحی په داخل کې منفی وي که داسطحې لاندې شکل ولري (الف) کروي وی (ب) که بالون دساسیج شکل ولري،فرض کړی دهرشکل لپاره چارج په یونواخت ډول دسطحی دپاسه توزیع شوی وی.دچارج موقیعت څنګه دی؟که چیرته دبالون یوه نازکه طبقه دخپلی هادی نقطی یوه نازکه نقطه دسطحی څخه بیرون ولری که دهر شکل دپاسه د رنګ یو نازکه طبقه رامنځته شي څه بدلون به راشي؟

۱۴) دیو کروي رابري بالون په سطحه یو چارج په متشابه ډول خپورشوي که بالون ډک شي نو $\vec{E}$ ددي نقطو لپاره څه ډول تغیر کوي. (الف) دبالون په داخل کې (ب) دبالون په سطحه(ج) دبالون څخه بهر؟

۱۵) په۳-۴ برخه کې مونږ ولیدل چې دکولمب قانون دګاوس له قانون څخه پیداکیدالی شي ایاداپه دي معنی ده چې دګاوس قانون دکولمب له قانون څخه پیداکیدلای شي؟

۱۶) آیا دګاوس قانون هغه وخت رامنځته کیدای شي چې دکولمب په قانون کې توان دقیقا (2) نه وي؟

۱۷) یو لویه عایق شوي ناقص هادي یو مثبت چارج لري یوه ګلوله چې منفی او مساوي چارج لري دهادي داخل ته ننباسو ، ترڅو دداخلې سطحې سره په تماس کې

شي، اوبیاراراوباسو نو: (الف) په ګلوله کې به چارج څومره وی (ب) په هادي کې چاربه څومره وي؟

۱۸) آیا مونږ د ۳-۲ برخې ددلیل څخه ویلای شو چې دیو کور وایرنګ کې الکترونونه دهادي په خارجې برخه کې دي؟ که نه نو ولې؟

۱۹) په ۳-۲ برخه کې مونږ فرض کړل چې دیو جدا هادي په هره داخلې نقطه کې $\vec{E}$ صفر دی، څرنګه چې په داخلې نقطو کې پراخې برقي ساحي دي کومي چې الکترون یاهستي ته نږدې دي، ایاد ۳-۴ برخې ثبوت بی اعتباره کوی؟ تشریح یې کړی؟

۲۰) آیا دګاوس قانون چې په ۳-۲ برخې کې تطبیق شو، غواړي چې ټول هدایتي الکترونونه دهادي په سطحه کې ځای نیسي؟

۲۱) دیو فلزي ناقصي کري په مرکز کې یو مثبت $q$ چارج ایښودل شوي په دي سطحو کیکې کوم یو چارج ښکاره کیږي؟(الف) داخلي سطحه کې (ب) دکري په خارجې سطحه(ج) که کري ته یو بی چارج فلز نږدې کړي ایاستاسو د (الف) یا (ب) جواب به بدل کړي؟ ایادابه دچارج دتوضیح لار بدله کړی؟

۲۲) که د$a$ شعاع لرونکي نازکه فلزي کروي هادي په سطح د$q-$ چارج توضیع شوي.په داخل کې به کومه برقي ساحه نه وي. اوس که د$q+$ یو چارج دکري په مرکزکې کیښودل شي نو خارجي ساحه به نه وي داچارج به د$a$ $d <$ په ساحه کې بی ځاي شي خوداسیستم ته ډایپول مومنټ ورکوي او خارجي برقي ساحه رامنځته کوي. په دي خارجې سطحه کې انرژي څنګه حسابوئ؟

۲۳) دیو کوچني هادي جسم څخه څنګه اضافي چارجونه بیلوئ؟

۲۴) ولې په۳-۷شکل کې کروي مشابهت مونږ د $\vec{E}$ دمحاسبې لپاره یوازي په شعاعي عنصر پوري محدودکړي که نورعناصرلکه دځمکې دسطحې دعرضی اوطولي خطونو مقدار، فرض شي کروي مشابهت غواړي چې داله هري زاوي یو شان

ښکاري آیا تاسو داسې دساحې خطونه پیداکولای شی. چې ددې معیارتابعداري وکړي؟

۲۵ ) وښایاست چې ولې د۳-۸شکل مشابهت مونږ یوازې دایروي یا شعاعي عناصرو ته محدوده وي؟ په یادولرئ چې په دې حالت کې باید ساحه په هره نقطه کې یو شان ونه ښودل شي، خوکه شکل ته دوران ورکړل شي باید یو شان ښکاره شي.

۲۶ ) دیو نامحدوده هادي مجموعي چارج نا محدود دی، نوولي $\vec{E}$ محدودنه دی؟ دې نه علاوه که دکولمب په قانون کې $q$ نامحدودوي نو E هم نامحدود ده.

۲۷ ) وښایاست چې په ۳-۹شکل کې مشابهت مونږ یوازې هغه عناصرو پورې محدودوي چې دصفحې څخه لرې هدایت شوي، ولې $\vec{E}$ صفحې ته کوم موازي عنصر نشي درلودلای؟ په یادولرئ چې دصفحې په هر جهت کې په هره نقطه کې ساحه باید یوشان ښکاره نشي خو باید یو شان ښکاره شي که صفحه دهغه خط په اندازه دوران وکړي چې په سطحه عمود وي.

۲۸ ) دچارج دنامحدودی صفحې ساحه متجانسه ده، په هره نقطه کې یو شان ده اودامهمه نه ده چې څومره دانقطه لرې ده، داڅنګه کیدای شي چې دکولمب دمربع معکوس قانون طبیعت ووسي؟

۲۹ ) لکه څنګه چې پوهیږئ چې دیوي کري $\vec{E}$ باید کم شي څکه لږ چارج دهغې کري په داخل کې وي چې ددې نقطې په اطراف رسم شوی وي. له بلې خوا $\vec{E}$ باید زیات شي څکه تاسو مرکز ته نږدې یاست کوم اثرزیات دی اوولې؟

۳۰ ) یو مشابه چارج شوي سطحه ورکړل شوي ( دچارج مشابه دایروي کثافت نه دی ) آیا $\vec{E}$ په سطحه کې اعظمي دی، مختلف امکانات وښایاست؟

۳۱ ) ایا ۳-۱۵معادله د $a$ ۳-۱۱ شکل لپاره دتطبیق وړ ده؟ که :(a) په جسم کې یو متحدالمرکز کروي خالیګاه وي. (b)دخالیګاه په مرکزکې د Q یو مثبت چارج وی.

(c) د Q چارج دخالیگاه په داخل کې دی خونه په مرکز کې.

**تمـــــرین:**

**۳-۱** دګاوس قانون دڅه په اړه دی؟

**۳-۲** دویکتوري ساحه فلکس:

**۳-۳** دبرقي ساحې فلکس:

**۱ـ** په **۳-۲۳** شکل کې $3.2mm$دضلعې لرونکې مربع سطحه درکړل شوي چې د$E = 1800\frac{N}{C}$ برقي ساحه کې ایښودل شوي، دساحې خطونه دخارجې نقطو سره 65 درجه زاویه جوړوي ددي سطحې فلکس حساب کړی؟




**۳-۲۳ شکل:۱ تمرین.**

**۲ـ** یو مکعب چې خط الراسونه یې $1.4m$ دي د **۳-۲۴** شکل په شان دوران ورکړل شوي چې په مشابه برقې ساحه کې واقع دی په هغه صورت کې فلکس پیدا کړی، چې برقي ساحه:

(a) $\left(6\frac{N}{C}\right)i$ وي (b) $\left(-2\frac{N}{C}\right)i$

(c) $\left(-3\frac{N}{C}\right)i$ (d) $\left(+4\frac{N}{C}\right)i$ ددي هري ساحې په واسطه دمکعب مجموعې فلکس پیدا کړی؟




۳-۲۴شکل:۲تمرین.

**۳ـ** $\Phi_E$ په دي حالتوکې حساب کړی. (الف) همواره قاعده (ب) د$R$ شعاع لرونکې نیمایې کره په پرې شوي مخ، $\vec{E}$ دبرقي ساحې خطونو نیمایې کرې دمحورسره موازي دي. د $\vec{E}$ خطونه دهمواره قاعدې څخه ننوزي.

**۳-۴** دګاوس قانون:

**۴ـ** د**۳-۲۵** شکل په شان دیو غیرچارج شوي عایق شوي هادي باندي چارج دیو مثبت چارج شوي میلې په واسطه بېل شوي، د(5) ګاوسي سطحو ترمینځ فلکس حساب کړی. فرض کړی چې تحریک شوي منفی چارج د$q$ مثبت چارج سره مساوي دی چې په میله کې دی.




۳-**۲۵**شکل:۴تمرین.

**۵ـ** 1.84 $\mu C$ نقطوي چارج دیوي مکعبې سطحې په داخل کې چې دضلعې اوږدوالې ی 55$cm$ دي ایښودل شوي په سطحه کې $\Phi_E$حساب کړی؟

۶ـ یو مکعب چې په مخونو کې د$(6-1)N$ نقطو پوري دي دشبکوي چارج فلکس ی $10^3\ Nm^2/_C$ دي چې دنقطو دشمير سره مساوي دی دN طاق لپاره فلکس داخلې اودN جفت لپاره خارجې دي. ددي مکعب په داخل کې شبکوي چارج څومره دی؟

۷ـ د +q شبکوي چارج دیو مربع شکله سطحې څخه د $\frac{d}{2}$ په اندازه،دمرکزڅخه فاصله لري، که سطحه د d له ضلعې لرونکې مکعب یوه سطحه یامخ فرض شې په دي سطحه برقي فلکس پیدا کړی؟




۳-۲۲شکل:۷تمرین.

۸ـ دباسکتبال په شان جال د$\vec{E}$ په برقي ساحه کې ایښودل شوي، د a شعاع لرونکې دایره دبرقي ساحې سره عمود واقع شوي دجال په خارجې نقطو کې برقي فلکس پیدا کړی؟




۳-۲۷شکل:۸تمرین.

۹ـ تجربو ښودلې چې دځمکې په یوه معینه نقطه کې د برقي ساحې جهت دمرکز په طرف دی دبحر دسطحې څخه په $1300\ m$ کې ساحه $58\ \frac{N}{C}$ ده او په $200\ m$

کې $110\ \frac{N}{C}$ ده، د هغه مکعب کې د شبکوي چارج مقدار پیدا کړئ چې ضلعې $100\ m$ او په 200او 300 مترو ارتفاع په مینځ کې واقع وي د ځمکه له انحنا څخه صرف نظر شوی.

۱۰ـ ددوهم سوال په مکعب کې (۳-۱۴ شکل کې) شبکوي فلکس هغه وخت پیداکړئ چې : $(\boldsymbol{a})$: $E = \left(3\ {}^{N}/_{C.m}\right)$y j $(\boldsymbol{b})$: $\left(-4\frac{N}{C}\right) i + [6\frac{N}{C} +$

$(\boldsymbol{c})$: $\left(3\ {}^{N}/_{C.m}\right)$ [y] j په هر حالت کې د مکعب په داخل کې څومره چارج دی؟

۱۱ـ د a ضلعې لرونکې مکعب په یو کونج کې د q نقطوي چارج ایښودل شوي، د مکعب په هر مخ فلکس څومره دی؟ ( کمک: دګاوس دقانون او د مشابهت دلیل استعمال کړئ )

**۳-۵ دګاوس دقانون تطبیقات:**

۱۲ـ دیو چارج نامحدود خط $4.52 \times 10^{24}\ \frac{N}{C}$ برقې ساحه په $1.96\ m$ فاصله کې تولیدوي د چارج خطي کثافت ی پیدا کړئ؟

۱۳ـ $(\boldsymbol{a})$: په ۳-۴ مثال کې دفوتو کاپې د ماشین قطۍ $42\ m$ اوږدوالې لري او $12 cm$ قطر لري په قطۍ کې مجموعې چارج څومره دی $(\boldsymbol{b})$: جوړونکې غواړي ددي ماشین یو سرمیزي نمونه جوړه کړي ددي کارلپاره باید دقطۍ اوږدوالې $28\ cm$ قطر $8\ cm$ ته کم کړي ددي قطۍ په سطحه باید برقي ساحه تغیرونه کړي. نو په دي نوي قطۍ کې به څومره چارج وي؟

۱۴ـ دو نرۍ اوږدي او غیرهادي ورقې چې مثبت چارج لري ۳-۲۸ شکل په شان یو بل ته مخامخ واقع دي په دي نقطو کې برقي ساحه څومره ده؟

$(\boldsymbol{a})$ دورقو چپ طرف ته $(\boldsymbol{b})$ ددوی په مینځ کې $(\boldsymbol{C})$ دورقو ښي طرف ته، دهري ورقې لپاره مساوي چارج کثافت( σ ) په نظرکې ونیسۍ یوازي هغه تقاطع راکړئ چې فاصله یې دورقو تر بعد کمه نه وي؟



۳-۲۸شکل ۱۴تمرین.

**۱۵ـ** د۳-۲۹ شکل له مخې دوه لوي فلزي تختې یو بل ته مخامخ دي چې په ترتیب $+\sigma$ او $-\sigma$ برقي د چارج کثافت په خپلو داخلې سطحو کې انتقالوي $\vec{E}$ په دي حالاتو کې پیدا کړی. (الف) دتختو په چپ طرف کې (ب) ددوي په مینځ کې (ج) د دوی په ښي طرف کې یوازي هغه نقط تصورکړی. چې فاصله يې دتختو دابعادو څخه زیاته وي.



۳-۲۹شکل۱۵تمرین.

**۱۶ـ** دځمکې دجاذبی په ساحه کې یو الکترون په یوه برقي ساحه کې چې جهت يې دځمکې دمرکزپه طرف دي بې حرکت پاته کیږي که برقي ساحه دهغه چارجونو په واسطه چی د موازي او مخالف چارج شوو هادی سطحو په واسطه چې د $2.3\ cm$

فاصلي په واسطه جداشوي وی مینځ ته راغلی وی، دسطحې چارج کثافت ی څومره دي، که تختې مشابه چارج شوي فرض شې؟

۱۷ـ یوازي مستقیم اونري برقي وایر $\frac{n.C}{m}$ 3.60− چارج انتقالوي، سیم دیو مشابه سلنډري سطحې په واسطه پوښل شوي چي شعاع یې $1.50\ cm$، ده او د سیم سره هم محوره دي داستوانې د حجمې چارج کثافت $\rho$ ټاکل شوي چې داستوانې په بهرنۍ برخه کې ساحه صفرده، دهغه مثبت چارج کثافت حساب کړۍ چې دلته ضرورت دي.

۱۸ـ د $q = 126\ nc$ نقطوي چارج دهغه کروي خالیګاه په مخ واقع دی چې $3.66\ cm$ شعاع لري اودهادي دیوي ټوټې په مخ دی دګاوس دقانون څخه په استفادي برقې ساحه هغه وخت پیداکړۍ چې (الف) دسطحې دمرکز څخه په $P_1$ نقطه کې (ب) په $P_2$ نقطه کې.




۳-۳۰شکل: ۱۸تمرین.

۱۹ـ یو پروتون دهغې کري په خارج کې چې شعاع یې $r = 1.13\ cm$ ده د $V = 294\ \frac{km}{sec}$ په سرعت سره حرکت کوي دکري پرمخ چارج پیداکړۍ؟

۲۰ـ دوه چارجداره متحدالمرکزه نري کروي قشرونه چې $10\ cm$ او $15\ cm$ شعاع لري په داخلې قشرکې چارج $40.6\ nC$ او په خارجې قشر کې چارج $19.3\ nC$

دی‌برقي ساحه په دي حالاتو کې پیداکړی (الف) په $r = 12\ cm$ (ب) په $r = 22\ cm$ (ج) په $r = 8.18\ cm$.

۲۱ـ دوه اوږدي چارج شوي متحدالمرکز استوانې چې 3.22 او $6.18 cm$ شعاع لري، دسطحې چارج کثافت په داخلې استوانه کی $24.1\ \frac{\mu c}{m^2}$ او په خارجې استوانه کې $-18.0\ \frac{\mu c}{m^2}$ دی په $r = 4.1 cm$ او $r = 8.20\ cm$ کې برقې ساحه پیداکړی؟

۲۲ـ دیوی اوږدي، غیرهادي استوانوي قشرچې داخلي شعاع یې R او خارجې شعاع یې 2R ده پرمخ کی مثبت چارج خپورشوي دسطحې په کومه لاندنی نقطه کې (په کوم ژوروالې کې) دبرقي ساحې شدت دسطحې دقیمت یونیم دي.

۲۳ـ یو الکترون چی انرژی ی ده $115\ kev$ مستقیماپه یو همواره، وی پلاستیکې قشرچې د سطحې چارج کثافت یې $-2.08\ {}^{\mu c}/_{m^2}$ دي فیرشوي له کومې فاصلې باید الکترون فیرشې ترڅو په سطحه دلږیدو سره دننه شي.

۲۴ـ یو کروي ګاوسي سطحه چې مرکزیې دچارج یو نامحدود خط دي جوړه کړئ ددي کري دپاسه فلکس حساب کړئ اووښایاست چې دګاوس قانون څخه پیروي کوي؟

۲۵ـ د R شعاع لرونکې وی استوانې باندي چارج په مشابه ډول توضیع شوي (الف): وښایاست چې $\vec{E}$ د $r$ په فاصله کې د استوانې له محورڅخه کله چی $r < R$ $E = \frac{\rho_r}{2\varepsilon_0}$ په واسطه راکوی چې دلته $\rho$ د چارج حجمی کثافت دي (ب): د $r > R$ څخه څه نتیجه اخیستلای شي؟

## ۳-۲ د ګاوس قانون اوهادي اجسام:

۲۶ــ یو 1.22 m شعاع لرونکې چارجداره هادي چې $8.13\ {}^{\mu c}/_{m^2}$ د سطحې چارج کثافت لري (الف): په کره باندې چارج پیدا کړئ (ب): دکرې په سطحه برقي ساحه پیدا کړئ. (ج): مجموعي فلکس پیدا کړئ؟

۲۷ــ دځمکې په اطراف یوه فضایې بیړی، چې الکترون لرونکې ده په حرکت کې ده. څرنګه چې په فضاکې دځمکې سطحه نشته نو هغه چارج چې په نتیجه کې منځ ته راځې دا همیت وړدی. اوکولای شي الکتروني عنصر له منځه یوسي چې ددوی دخرابولو سبب ګرځي. په یوه دوره کې فلزي فضایي ستلایټ چې 1.3m قطر لري او له $2.4\ mc$ چارج سره په دوران کې دی (الف) دچارج سطحی کثافت ی پیدا کړئ (ب) هغه برقي ساحه چې دستالیټ په بهرنۍ سطحه کې منځ ته راځې حساب کړئ؟

۲۸ــ ۳-۱۸معادله یو چارج شوي هادي په سطحه کې $E=\frac{\sigma}{\varepsilon_0}$ برقي ساحه لاس ته ورکوي. دامعادله په هغه کره کې چې شعاع یې r ده اود q چارج په خپله سطحه کی لري وښایاست چې دکرې په خارجې سطحه کې برقي سطحه دهغه نقطوی چارج دبرقي سطحې سره مساوي دی چې دکرې په مرکزکې دیو نقطوې چارج له امله منځ ته راغلې.

۲۹ــ یو فلزي تخته چې $8.0\ cm$ اوږدوالې لري په خپله یوه سطحه $6.0\ \mu C$ چارج لري (الف): دتختې نامحدودوالې په صورت کې دتخت د مرکزڅخه $0.5\ mm$ فاصله مرکزته نږدي برقي ساحه حساب کړئ (ب): په $30\ m$ کې ساحه حساب کړی؟

سـوالونه:

۱ـ دجاذبي لپاره دګاوس قانون د $\frac{1}{4\pi G}\boldsymbol{\Phi_R} = \frac{\mathbf{1}}{\mathbf{4\pi G}}\oint \vec{g}.d\vec{A} = -m$ دی ، چې m کتله او G دنړیوال جاذبې ثابت دی، له دې څخه دنیو ټن قانون استخراج کړی. اوهم ووایاست چې د(−) علامې اهمیت څه دي؟

۲ـ په ۳-۳۱ شکل کې دبرقي ساحې عناصر له $E_y = b_y^{\frac{1}{2}}$ $E_x = E_2 = 0$دي چې په $b = 8830\ \frac{N}{cm^2}$تاسې پیدا کړئ(**a**): په مکعب کې فلکس $\Phi_E$ (**b**): په مکعب کې چارج که $a = 13.0\ cm$ وي.



**۳-۳۱مشکل.**

۳ـ یوه وړوکې کره چې $m = 1.12\ mg$ کتله او $q = 19.7\ nc$ چارج لري، دځمکې د جاذبې ساحه کې دیو تارپه واسطه ځوړنده ده اوله یوې لوی چارج شوي صفحې سره $\theta = 27.4^{\circ}$زاویه جوړوي دصفحې لپاره دچارج سطحی کثافت( $\sigma$) حساب کړئ؟



۳-۳۲شکل:۳مشکل.

**۴ـ** په ۳-۳۳شکل کې د q+ چارج د یوې کرې په شکل تنظیم شوي چې شعاع یې $a$ ده او د یوې کروي هادي قشر په واسطه چې داخلي شعاع یې $b$ او خارجي شعاع یې $c$ ده احاطه شوي خارجي سطحه د q− چارج لري E(r) په دې حالتو کې پیدا کړی؟

(**a**) د کرې په مینځ کې $(r < a)$ (**b**) د کرې او قشر ترمینځ $(a < r < b)$

(**c**) د قشر په مینځ کې $(b < r < c)$ (**d**) د قشر څخه بهر $(r > c)$

(**e**) د قشر په داخل او خارجي کې کوم چارج راڅرګندیږي؟




۳-۳۳شکل:۴مشکل.

**۵ـ** یو استواني هادي د L په اوږدوالی سره چې q+ چارج لري. د یو $L$ اوږدوالي لرونکې استوانوي قشر په واسطه پوښل شوي چې 2q− چارج لري چې په **۳-۳۴** شکل کې یې مقطع ښودل شوي دګاوس د قانون په اساس داپیدا کړئ؟

(الف) دهادي دقشر په خارجي برخه کی برقی ساحه؟ (ب) په هادي قشرکی دچارج توضیع؟

(ج) داستوانو ترمینځ برقي ساحه.




۳-۳۴شکل:۵مشکل.

**۶ـ** یو لویه هموار ه غیرهادي سطحه د $\sigma$ په کثافت یو چارج لري، ددي ورقي په مینځ کې د R په شعاع یو سوري جوړ شوي لکه په **۳-۳۵** شکل کې دټولو ځنډو ځخه بهر دبرقې ساحې ځخه په صرف نظر شوی د P په نقطه کی برقی ساحه پیدا کړی چه د $z$ په محور د z په اندازه د سوري د مرکز ځخه فاصله لري.

(کمک: ۲-۱۹ معادله وګوری او د قانون ځخه ی استفاده وکړئ.)



۳-۳۵شکل:۶مشکل.

**۷ـ** په **۳-۳۶** شکل کې دیو فلزي ټیوب مقطع ګوری. چې شعاع یې R ده او دیو نازک دیوال په واسطه پوښل شوي چې د $\lambda$ چارج په واحد د طول د سطحی په مخ لري ، E او r د مختلفو فاصلو لپاره چی د تیوب د محور ځخه لری پیدا کړئ. په هغه صورت کې چې:

(الف) $(r > R)$ (ب) $(r < R)$

(ج) خپله نتیجه هغه وخت گوری چې $r = 0$ څخه تر $r = 5cm$ , وی او $\lambda = 2 \times$ او $10^{-8}\ \frac{c}{m}$ $(R = 3cm)$ وی. (کومک: د گاوس قانون داستوانې سطحی لپاره استعمال کړی‌چې فلزي ټیوب سره هم محوروي.)



۳-۳۶شکل:۷مشکل.

**۸ـ ۳-۳۷** شکل ددوه نریواو اوږدو هم مرکزه استوانو مقطع ښایې چې شعاع گانې یې $a$ او $b$ دي استوانه د $\lambda$ مختلف او مساوی چارج په واحد د طولی نقلوی. دگاوس دقانون استعمال کړی او ثبوت کړئ چې:

(لف): د$(r < a)$ لپاره $E = 0$ ، (ب): اوداستوانو په مینځ کې $E = \frac{1}{2\pi\varepsilon_0}.\frac{\blacksquare}{r}$ , سره.



۳-۳۷شکل:۸ شکل.

۹ــ دهندسي مسائلو په برخه کې (8) سوال يو پوزيترون ښايې چې ديوی استواني سطحې په داخلي کی په دايروي مسير چې داستوانې سره هم مرکزه دي دوران کوي، ددي حرکی انرژي په الکترون ولټ پيداکړئ. په هغه صورت کې چې $\text{K} = 30\ \frac{nc}{m}$ (ولې ضرورت نشته چې داستوانې شعاع وپيژنې)؟

۱۰ــ ۳-۳۸ شکل يو *Geiger Counter* (دايونايز کوونکې شعاع حسابوونکې) ښي، (counter) يو نري مرکزي سيم چې يو مثبت چارج لري اوداستوانې هادي پوښ په واسطه احاطه شوي چې په همدي اندازه منفی چارج لري، نو داستوانې په داخل کی برقي ساحه يوه قوه رامنځ ته کوي، استوانه يو ټيټ فشارلرونکې نجيبه ګاز لري، کله چې داستوانې د ديوال خخه دميله يشن يو وړانګه ننوزي دګاز اتوم ايونايز کيږي، الکترونونه مثبت سيم ته ځي. برقي ساحه دګاز داتومونو ترمينځ لوړه ده همدارنګه کافي انرژي لري چې دا اتومونه ايونايز کړي اونورازآد الکترونونه رامنځ ته کيږي داپروسه ترهغه وخته دوام کوي چې الکترونونه مثبت سيم ته لاړ شی. د سيم په واسطه دالکترونونو زيات مقدار راجمع کيږي که سيم داخل شعاع $25\ \mu m$ داستوانې شعاع $1.4\ cm$ اودتيوب اوږدوالې $16\ cm$ وی داستواني په ديوال کې برقي ساحه $2.9 \times 10^4\ \frac{N}{c}$ ده په داخلي سيم کې د ټول مثبت چارج مقدار معلوم کړی؟




۳-۳۸شکل:۱۰مشکل.

۱۱ــ يو بي چارج، فلزي کروي نري قشر په خپل مرکز کې د q نقطوي چارج لري برقي ساحه په دي حالاتو کې پيداکړئ (*a*) دقشر په داخل کې (*b*) دګاوس دقانون په

واسطه د قشر په بیرون کې ($c$) ایا قشر د q په ساحه کوم اثر لري؟ ($d$) آیا q په قشرکوم اثرلري. ($e$) که دقشر بهر یو بل نقطوي چارج وي. ایا داچارج کومه قوه احساس کوي. ($f$) ایا داخلي چارج کومه قوه حس کوي؟ ($g$) ایا دنیوټن له دریم قانون سره کوم اختلاف دلته شته؟ ولې اویا ولې نشته؟

**۱۲**ـ دستورو په منځ کې دخاورو مساوي کتله لرونکې ذرات چې یو الکترون لري یوه ثابته کروي او مشابه وریځ جوړوي دهري ذري کتله پیدا کړئ؟

**۱۳**_ ($a < r < b$) کروي ساحه د $\rho = \frac{A}{r}$ چارج په واحد حجم لري، چې $A$ ثابت دی داحاطه شوي خالیګاه په مرکز $r = 0$ کې د $q$ یو نقطوي چارج دی د $A$ قیمت به څومره وي ترڅو د ($a < r < b$) په ساحه کې برقي ساحه ثابته وي.

**۱۴**ـ یو کروي ساحه د $\rho$ چارج په واحد دحجم کی لري، دکري په منځ کی r دمرکزڅخه د P نقطې ته یو وکتور دي، ($a$) وښایاست چې د کري په منځ کې برقي ساحه $\vec{E} = \frac{\rho r}{3\varepsilon_0}$ ده. ($b$) یو کروي خالیګاه دکري په منځ کې جوړه شوي لکه په ۳-۳۹ شکل کې دځای په ځای کیدو د نظریې په اساس وښایاست چې دخالیګاه په ټولو داخلي نقطو کې ($E = \frac{p.\vec{a}}{3\varepsilon_0}$) ده (مشابه ساحه لري) چې دلته $\vec{a}$ هغه وکتور دي، چې دکري مرکزدخالیګاه دمرکزسره نښلوي په یاد ولرئ چې نتایج دکري او خالیګاه دمرکز څخه خپلواک دي؟



**۳-۳۹شکل:۱۴مشکل.**

**۱۵**ـ وښایاست چې دالکترو ستاتیک قوو ترمنځ ثابت خنثی کول ناممکن دي، (کمک: فرض کړئ چې د $p$ نقطه د $\vec{E}$ په برقي ساحه کې ده، د q+ چارج که هلته ځای

په ځاي شوي وای نو ثابته خنثي ساحه کې به وو ، دP په اطراف یو کروي ګاوسي سطحه رسم کړئ او فرض کړئ چې $\vec{E}$ به په دي سطحه کی ځومره وي اودګاوس په قانون سره وښایاست چې دافرضیه اختلاف ښي. دانتیجه (Earnshaws thearn) په ډول پیژندل شوي.

۱۲ـ یو مسطحه میله چې د d پنډوالي لري یو مشابه حجمې کثافت لری، برقي ساحه دفضاء په دي نقطو کې پیدا کړی؟ ($a$) په داخل کې (**b**) دمیلي په بهرکې په دي حالت کې چی د x فاصله دمیلي له داخلې برخي څخه اندازه شوي وی.

۱۷ـ یوه جامده غیرهادي کره د $R$ شعاع لري دچارج غیر مشابه توضیع لري او دچارج کثافت یې $P = \rho_S \frac{r}{R}$ دي چې $Ps$ ثابت دی او دکري د مرکزڅخه فاصله ده، وښایاست چې ($a$) په کره کی ټول چارج $q = \pi P_S R^3$ دی او ($b$) دکري په داخل کې برقې ساحه($E = \frac{1}{4\pi\varepsilon_0}.\frac{Q}{R^4}.r^2$) ده ؟

۱۸ـ یو عایق شوي هادي $10\ \mu C$+ چارج لري ، دهادي په منځ کې یوه خالیګاه ده چې په منځ کې یې q = +3.0mc چارج دی. په لاندي ساحو کې ځومره چارج دی؟ ($a$) دخالیګاه په دیوال ($b$) دهادي په بهرنۍ سطحه.

۱۹ـ یو هادي کره چې q چارج لري دیوهادي کروي قشر په واسطه پوښل شوي. (**a**) دقشر په داخلي سطحه کې چارج څومره دی؟ (**b**) د q یو بل چارج دقشر څخه بهر ځای په ځای شوي اوس دقشر په داخلي سطحه کې چارج څومره دی ؟(**c**) که q دقشر او کري منځنۍ برخې ته انتقال شي نو دقشر په داخلې برخه کې چارج څومره دی؟ (**d**) آیا ستاسو جوابونه په هغه صورت کې هم صحیح دي چې قشر اوکره هم مرکز نه وي؟

## محاسبوي سوالونه:

1. دګاوس قانون دیو عددي محاسبې سره تائید کړئ د$\mathbf{q = 1\ nc}$ نقطوي چارج دکري دسطحې څخه په $\mathbf{0.5m}$ کې واقع دی دکري شعاع $\mathbf{r = 1.0\ m}$ ده ، د کري برقي فلکس حساب کړئ؟
2. دګاوس قانون دیو عددي محاسبې په واسطه تائید کړی، د $\mathbf{q = 1\ nc}$ چارج د کري دمرکز او خارجې سطحې ترمنځ واقع دی، دکري شعاع $\mathbf{r = 1.0\ m}$ ده دکري برقي فلکس حساب کړئ؟
3. د$q = 1.0\ \mu C$ نقطوي چارج دیوی استواني سطحې په محور چې شعاع چې $\mathbf{r = 0.5\ m}$ او اوږدوالي یې $\mathbf{L = 3.0\ m}$ ده واقع دی. نقطوي چارج له یو ي قاعدي څخه($\mathbf{1.0m}$) فاصله لری، او $\mathbf{2.0\ m}$ له بلې قاعدي څخه فاصله لري.
(**a**) د استواني په قطع شوي برخې کې فلکس په عددي ډول محاسبه کړئ؟
(**b**) خپل ځواب په تحلیلي ډول تائید کړئ؟نوټ: دلته هیڅ انتګرال ته ضرورت نشته.

## څلورم څـــــپرکی

### برقي پوتانشیالي انرژي او پوتانشیال:

د ۱۱ څپرکي څخه تر ۱۳ څپرکي پورې، مونږ هغه طریقې (متودونه) زده کړل کومو چې انرژي پورې اړه درلوده. اودغه طریقی مونږ سره په میخانیک باندې دپوهیدلو کومک کوي. یعنې دمیخانیک د مشکلاتو په حلولو کې یې اسانیتا رامنځ ته کړي.

په ۱۴ څپرکي کې مونږ هغه طریقې استعمال کړي وي چې د پوتانشیالي انرژي د موقیعت او وضعیت په معلومولو ولاړې وي، همدارنګه دځمکې دجاذبې قوې خواص دستورو او سپوږمۍ دحرکت په شان معلومېږي مونږ په دې څپرکي کې دالکتروستاتیک دمطالعې لپاره انرژي طریقه (میتود) زده کوو مونږ د برقي پوتانشیالی انرژي څخه شروع کوو ،شاید چې مونږ ته الکتروستاتیکي قوه د جاذبوي پوتانشیالي انرژي په شان معرفي کړي. او دا جاذبوي پونسیالي انرژي کولی شي جاذبوي قوه تشریح کړي نو بیا د برقي پوتانیسال دا مفهوم په عمومي توګه کولی شي چې دا وښایي چې: څنګه برقي پوتانشیال دچارج په مختلفو جدا او پیوستو توزیعو کې پیدا کولی شو.

۱-۴ پوتانیسالی انرژي:

زیاتي برقي پیښې (حادثې) د زیات مقدار انرژي په انتقال پورې اړه لري دمثال په ډول کله چې د وریځو بریښنا د ځمکې سره ټکر کوي، په نمونوي توګه د $10^{8}$ J یوه انرژي، د رڼا ، اواز، حرارت او حیرانونکي څپې په شکل ورڅخه ازادیږي دا انرژي دکوم ځایه او څنګه په وریځ کې جمع کیږي؟ د دې پوښتنې دپوهیدو لپاره مونږ ګورو چې دا انرژي یوازې دبرقي قوو سره اړه لري.دالکتروستاتیک قوی قانون ډیر زیات دجاذبې دقوې دقانون سره مشابهت لري:

$$F = \frac{1}{4\pi\varepsilon_0}\frac{|q_1|,|q_2|}{r2} \qquad (4-1a) \text{.....الکتروستاتیک قوه}$$

$$F = G\,\frac{m_1 m_2}{r^2} \qquad (4-1b) \text{....... جاذبوي قوه}$$

دغه دواړه قوې د دوه جسمونو ترمنځ دفاصلې دمربع سره معکوساًمتناسبې دي، کله چې یو جسم د بل جسم دجاذبې د قوې لاندې د یو ځای څخه بل ځای ته حرکت کوي (کوم چې مونږ فرضوو چې په آرام کې پاتې شي) نو هغه کارچې د جاذبې قوه یې په اولنې جسم باندی اجراء کوي یوازې د پیل او پای په نقطو پورې اړه لري او دهغو ترمنځ فاصلې پورې اړه نلري، په (۱-۱۲) برخه کې مونږ هغه قوه چې داقسم یو خاص خاصیت لري دمحافظه کاري قوې ($Conservative\ force$)په نوم یاده کړې ده او په (۲-۱۲) برخه کې

مونږ دې نتیجې ته ورسیدو چې دیوې محافظه کاري قوې لپاره مونږ پوتانیسالي انرژي معرفي کوو. یعنې تعریفوو:

دا چې یو جسم دخپل اولني ځای څخه خپل اخرني ځای ته حرکت کوي. نو دسیستم پوتانشیالي انرژي ΔU یې مساوي ده هغه منفي کار سره کوم چې دقوې په واسطه اجراء شوي:

$$\Delta U = U_f - U_i = -W_{if} = -\int_i^f \vec{F}.d\vec{s} \qquad (4-2)$$

$W_{if}$ هغه کار دی چې د $\overrightarrow{F}$ دقوې په واسطه چې جسم د i څخه f پورې حرکت کړی دی.په (۲-۱۴) برخه کې مونږ وښودل چې د جاذبې قوې په دې حالت کې چې کله یو جسم د $m_2$ په کتلې سره د $r_i$ په فاصله د $m_1$ دکتلې څخه د $r_i$ له نقطې څخه د $r_f$ نقطې ته حرکت کوي.نو دپوتانشیالي انرژي توپیریې مساوي دی:

$$\Delta \mathrm{U} = -\mathrm{G}\mathrm{m}_1\mathrm{m}_2\left(\frac{1}{\mathrm{r_f}} - \frac{1}{\mathrm{r_i}}\right) \qquad (4-3)$$

دا دپوتانشیالي انرژي تفاوت په ټول سیستم پورې اړه لري چې د $m_1$ او $m_2$ کتلو لرونکی دی نه یوازې په یوه جسم پورې که د جاذبې قوې قوانین وضع کړو. نوالکتروستاتیک قوه محافظه کاره (*Conservative*)قوه ده. نو ځکه پوتانشیالي انرژي یې مربوط ده یعنې اړه لري دیو سیستم دبڼې سره په کوم کې چې الکتروستاتیک قوه عمل کوي ولې دغه طریقه د الکتروستاتیک قوو لپاره ګټوره ده په میخانیک کې مونږ زده کړل چې د مشکلاتو د تحلیل لپاره دوه طریقې موجودې دي. یوه طریقه یې په قوه (وکتور) ولاړه ده د کومې پواسطه چې مونږ د یو جسم موقعیت او دهغه دسرعت مقدارد حرکت په هره نقطه کې معلومولي شو.

دوهم میتود یا طریقه په انرژي (سکالر) ولاړه ده چې مونږ د دې په وسیله کولې شو معلومه کړو چې یو سیستم دحرکت پرمهال د شروع له ټاکلې نقطې تر پای نقطې پورې څنګه بدلیږي. او مونږ به په دی پوه شو چې دواړه طریقې ګټورې دي ترڅو د دوه چارج لرونکو جسمونو ترمنځ متقابل عمل مطالعه شي. دلته یوه مهمه ځانګړتیا موجوده ده د

کومې په واسطه چې دالکتروستاتیک قوه دجاذبې قوی څخه توپیر کېږي. دجاذبې قوه هر وخت جذب کوونکي خاصیت لري. په داسې حال کې چې الکتروستاتیکي قوه دفعه کوونکي او یا جذب کوونکي کیدلي شي. دغه توپیر د پوتنشیل انرژي په علامه باندې تغیر اچولي شي خو د دوي د ورته والي په هکله زمونږ استدلال ته تغیر نه شي ورکولي. یعنې دغه دواړه قوي یو له بل سره ورته دي.

## ۴-۲ د برېښنا پوتنسیالي انرژي:

په دغه برخه کی مونږ الکتروستاتیکي قوه، کومه چې په لومړی څپرکی کې مونږ ولوسته د برقي پوتنشیل انرژي د تر لاسه کولو لپاره استعمالوؤ ځکه دوي دواړه یو پر بل متقابل اثر لري او ددوؤ څخه زیاتو چارجونو د موجودیت حالت هم دلته تشریح کوو د پخوانۍ برخې څخه مونږ پوهېږو چې الکتروستاتیکي قوه یوه محافظه کاره قوه ده مونږ کولي شو چې پوتنشیل انرژي په هغه وخت کې حساب کړو چې $q_2$ چارج له $a$ نقطې څخه د $b$ نقطې ته حرکت کوي او دغه حرکت د $q_1$ د چارج د قوي له امله تر سره کیږي که فرض کړو چې دواړه چارجونه مثبت وي لکه (۴-۱ شکل)، کې اوس فرضوؤ که حرکت د $a$ له نقطې څخه د $b$ نقطې په هغه کرښه وي چې $a$ له $b$ سره تړي (وروسته به دتغیر مکان تېولو ډولو سره اشنا شو) که چېرې مونږ د $q$ په موقعیت کې ؤو او $r$ د مبداء او $q_2$ ترمنځ فاصله وي نو د $d\vec{s}$ وکتور ډېر کوچني تغیر مکان رانښایي چې د $a$ د نقطې څخه د $b$ نقطې ته تر سره شوي دی، (۴-۲شکل) په دغه ډول حرکت کې د$\vec{F}$ قوه او د $d\vec{s}$ تغیر مکان د تل لپاره یوه له بل سره موازي وي نو ځکه مونږ لرو $(\vec{F}.d\vec{s} = Fds)$ هغه حرکت چې (۴-۱) شکل کې ښودل شوي دي،دلته $ds = dr$ دي ځکه چې تغیر مکان د تل لپاره د $r$ په جهت کې وي



۴-۱ شکل.

د ۴-۲ معادلې په عوض لیکلي شو:

$$\Delta U = -\int_a^b \vec{F}.d\vec{s} = -\int_a^b F\,dr = -\int_{r_a}^{r_b} \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{q_1 q_2}{r^2}dr \qquad (4-4)$$

که پورتني انتګرال خلاص کړو نو لرو چې:

$$\Delta U = U_b - U_a = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}q_1 q_2(\frac{1}{r_b} - \frac{1}{r_a}). \qquad (4-5)$$

**۴-۵معادله** په دواړو حالاتو کی د تطبیق وړ ده یعنې که د $q_2$ چارج په طرف او یا له هغه څخه لری وي. که چېرې $q_2$ د $q_1$ په طرف حرکت وکړي نو $\Delta U > 0$ دی، نو په دې حالت کې چارجونه یو له بل سره نږدې حرکت کوي نو د پوتنشیل انرژي ئی زیاتېږي، که چېرې د $q_2$ چارج د $q_1$ له چارج څخه لرې حرکت وکړي نو $r_b > r_a$ او $\Delta U < 0$ دی نو په دی حالت چارجونه یو له بل څخه جدا او لرې حرکت کوي نو پوتانشیال انرژي ئی کمېږي. **۴-۵** معادله په هغه وخت کې، هم د تطبیق وړ ده چې د چارجونو علامې مثبت وي او یا منفي وي که چېرې دواړه چارجونه منفي وی نو مونږ په وضاحت سره عینی نتیجه ترلاسه کوو ، که چېرې چارجونه مخالف العلامه وي یعنې یو مثبت او بل منفي وي نو بیا د هغوی ترمنځ قوه د جذب قوه ده، ۴-۱ شکل کې د قوې وکتور په مخالف جهت کې مونږ لرو:

$$\vec{F}.d\vec{s} = -F\,ds = -F\,dr = -\frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{|q_1||q_2|}{r^2}$$

$$= \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{q_1 q_2}{r^2}, \qquad (4-6)$$

په اخري قدم کې $q_1 q_2 = -|q_1||q_2|$ کېداي شي که چېرې چارجونه مخالف العلامه وي یعنې یو منفي او بل مثبت وي دغه په دقیق ډول همغه انتګرالي تابع ښايي، لکه

۴-۴معادله کې، نو له دې وجې انتګرال همغه نتیجه ورکوي، کله چې چارجونه مخالفې علامې ولري نو بیا "$q_1.q_2$" منفي راځي ۴-۵ معادله کې $\Delta U < 0$ دی،که چېرې چارجونه یو له بل سره نږدې حرکت وکړي. او که چارجونه یو له بله جدا او لرې حرکت وکړي نو بیا $\Delta U > 0$ وي.که فرض کړو چې $q_2$ په هغه کرښه حرکت ونه کړي کوم چې $q_1$ او $q_2$ یو له بل سره نښلوي لکه ۴-۲ شکل ښایي چې $q_2$ د $a$ له نقطې څخه د $b$ نقطې ته دداېرې د یو قوس په امتداد چې د $r$ د شعاع په واسطه $q_1$ د مرکز سره نښلول شوي دي د دغه مسیر په اوږدو کې $\vec{F}$ قوه همیشه په $\vec{ds}$ باندې عمود ده نو $\vec{F}.\vec{ds} = 0$ ده دلته الکتروستاتیکي قوه هیڅ کار نه کوي یعنې$\Delta U = 0$ دی که چېرې $q_2$ له $a$ څخه د $b$ اختیارې نقطې ته حرکت وکړي لکه ۴-۳ شکل کې، موږ کولی شو چې مختلف مسیرونه غوره کړو.




۴-۲شکل:




۴-۳شکل.

د مسیر په اوږدو کې یعنې 1 او 2 کې، $\Delta U$ چې **۴-۵** معادله کې مونږ ته راکړل شوې دی د مسیردشعاعي برخو لپاره او دمسیر د کږې یا $Tangential$ برخې لپاره $\Delta u = 0$ دی،د$0 < 3$ اختیاري مسیر په لنډ،کړو $Tangential$ اوشعاعي $Radial$ برخو وېشل کېداي شي په هره کړه شوې بر خه کې $\Delta U = 0$ دی په داسې حال کې چې د$\Delta U$ مکمل قیمت په شعاعي برخو کې د **۴-۵** معادلې په وا سطه لاسته راځي.

زمونږ نتیجه داسې ده چې د **۴-۵** معادله، د $\Delta U$ قیمت په هر مسیر کې راکوي چې د $a$ او $b$ ترمنځ وجود لري. $a$ نقطه د $q_1$ څخه د $r_a$ په فاصله او د $b$ نقطه له $q$ څخه د $r_b$ په فاصله واقع ده دلته د نقطې موقعیت مهم نه دی نو موږ ویلې شو چې الکتروستاتیکي قوه محافظه کار قوه ده.د دې معنی دا ده چې تر سره شوې کار د $a$ له نقطې څخه د $b$ نقطې ته د حرکت په وخت کې د پوتنشیل انرژي د بدلون په مسیر پورې ارتباط نه لري.

تر اوسه پورې موږ د دوه نقطو ترمنځ د پوتنشیل انرژي په توپیر باندې بحث وکړ یعنې $\Delta U = U_b - U_a$ نو دغه بحث ته ادامه ورکوو او غواړو چې د $b$ په ټاکلي نقطه کې د پوتنشیل انرژي معلومه کړو، دلته د $a$ نقطه د پوتنشیل انرژي د سرچینې په توګه ټاکو او پوتنشیل انرژي د $a$ په نقطه کې په $U_a$ سره ښایو اکثر وخت دا مهمه ده چې د سرچینې نقطه باید د دوه چارو جونو ترمنځ ډېره جدایي برابره کړي او په عمومي ډول موږ د سرچینې نقطې قیمت $U_a = 0$ انتخابوو،او د b نقطه هره نقطه کیداي شي کومه چې د جدایي فاصله یې r ده نو **۴-۵** معادله داسې شکل غوره کوي:

$$U(r) = \frac{1}{4\pi\epsilon_0} . \frac{q_1 q_2}{r} \qquad (4-7)$$

په دې معادله کې که چیرې د $q_1$ او $q_2$ علامې سره یو شان وي نو $U$ مثبت دی او دا مونږ ته دفع کوونکې قوه را ښایي او که چېرې $q_1$ او $q_2$ مخالفې علامې ولري نو د $U$ قیمت منفي دی او دا مونږ ته د جذب قوه را ښایي، که $7 - 4$ معادله د $17 - 14$ معادلی سره پرتله کړو،چې موږ ته دجاذبې قوې $(f_g)$ پوتنشیل انرژي راښایي نو $U(r) = -Gm_1m_2/r$ کېږي.

نو موږ دا خبره یاداشت کوو: چې جاذبوي پوتنشیل انرژي همیشه منفي ده ځکه چې د جاذبې قوه تل جاذبه ده او دغه قوه د الکتروستاتیکي پوتانشیالي انرژي له منفي قیمت سره مساوي ده، کله چې چارجونه مخالفې علامې ولري نو قوه د جذب قوه ده.

## په الکتروستاتیک کې د انرژي بقا (پایښت):

د دوه چارجونو مجموعي میخانیکي انرژي(په منفرد سیستم کې) $E = K + U$ ده. چې ثابته ده. فرضا که د $q_1$ چارج په یوه ټاکلي ځاي کې واقع وي او د $q_2$ چارج په یوه ټاکلي فاصله د $q_1$ څخه خوشې شي که چیرې د دواړو چارجونو علامې یو شان وي نو $\Delta U < 0$ اود $q_1$ چارج د $q_2$ چارج د دفعې قوې په واسطه دفع کیږي. د میخانیکي انرژي بقا $\Delta K > 0$ ته ضرورت لري، نو له دې وجې باید د $q_2$ سرعت زیات شي که چیرې موږ د $q_2$ چارج ته د $q_1$ په طرف حرکت ورکړو د ټاکلي حرکي انرژي په واسطه، نو دلته $\Delta U > 0$ ده، چې د دوي ترمنځ فاصله کمیږي، نو له دې وجې د انرژي بقا د $\Delta K < 0$ ته اړتیا لري نو ځکه د $q_2$ چارج سرعت کمیږي.نوپورتنۍ نتیجې برعکس کیږي که چیرې چارجونه مخالفې علامې ولري، چې په دې حالت کې به قوه جذب کوونکې وي.

د دوه چارجونو د سیستم انرژي دکتلو د بقا لپاره یوه بله لاره هم موجوده ده، که فرض کړو چې دوه چارجونه یو شان علامې ولري که دغه دواړه چارجونه په ډېره لویه فاصله یو له بل څخه جدا شي، که چیرې د $q_2$ چارج ته حرکت ورکړو او د $q_1$ د چارج څخه یو ټکلي فاصله ولري، د دې کار تر سره کولو لپاره دلته یو چارجي عامل چې د $q_1$ چارج ته حرکت ورکړي، دغه عامل باید یوه قوه وارده کړي ترڅو د $q_1$ او $q_2$ ترمنځ الکتروستاتیکي دفعې قوې سره مخالفه وي نو دغه عامل مثبت کار اجرا کوي، نو له دې وجې د سیستم انرژي زیاتیږي په پایله کې د دغه خارجي عامل له خوا د تر سره شوي کار له امله د سیستم انرژي د $\Delta U$ په اندازه زیاتیږي یا په بل عبارت دغه خارجي عامل په سیستم کې انرژي ذخیره کړې ده د مثال په ډول کله چې یو خارجي فنر متراکم شي نو په حقیقت کې انرژي ذخیره کوي د چارجونو دخوشې کولو سره ذخیره شوې انرژي د حرکت کوونکو

چارجونو د حركي انرژي په ډول موندلي شو كه د دې پرځاى چارجونه مخالفې علامې ولري نو د هغوي ترمنځ الكتروستاتيكي قوه د جذب قوه ده نو دلته خارجي عامل، كوم چې د $q_2$ چارج ته له لېرې فاصلې څخه د $q_1$ په لور يو نږدې فاصلې ته حركت وركوي په سيستم باندې منفي خارجي كار اجرا كوي دغه كار د سيستم ذخيره شوي انرژي كموي او له دې وجې د موندلو وړ نه ده.د خارجي عامل پرته د $q_1$ د $q_2$ په طرف خپل تعجيل ته دوام وركوي دلته بايد خارجي عامل انرژي مصرف كړي ترڅو په يوه ټاكلي ځاى كی د $q_2$ د چارج د ساتلو څخه مخنيوي وكړي.كه چېرې د $q_1$ او $q_2$ چارجونه يو له بل سره مخالفې علامې ولري او په لنډه فاصله كې حركت شروع كړي نو دلته بيا خارجي عامل مثبت كار تر سره كوي ترڅو د چارجونو ترمنځ فاصله زياته كړي او ددغه كار مقدار $\Delta U$ سره مساوي دي. كه چېرې موږ دغه مفكوره د اتوم اوماليكول لپاره وكارو نو دغه انرژي اتصالي انرژي ده چی د ايونايزيشن انرژي په نوم اويا د تفكيک انرژي يادېدلي شي دغه انرژي موږ ته خارجي انرژي را ښايي، كومه چې موږه يې بايد تياره كړو. دمثال په ډول كله چې موږ وغواړو د يو اتوم څخه يو الكترون جدا كړو يايو ماليكول په ايونو ټوټه كړو لكه $Kcl$ د $K^+$ او $CL^-$ په ايونو باندې.

**۴-۱** پوښتنه: كه چېرې د $^{238}U$ په هسته كې د دوه پروتونو ترمنځ فاصله $6Fm$ وي نو څومره پوتنشيل انرژي د برقي انرژی سره يو ځاي د دغه دوه زور ترمنځ عمل كوي.

**حـــل:** پوهېږو چې $q_1 = q_2 = +1.60 \times 10^{-19}C$ دي نو موږد (**۴-۵**)معادلې څخه لرو چې:

$$U = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{q_1 q_2}{r} = \frac{(8.99 \times 10^9\ N\cdot m^2/C^2)(1.60 \times 10^{-19}\ C)^2}{6.0 \times 10^{-15}\ m}$$
$$= 3.8 \times 10^{-14}\ J = 2.4 \times 10^5\ eV = 240\ keV,$$

كه چېرې موږ $U = 0$ ونيسو د ترتيب لپاره كومه كې چې پروتونونه يو له بل څخه لرې كوي نو دغه دوه پروتونونه يو له بل څخه نه جدا كېږي ځكه چې دوي ديوی جاذبې قوې په

واسطه یو له بل سره یو ځای شوي دي، کومه چې هستې ته ټینګتیا یا اتصال ور بخښي برعکس برقي قوه دومره پوتنشیل انرژي نه لري چې دومره قوې قوه تولید کړي.

**۴-۲پوښـــتنه:** دوه جسمونه چې د لومړي جسم کتله $m_1 = 0{,}0022\ kg$ او چارج یې $q_1 = +32\ \mu C$ وي، او د دوهم جسم کتله $m_2 = 0{,}0039\ kg$ او چارج $q_2 =$ $-18\ \mu C$ وي نو که په لومړي سرکې د هغوي ترمنځ فاصله $4{,}6\ cm$ وي او لومړي جسم په یوه ټاکلي ځای کې ثابت وساتل شي او دوهم جسم خوشې شي نو د دوهم جسم سرعت معلوم کړې. که د هغوی ترمنځ فاصله په دې وخت کې $2{,}3\ cm$ وي فرض کړئ چې جسمونه د نقطوي چارجونو په شکل وي.

**حـــل:** څرنګه چې چارجونه یو بل ته نږدې کېږي کېږي نو دلته یوائې الکتروستاتیکي قوه عمل کوي دلته د پوتنشیل انرژي کمېدونکي مقدار د حرکي انرژي په ډول ثابته پاتې کېږي په لومړي سر کې کله چې دوهم جسم خوشې کېږي، دلته $K_i = 0$ دی او په اخري حالت کې کله چې ددوي ترمنځ فاصله $2{,}3\ cm$ ده، خو دانرژي د بقا قانون په اساس $U_i + K_i = U_f + K_f$ ده چې دلته $K_i = o$ ده نو:

$$K_f = U_i - U_f = -\Delta U = -\frac{q_1 q_2}{4\pi\epsilon_0}\left(\frac{1}{r_f} - \frac{1}{r_i}\right)$$

$$= -(8.99 \times 10^9\ N \cdot m^2/C^2)(32 \times 10^{-6}\ \mu C)$$

$$\times (-18 \times 10^{-6}\ \mu C)\left(\frac{1}{0.023\ m} - \frac{1}{0.046\ m}\right)$$

$$= 113\ J.$$

$$v_f = \sqrt{\frac{2K_f}{m_2}} = \sqrt{\frac{2(113\ J)}{0.0039\ kg}} = 240\ m/s.$$

اوس د دي پر ځای که چیري مونږدوهم جسم ثابت وساتو او لومړي جسم خوشي کړو نو کله چې$2{,}3\ cm$ ته ورسیږي نو حرکي انرژي به همغه $113\ J$ قیمت ولري ځکه چې انرژي د ټول سیستم یوه ځانګړتیا ده که چیري ته مونږ دواړه ذري یو ځای خوشي کړو چې یو له بله سره یو ځای شي نو $2{,}3\ cm$ فاصله کي د دواړو ذرو مجموعي حرکي انرژي به د $113\ J$ سره مساوي وي مونږ دلته د دواړو ذرو سرعت دمومنتم دبقا له مخي موندلي شو.

د چارجونو دیو سیستم پوتنشیل انرژي ***Potential Energy of a System of Charges***: که فرض کړو چې مونږ دري چارجونه $q_1$,$q_2$, او $q_3$ چي يو له بل سره بې نهايته فاصلي لري ولرو په دي حالت کي $U = 0$ دی دلته غواړو هغه پوتنشيل انرژي پيدا کړو چي د دغو دري چارجونو يو بل ته د نږدي کيدو په نتيجه کي منځ ته راځي، اوس د $q_1$ چارج دنامحدودي فاصلي څخه راوړو او په يو خاص ځاي کي قرار ورکو، لکه د $a$ په شکل کي څرنګه چي دغه چارج د کومو نورو چارجونو سره ارتباط نلري نوپدي پروسه کي په پوتنشيل انرژي کي کوم تغير منځ ته نه راځي، دلته بيا هم په دي سيستم کي مونږ $U = 0$ لرو ځکه چي چارجونه يو له بل څخه به نا محدودو فاصلو کي قرار لري.



**۴-۴شکل.**

اوس که $q_1$ چارج د $r_{12}$ په فاصله د $q_1$ څخه ولرو لکه په $b$ شکل کي، نو دلته د $q_1$ او $q_2$ پوتنشيل انرژي د $q_1q_2/4\pi\varepsilon_0r_{12}$ څخه عبارت ده اوس که د $q_3$ چارج راوړو او د $q_2$ څخه د $r_{13}$ په فاصله قرار ولری او د $q_2$ له چارج څخه د $r_{23}$ فاصله ولری لکه $C$ شکل دپوتنشيل انرژي لپاره دوه اضافي مرستي موجودي دي يعني $q_1q_3/4\pi\varepsilon_0r_{13}$ دغه انرژي د $q_2$ او $q_3$ چارجونو د متقابل عمل څخه ده او $q_2q_3/4\pi\varepsilon_0r_{23}$ د $q_1$ او $q_2$ چارجونود متقابل عمل انرژي ده.او د ټول سيستم برقي پوتنشيل انرژي عبارت ده:

$$U = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{q_1q_2}{r_{12}} + \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{q_1q_3}{r_{13}} + \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{q_2q_3}{r_{23}}. \quad (4-8)$$

۴-۸رابطه ښکاره کوي چي پوتنشيل انرژي د يو سيستم ځانګړتيا ده، نه د يو ځانګړي چارج مونږ کولي شو چي دخپلي خوښي د چارجونو يو سيستم برابر کړو دلته نتيجه

کیدونکي ټوله پوتنشیل انرژي، د کوم یو داسي سیستم چه د هغه سیستم دچارجونو د ځاي پر ځاي کیدو په شکل پوري ارتباط لري. له دغه مثال څخه تاسي کولي شی. د انرژي دمیتود د استعمالولودا طریقه دیو سیستم دتحلیل او تجزیې لپاره ورڅخه ګټه واخلی، کومه مجموعه چي په ۴-۸رابطه کي تر لاسه کیږي یوه الجبري سکالري مجموعه ده که چیري مونږ وغواړو چي هغه برقي ساحه چي د دري واړو چارجونو په واسطه محاصره شوي وه نو زمونږ د ارزیابي لپاره به دغه یو ډیره پیچیده (مشکل) وکتور وي، مخکې مونږ دغه اساس وکاراوه، چې د دوه ؤ چارجونو متقابل عمل دنورو چارنونو څخه مستقل دي البته په وکتوري مجموعه کي، دلته مونږ ګورو چي دسکالري شرایطو لپاره هم عین نتیجه منځ ته راځي. دمثال په ډول د $q_1$ او $q_3$ چارجونو متقابل عمل د $q_2$ دموجودیت څخه مستقل دي.لکه چي پورته مونږ بحث وکړ، چي که چیري خارجي عامل د بي نهایت فاصلي څخه دچارجونو په برابرولو کي مثبت کار وکړي نو ۴-۸معادلي په واسطه محاسبه شوي پوتنشیل انرژي به مثبت وي. خارجي عامل په حقیقت کي دسیستم په چارجونو کي ذخیره شوي انرژي ده.که چیري چارجونه له خپلو موقیعتونو خوشي شي نو دوي به یو له بل څخه جدا حرکت وکړي په پایله کي به د پوتنشیل انرژي کمه شي خو په څنګ کی به یې حرکي انرژي په هماغه اندازه زیاته شي.که چیري مجموعي پوتنشیل انرژي منفي وي، نو خارجي عامل دسیستم دچارجونو په برابرولو کي منفي کار تر سره کړي دي، نو دلته خارجي عامل باید اضافي انرژي برابره کړي تر څو دسیستم چارجونه یو له بل څخه جدا او دویې ته په نامحدودو فاصلو کې حرکت ورکړي د پوتنشیل انرژي په باره کي مفکوره په لاندي ډول سره خلاصه کولای شو.

کله چي چارجونه په ټاکلو نقطو کي قرارولري انرژي ئی د هغه کار سره مساوي ده، کوم چي دیو خارجي عامل په واسطه تر سره کیږي تر څو چي سیستم برابر شي یعني هر چارج باید د هغي په واسطه دبي نهایت فاصلي څخه یوي ټاکلي نقطي ته راوړل شي دا پورته تعریف دپوتنشیل انرژي دسر چیني د نقطي تعریف وه چي دچارجونو تر منځ بي نهایت فاصله وجود ولري دلته دپوتنشیل انرژي د سرچیني نقطي قیمت صفر نیول کیږي.

مثـــال: ۴-۴ شکل په سیستم کي فرض کړئ چي $r_{12} = r_{13} = r_{23} = d = 12cm$ وي او $q_1 = +q_1,\ q_2 = -4q$ او $q_3 = +2q$ وي که چیري $q = 150nC$ وي نو: د سیستم پوتنشیل انرژي څومره ده، فرض کړئ چي $U = 0$ وي کله چي چارجونه یو له بل څخه بې نهایت فاصله ولري.

حـــــل: د۴-۸رابطې څخه لرو:

$$U = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\left(\frac{(+q)(-4q)}{d} + \frac{(+q)(+2q)}{d} + \frac{(-4q)(+2q)}{d}\right)$$

$$= -\frac{10q^2}{4\pi\epsilon_0 d}$$

$$= -\frac{(8.99\times 10^9\ N\cdot m^2/C^2)(10)(150\times 10^{-9}\ C)^2}{0.12\ m}$$

$$= -1.7\times 10^{-2}\ J = -17\ mJ.$$

په دي حالت کي منفي پوتنشیل انرژي دا معني لري چي خارجي عامل منفي کار اجرا کوي چي دغه جوړښت ئی برابر کړي دی یعني خارجي عامل باید $+17\ mj$ کار اجرا کړي ددي لپاره چي دغه جوړښت به مکمل شکل یو له بل څخه جدا کړي

## ۴-۳برقي پوتنشیل:

فرض کړو چي په یو سیستم کي د $q$ یو چارج په ټاکلي نقطه کي لرو، که یو بل چارج د $q_0$ په نامه چي ازمایښتي چارج بلل کیږي، که چیري د غه چارج د $q$ چارج د تاثیر لاندي د $r_a$ څخه $r_b$ ته حرکت وکړي.د پوتنشیل انرژي تغیر $\Delta U$ د دغه دوه چارجه سیستم ۴-۵معادلي په اساس محاسبه کولاي شو. که چیري د ازمایښتي چارج اندازه دوه چنده زیاته شي نو پوتنشیل انرژي به هم دوه چنده تغیر وکړي، که چېرې ازمایښتي چارج درې چنده زیات شي، نو پوتانسیل انرژې به هم درې چنده تغیر وکړي.

د پوتنشیل انرژي د ازمايښتي چارج د اندازې سره مستقیم ارتباط لري یا په بل عبارت $\frac{\Delta U}{q_0}$ مقدار یو ثابت مقدار دي او د ازمايښتي چارج دجسامت سره رابطه نلري او دا د $q$ مرکزي چارج یوه ځانګړتیا ده دغه مقدار د الکتروستاتیکي مشکلاتو (مثالونو) په تحلیل کي ډیر موثر پریوځي، که څه هم ډیر مشکل ترتیب شوي چارجونه ولرو، نو مونږ داسي تعریف کوو چي دا دبرقي پوتنشیل توپیر $\Delta V$ عبارت دی له برقي پوتانشیالي انرژي دتوپیراو د واحد ازمايښتي چارج د نسبت څخه یعني:

$$\Delta V = \frac{\Delta U}{q_0} \qquad (4-9)$$

یا

$$V_b - V_a = \frac{U_b - U_a}{q_0}. \qquad (4-10)$$

د پوتنشیل انرژي غوندي برقي پوتنشیل هم یو سکالري کیمیت دي. معمولا برقي پوتنشیل به لنډ ډول سره دپوتنشیل په نوم سره یادیږي.دکار او پوتنشیل انرژي په نظر کي نیولو سره چي(۴-۲) معادله کي راکړل شوي ده مونږ کولي شو د پوتنشیل تفاوت دارنګه تعریف کړو:

$$\Delta V = \frac{W_{ab}}{q_0} \ldots \ldots \ldots (4-11)$$

په پورته رابطه کي $W_{ab}$ هغه مقدار کاردي چي د $q$ چارج د الکتروستاتیکي قوي په واسطه اجرا شوي دي د په $q_0$ باندي، هغه وخت کله چي ازمايښتي چارج له $a$ نقطي څخه د $b$ نقطي ته حرکت کړي وي. د پوتنشیل انرژي لپاره د خپلي خوښي یو مناسبي سر چیني نقطي معلومولو (لکه $U = 0$ د یوي نامحدودي لومړنۍ فاصلي چارجونو لپاره) مونږ په ۴-۷ معادله کی په لاس راوړو، د پوتنشیل لپاره دیو معلوم شکل لپاره مونږ همدغه کار د برقي پوتنشیل لپاره هم تر سره کولي شو. یوائي په پوتنشیل کي فزیکي ګټي موجودي دي نو مونږ په آزاد ډول د صفر نقطه د سرچیني د نقطي په توګه ټاکلي شو، کله چي پوتنشیل صفر نیسو. البته په هغه نقطو کي چې د $q$ له چارج څخه په بي نهایت فاصله کي قرار لري نو پوتنشیل عبارت دی له:

$$V = \frac{U}{q_0} \qquad (4-12)$$

دډيروچارجونو په يومعلق ترتيب کي ، پوتنشيل مثبت ، منفي اوحتي صفرکيداې شي.
پوتنشيل په هغه نقطه کي چي مثبت چارج ته نږدي واقع وي مثبت دي که چيري مونږمثبت ازمايښتي چارج ته ديوي نامحدودي فاصلي څخه دهغي نقطي په لور حرکت ورکړونودغه چارج به له يو داسي ځاي څخه حرکت کړي وي چي هلته به $V = 0$ ویاو یو داسې ځاي ته به رسېدلي وي چي هلته به $V > 0$ وي، نو په دې ډول $\Delta V > 0$ وي. د (۴-۹معادلی په نظر کې نیولو سره) $\Delta U > 0$ وي، نو دا مونږ ته راښايي چې برقي قوې په ازمايښتي چارج باندې منفي کار تر سره کړي دي همدارنګه که چېرې پوتنشيل د منفي چارج سره په نږدې ټکي کې وکتل شي نو منفي به وي، دلته برقي قوه يو مثبت کار تر سره کوي. کله چي دغه برقي قوه يو مثبت چارج ته د بي نهايت فاصلي څخه د دغي نقطي په لور حرکت ورکوي که چيري په کومه نقطه کي پوتنشيل صفروي نو دلته برقي قوه کوم خاص کار نه اجرا کوي، ترڅوچي يو ازمايښتي چارج ته له بي نهايت فاصلي څخه د دغي نقطي په لور حرکت ورکړي. که څه هم کيداې شي چي ازمايښتي چارج د دفع يا د جذب د قوي په واسطه له ځينو نقطو څخه تير شي، که چيري په يوه نقطه کي پوتنشيل صفر وي نو دا معني نلري چي په همغه نقطه کي به برقي قوه صفر وي.

۴-۹معادلي په نظر کي نيولو سره د S.I په سيتسم کي د پوتنشيل واحد $(\frac{Joul}{Colmb})$ راځي چي دغه نسبت په $Volt$ باندي ښودل کيږي چي د $V$ په توري سره هم په لنډ ډول ښودلکيږي يعني:

$$1\ \text{Volt} = 1\ \text{joul/coulomb} \qquad (4-13)$$

په عمومي ډول سره په يوه نقطه کی د پوتنشيل لپاره دولتيج $Voltage$ کليمه هم استعماليږي او د پوتنشيل توپير پرځاي مونږ اکثره وخت د ولتيج توپير عبارت استعمالوو.

که چيري مونږ دولټ متر دوه سرونه د دغه دؤو نقطو ترمنځ په برقی دوره کي وصل کړو نو مونږ کولي شو چي د دغو دؤو نقطو ترمنځ د ولټيج توپير يا د پوتنشيل توپير اندازه

کړو البته د ولټ په حساب مونږ مخکي په دې بحث وکړ چې برقي قوه محافظه کاره ده نو له دې امله دپوتانشیال دانرژي توپیر په وخت کې چې یو ازمایښتي چارج د دوه ټکو ترمنځ حرکت کوي یوازې د دغه دوه نقطو په موقعیت پوري ارتباط لري نه په هغه مسیر پورې چې دغه چارج پري له یوې نقطي څخه بلي نقطي ته حرکت کړي دي، ۴-۹معادله هم دا په ګوته کوي چې د پوتنشیل توپیر د مسیر څخه مستقل دي همدارنګه د پوتنشیل توپیرد دوه ټکو ترمنځ په یوه برقي ساحه کي د هغه مسیرڅخه چې ازمایښتي چارج دحرکت پرمهال له یو نقطې څخه بلې نقطې ته وربانديږ ځي (تلل) کوي مستقل دی.د هر ډول اختیاري پونشیل توپیر $\Delta V$ لپاره چي د چارجونو ترتیب په هر ډول سره وي مونږ کولي شو چي۴-۹ معادله داسي ولیکو:

$$\Delta U = q.\Delta V \qquad (4-14)$$

پورتنۍ معادله رانښایي، چې هر $q$ چارج چې د دؤو نقطو ترمنځ دحرکت په حال کی وي، که دهغه دپوتانشیال توپیر $\Delta V$ وي نو په سیستم کې د $\Delta U$ په اندازه پوتانشیال انرژی تغیر منځ ته راځی. که چیری پوتانشیل توپیر$\Delta V$ په یوه برخه کی د نورو چارجونو په واسطه برابریږی نو د $q$ چارج حرکت دغه دپوتنشیل توپیرته تغیر نشې ورکولی. که چېرته ۴-۱۳ معادله په پام کي ونیوله شي یعني که چیري $\Delta V$ په ولټ او چارج په کولمب سره وښودل شي نو د $\Delta U$ لپاره واحد ژول په لاس راځي.

د ۱۴-۴ معادلې څخه ښکاري چې الکترون ولت($eV$) چې مخکې مونږ دانرژي دواحد په توګه لوستلی دی، نو کولای شو چې هغه دپوتانشیال یا د پوتانشیال توپیر له تعریف څخه تعریف کړو. که چېرې ولتیج $\Delta V$ په ولت سره او $q$ یا چارج د چارج په لومړنی واحد الکترون سره وښودل شي نو د $\Delta U$ لپاره واحد الکترون ولت ($eV$) په لاس راځي.

د مثال په ډول که چیري یو سیستم ولرو چي په هغه کي د کاربن اتوم چي دهغه له هستي څخه شپږ واړه پروتونونه ایستل شوي دي $q = +6\ e$ او $\Delta V = +20\ KV$ پوتنشیل انرژی توپیر سره حرکت ولري، نو د پوتنشیل د انرژی تغیرئی په لاندې ډول محاسبه کولي شو:

$$\Delta U = q\,\Delta V = (+6\,e)(+20\,kV) = +120\,KeV$$

د $eV$ ( الکترون ولټ) په واسطه دا ډول محاسبات هغه وخت قناعت بخښونکي او مهم وي چې کله مونږ د اتومونو یا هستو سره مخامخ کیږو په کوم کې چې چارج د $e$ الکترون په واسطه په اساني سره محاسبه کیداي شي په یاد ولري چې پوتنشیل توپیرونه مهم اساسات دي او دا چې ۴-۱۲معادله د سرچیني په نقطه کې دصفر په اختیاري قیمت پوري ارتباط لري(په نامحدوده فاصله) دغه د سرچیني پوتنشیل د نورو قیمتونو په شان هم ټاکل کیداي شي مثلا $100\,V$ همدارنگه کومه بله نقطه هم د سرچیني د نقطي په حیث ټاکل کیداي شي، په زیاتره ځایو کې ځمکه د پوتنشیل د منبع په حیث انتخابیږي او قیمت یې هم صفر په نظر کې نیول کیږي د سرچیني دموقعیت او دپوتانشیال توپیر قیمت دهوسایي په خاطر انتخابیږي.دخپلي خوښي په نورو ځایو کې کیداي شي همدغه مقدار هر یو پوتنشیل ته تغیر ورکړي،خوددوه نقطو ترمنځ د پوتنشیل توپیر ته تغیر نه شي ورکولي.

**۴-۴نمونوي مثال**: که چیري دالفا ($\propto$) زره چې چارج یې $q = 2e$ په یو هستوي تعجیل سره د ترمینل څخه چې پوتنشیل یې $V_a = +6.5 \times 10^6\,V$ دي یو بل ترمینل ته چې د پوتنشیل توپیر یې $V_b = 0$ دي نو:

$(a)$ : تاسو په دغه سیستم کې د پوتنشیل انرژي د تغیر مقدار معلوم کړي؟

$(b)$ : فرض کړی که چیري ترمینالونه او دهغوي چارجونه حرکت ونه کړي او هیڅ کوم بهرنی قوه په سیستم باندي عمل ونه کړي، نو تاسو د دغه ذري د حرکي انرژي تغیر پیداکړی؟

**حـــل**:$(a)$ : له ۴-۱۴ معادلي څخه مونږ لرو چې:

$$\Delta U = U_b - U_a = q(V_b - V_a)$$
$$= (+2)(1.6 \times 10^{-19}\,C)(0 - 6.5 \times 10^6\,V)$$
$$= -2.1 \times 10^{-12}\,J.$$

($b$) : که چیري کومه بهرني قوه په سیتم باندي عمل ونه کړي نو د سیستم میخانیکي انرژي $E = U + K$ باید ثابته پاتي شي خرنګه چي $\Delta E = \Delta U + \Delta K = 0$ نو له دي وجي:

$$\Delta K = -\Delta U = +2.1 \times 10^{-12}\ \mathrm{J}$$

دالفا ذره $2.1 \times 10^{-12}\ \mathrm{J}$ حرکي انرژي جذبوي، په همدي ډول یوه ذره چي د ځمکي د جاذبي میدان ته رالویږي نو حرکي انرژي تر لاسه کوي د نتیجي د ساده والي لپاره تاسو کولي شي چي دغه سوال کي انرژي د $eV$ الکترون ولټ په واحد سره هم اندازه کړی.

**۴-۴له ساحي څخه د پوتنشیل محاسبه:**

تر اوسه پوري مونږ برقي چارجونه او دهغوي یو پر بل باندي متقابل تاثیر د څلور بیلابیلو ځانګړتیاؤو په نظر کي نیولو سره مشخص کړل یعني برقي قوه ، برقي ساحه ،پوتنشیل توپیر برقي پوتنشیل انرژي چی د برقي پوتنشیل له مخي په ۴-۱ جدول کي دغه څلور ځانګړتیاوي ښودل شوي دي له دي څلورو ځانګړتیاو څخه دوه یعني برقي قوه او برقي ساحه وکتوري دي او دوه نور یي یعني پوتنشیل انرژي او پوتنشیل توپیر سکالري دي .له دغو څخه دوه ځانګړتیاوي یعني قوه او پوتنشیل انرژي د دوه ذر و ترمنځ متقابل عمل، مشخص کوي او پاتي دوه نوري ځانګړني یعني برقي ساحه او پوتنشیل په یوه نقطه کي په یوه ساحه باندي دیو واحد چارج او یا د چارجونو د یوي مجموعي تاثیر ښایي. په جدول کي دوه طرفه تیر یا غشي ښایي چي څنګ په څنګ مقدارونه یو له بل څخه محاسبه کیداي شي. د مثال په ډول:

د برقي ساحي شدت یعني $\vec{E}$ د قوي $\vec{F}$ له جنسه۳-۴ معادله، پوتانشیال انرژي $U$ دقوې $\vec{F}$ له جسنه ۴-۴ او پوتانشیال $V$ دپوتانشیال انرژي $U$ له جنسه ۴-۱۲معادله. اوس مونږ څلورمه رابطه یعنې دپوتانشیال ∝ او د برقي ساحي د شدت $E$ ترمنځ رابطه مطالعه کوو.

د پوتنشل او د برقي ساحي شدت یعني $v$ او $\vec{E}$ ترمنځ اړیکه په ۴-۱۱ معادلي کي د پوتنشیل له تعریف څخه $\Delta V = {}^{-W_{ab}}/_{q_0}$ داسي لاسته راوړو، فرض کړی چي مونږ د

$q_o$ ازماینښتي چارج ته په یوه برقي ساحه کې د $a$ له نقطې څخه د $b$ نقطې په لور حرکت ورکوو که دبرقي ساحې شدت $\vec{E}$وي غواړو هغه کار چې د برقي قوې $\vec{F} = q_0\,\vec{E}$ په واسطه سرته رسیدلی دی محاسبه کړو نو لرو چې:

$$\Delta V = \frac{-W_{ab}}{q_0} = \frac{-\int_a^b \vec{F}\cdot d\vec{s}}{q_0} = \frac{-\int_a^b q_0\vec{E}\cdot d\vec{s}}{q_0}$$

یا

$$\Delta V = V_b - V_a = -\int_a^b \vec{E}\,.\,\mathrm{d}\vec{s} \qquad (4-15)$$

که چیرې برقي ساحه د $d\vec{s}$ په جهت کې وي، نو بیا په **۴-۱۵** معادله کې انتیگرال مثبت دی نو بیا به پوتنشیل توپیر منفي لاسته راځي نو $V_b < V_a$ وي، نو دلته برقي ساحه مثبت چارج شوي زرې ته دلوړ پوتنشیل له نقطې څخه ټیټ پوتنشل د نقطې په لور حرکت ورکوي او منفي چارج شوي ذرې ته د پورتني شکل په مخالف جهت حرکت ورکوي

**۴-۱**جدول:دبرقی چارج خواص.

| سکالري څیزونه | وکتوري څیزونه | |
|---|---|---|
| پوتنشیل انرژي $U$ | قوه $\vec{F}$ | د دو چارجونو متقابل عمل |
| پوتنشیل $V$ | برقي ساحه$\vec{E}$ | د فضاء په یوه نقطه کې دیوه او یا څو چارجونو تاثیر |

د **۴-۱۵** معادلې انتي گرال ته خطي *line Intergral* انتي گرال هم وایي.



**۴-۵**شکل: د $a$ او $b$ نقطو ترمينځ د پوتنشيل توپير کولای شو چې د $ab$ په مسير $b$ کی $\vec{E}$ وکتور د کرښې دانتی ګرال څخه محاسبه کيدا ی شی.

د ۴-۵ دکرښې انتيګرال محاسبه واضح کوي.فرضا مونږ له $a$ څخه د $b$ نقطي ته منحني حرکت په يو مناسب مسير تر سره کوو ، موږ پوهيږو چې د پوتنشل توپير د مسير څخه يو مستقل مقدار دي نو د ۴-۱۵ له معادلي څخه مونږ ته عينې نتيجه په لاس راځي او کوم توپير په کې نه راځي که هر قسم مسير مونږ انتخاب کړي وي.

په عمومي ډول د $\vec{E}$ يا د برقي ساحي جهت او مقدار امکان لري چې د مسير په اوږدو کي له يوي نقطي څخه بلي نقطي ته تغير وخوري، د مسير په هره نقطه کې موږ کولي شو چي د برقي ساحي د شدت $\vec{E}$ او د مسير د اوارږدوالي $d\vec{s}$ ترمنځ نقطه کې يي حاصل ضرب پيدا کړو ( او مونږ دغه نقطه يې د ضرب حاصلو نه، ټول مسير ته اضافه کوو.

لکه څنګه چي مونږ په ۴-۳برخه کې څه تر سره کړل، نو که چېرې مونږ وغواړو چې په يوه ټاکلي نقطه کې پوتانشيال پيدا کړو نو د ځينو انتخاب شوو پوتانشيالو په نظر کې نيولو سره په غير دهغه پوتانشيال څخه چې ۱۵-۴ معادله کې ئی مونږ لرو پيدا کړو ، که چيري مونږ د سرچيني نقطه په بي نهايت کي انتخاب کړو او $V = 0$ تعريف کړو د منبع يا سرچيني په ډول، نو ۱۵-۴معادله د $p$ په نقطه کي پونسيال په لاندي ډول راکوي:

$$V_P = -\int_{\infty}^{P} \vec{E}.d\vec{s} \qquad (4-16)$$

**۴-۵مثـــال: ۴-۷** شکل ته وګورئ د $q_0$ یو ازمایښتي چارج د $\vec{E}$ په یو نواخت برقي ساحه کي د $a$ له نقطي څخه د $b$ نقطي ته د $acb$ په مسیر حرکت کوي نو تاسې د $a$ او $b$ تر منځ دپوتانشیال تو پیر پیدا کړئ؟

**حـــل:** د $ac$ د مسیر لپاره مونږ د **۱۵-۴** معادلې څخه لرو:

$$V_c - V_a = -\int_a^c \vec{E} \cdot d\vec{s} = -\int_a^c E\, ds \cos(\pi - \theta)$$
$$= E \cos\theta \int_a^c ds.$$

دا انتګرال د $ac$ د کرښي اوږدوالي دي چي $\frac{L}{\cos\theta}$ سره مساوي دی نو په دي ډول مونږ لرو:

$$V_c - V_a = E\cos\theta \frac{L}{\cos\theta} = EL.$$

$C$ او $b$ نقطه عین پوتنشیل لري ځکه د دغو دؤو نقطو ترمنځ د چارج د انتقال په جریان کي هیڅ کوم کار نه تر سره کیږي. د $cb$ په مسیر کي د ټولو نقطو لپاره د $\vec{E}$ او $d\vec{s}$ مقدار په قایمو زاویو کي موندلي شو نو موږ لرو:

$$V_b - V_a = (V_b - V_c) + (V_c - V_a) = 0 + EL = EL$$

دغه هم عیني نتیجه ده چي کومه د $a$ او $b$ نقطو ترمنځ د مستقیم مسیر لپاره را وتلې وه، نو نتیجه یې دا ده چې دپوتانشیال توپیر د دوه نقطو ترمنځ دمسیر څخه یو مستقل کمیت دی.



**۴-۲شکل**: د **۴-۵** مثال شکل د $q_0$ ازماینښتي چارج د $acb$ په میر باندي د $\vec{E}$ په یوه متجانسه برقي ساحه کي د حرکت په حال کي دي.

**۴-۵ د نقطوي چارجونو له امله پوتنشیل**:

په دغه برخه کي موږ هغه څه چي په تیرو برخو کې مو ولوستل استعمالوو. ترڅو چي د نقطوي چارجونو لپاره په بیلابیلو نقطو کي پوتشنیل لاسته راوړو په راتلونکي برخه کي مونږ په هغه پوتشیل بحث کوو چي د جاري چارجونو د نشر له امله منځ ته راځي. لومړي مونږ هغه پوتنشیل په نظر کي نیسو چي د $q$ مثبت نقطوی چارج له امله منځ ته راځي، فرض کړی چې د $q_0$ یو ازماینښتي نقطوي چارج د $q$ په مجاورت کي د $a$ له نقطي څخه د $b$ نقطي ته حرکت کوي مونږ کوشش کوو چي د ازماینښتي چارج د استعمال سره د $a$ او $b$ نقطو ترمنځ د $q$ له امله راپیدا شوي دي، ددې لپاره مونږ کولای شو. ۱-۴هندسي شکل وکاره وه، داسې چه: د $q_1$ او $q_2$ پر ځای $q_0$ وضع کوو مونږ ددي حالت لپاره د مخکې نه دپوتانشیال دانرژي توپیر $\Delta U$ موندلی دی، کومه چې په **۵-۴** معادله کې د دوه نقطوي چارجونو لپاره راکړل شوي دي، که چېرې **۵-۴** معادله د $q_0$ چارجونو لپاره او **۴-۹**معادله د پوتنشیل توپیر لپاره وکاروو نو مونږ لرو چي:

$$V_b - V_a = \frac{U_b - U_a}{q_o} = \frac{q}{4\pi\epsilon_0}(\frac{1}{r_b} - \frac{1}{r_a}). \qquad (4-17)$$

لکه چي مونږ په ۴-۲برخه کي په دي بحث وکړ، ۴-۵ معادله دا څرګنده وي چي که د $a$ او $b$ نقطي په يوه کرښه باندي پرتي وی يا نه وي، پورتنۍ معادله د تطبيق وړ ده او ۴-۱۷معادله هم د پوتانشيال توپير دحاصلولو لپاره د تطبيق وړده، د $a$ او $b$ هرو دوه نقطو تر منځ دپوتانشيال د توپير پرته مونږ کولای شو چې د $q$ نقطې په مجاورت کې په يوه ځانګړي نقطه کې هم پيدا کولی شو، ۴-۷ معادله مونږ ته د دوه نقطوي چارجونو د متقابل عمل له امله را پيدا شوي پوتنشيل انرژي $U$ په لاس راکوي، په دي حالت کي د سرچيني نقطه په بي نهايت کي ټاکل کيږي او دهغي لپاره $U = 0$ تعريف کوو او مونږ کولي شو چي ۴-۷ معادله چي د $q$ او $q_0$ چارجونو لپاره ليکل شوي ده استعمال کړو او د ۴-۱۷معادلي په استعمال سره مونږ کولي شو چي په يوه نقطه کي پوتشنيل پيدا کړو:

$$V = \frac{\mathrm{U}}{\mathrm{q}_0} = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{\mathrm{q}}{\mathrm{r}}, \qquad (4-18)$$

پورته معادله مونږ ته د $q$ له چارج څخه د $r$ په فاصله په هره نقطه کې پوتنشل په ګوته کوي، بايد يادونه وکړو چي ۴-۱۸ معادله کيداي شي چي په مستقيم ډول د ۴-۱۷ معادلې څخه هم په لاس راشي داسې چې د سرچيني شرايط يعني $V_a = 0$ او $r_a = \propto$ په کي وضع کوو. ۴-۱۸ معادله څرګنده وي چي د يو نقطوي مثبت چارج پونسيال په لويه فاصله کي صفر دی.او هر څومره چې مونږ چارج ته نږدې کيږو يعنې $r \to o$ نو دپوتانشيال مقدار مثبت زياتوالي طرف ته ځي که چيري $q$ چارج منفي وي نو چارج ته په نږدې کيدو سره د پوتنشيل مقدار منفي زياتوالي طرف ته ورځي، په ياد ولرئ چي دوروستۍ نتيجې په محاسبه کي، د $q_0$ ازماينښتي چارج په علامه پوري دومره اړ نه لري ۴-۷شکل، د مثبت او منفي نقطوي چارجونو څخه د يو بل چارج د فاصلي په نظر کي نيولو سره پوتنشيل مقدار راښايي يعني د فاصلي په زياتوالي اوکموالي سره د پوتشيل د تغير څخه بحث کوي.۴-۷ شکل پوتنشيل په يو بعد کی ( انتخاب شوي د $x$ په محور ) د پوتنشيل توپير $a$ د مثبت نقطوي چارج لپاره او $b$ دمنفي نقطوي چارج دزياتوالي لپاره کله چې د لايتناهي څخه صفر ته راوړل شي. د يو مثبت ځانګړي نقطوي

چارج لپاره پوتنشل هر چیرته مثبت او د یو منفی ځانګړي نقطوی چارج لپاره پوتنشیل هر چیرته منفی وي.

۴-۲ نمونوي مثال: د مثبت نقطوي چارج مقدار به څومره وي؟ چي له چارج څخه $15cm$ فاصله ولري او د پوتنشیل توپیرئی $+120\ V$ وي، فرض کړي چي په بې نهایت کې $V = 0$ وي.

**حــل:** د $q$ لپاره ۴-۱۸ معادله حل کوو:

$$q = 4\pi\epsilon_0 rV = (4\pi)(8.5 \times 10^{-12}\ C^2/N \cdot m^2)(0.15\ m)(120\ V)$$
$$= 2.0 \times 10^{-9}\ C = 2.0\ nC.$$

دغه چارج د هغه چارجونو سره دمقایسي وړ دي چي د اصطکاک په واسطه تولیدیږي لکه دبالون $Balloon$ سولول.

۴-۷ نمونوي مثال: د طلا د هستي په سطحه کي برقي پوتنشیل پیدا کړی. که چیري یي شعاع یې $7{,}0 \times 10^{-15}m$ او اتومي نمبر یي $Z = 79$ وي؟

**حــل:** دلته په هسته منظم کروي شکل فرض کیږي، کوم چي دخارجي نقطو لپاره دیو برقي نقطوی چارج په ډول عمل کوي نو په دي ډول مونږ۱۸-۴معادله استعمالولي شو چي دلته $q = +79e$ دي نو:

$$V = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{q}{r} = \frac{(9.0 \times 10^9\ N \cdot m^2/C^2)(79)(1.6 \times 10^{-19}\ C)}{7.0 \times 10^{-15}\ m}$$
$$= 1.6 \times 10^7\ V.$$

دغه لوي مثبت پوتنشیل توپیر د طلا د اتوم څخه بهر هیڅ تاثیر نه لري چي دغه پوتنشیل توپیر دمساوي منفي پوتنشیل له خوا چي د طلا د 79 اتومي الکترونو په واسطه له منځه ځي.

د څو نقطوي چارجونو دیوی مجموعی له امله پوتانشیال.

فرض کړی که چیري مونږ $n$ شمیر نقطوي چارجونه د $q_1, q_2 \ldots\ldots q_n$ ولرو، چي په مختلفو ټاکلو نقطوو کي قرار ولري، 8-۴ شکل مونږ غواړو چي د $p$ په یوه اختیاري

نقطه کي د دغه چارجونو له امله را پیدا شوي پوتنشیل پیدا کړو د دي پوتنشیل د محاسبي طرز العمل داسي دي چي لومړي د $p$ په نقطه کي دهر چارج پوتنشیل داسي پیدا کوو داسي فرض کړی، چي دغه نور چارجونه په هغه وخت کي موجود نه وی. بیا دغه ټول پوتنشیلونه یو له بل سره جمع کوو نو مجموعي پوتنشیل په لاس راکوي یعني:

$$V = V_1 + V_2 + \cdots + V_N$$
$$= \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{q_1}{r_1} + \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{q_2}{r_2} + \cdots + \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{q_N}{r_N}, \quad (4-19)$$

چي په لنډ ډول یې داسي هم لیکلی شو:

$$V = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\sum_{n=1}^{N}\frac{q_n}{r_n} \qquad (4-20)$$

په پورتني معادله کي $q_n$ د $n$ ام چارج مقدار او $r_n$ د $P$ له نقطي څخه د $n$ ام چارج فاصله ده، په کوم ځاي کي چي مونږغواړو پوتنشل پیدا کړو. مونږ کولي شو چي ۴-۲۰معادله د مثال په ډول دهغه کار د موندلو لپاره وکاروْ، چي د بي نهایت څخه د $p$ نقطي ته د $q_0$ د ازمایښتي چارج د انتقال په وخت کي تر سره کیږي، ۴-۸ شکل، د دي محاسبې لپاره مونږ ګورو چي د پوتنشیل استعمال چي یو سکالري کمیت دي نظر قوي ته چي یو وکتوري کمیت دي ډیر ګټور دي.

په $p$ نقطه کي په ازمایښتي چارج باندي د خالصي قوي دمقدار د پیدا کولو لپاره ضرور ده چې وکتوري مجموعه پیدا کړو. د پوتنشیل سکالري محاسبه ډیره اسانه او ساده ده.

په دي محاسبه کي مونږ د پوتنشیل توپیر دهر چارج څخه پیدا کوو، داسي لکه نور چارجونه چي هلته موجود نه وي په دې هکله په لومړی څپرکی کې بحث شوي دی.




**۴-۸ شکل: څو نقطوي چارجونه.**

**۴-۸نمونوي مثال: ۴-۹a شکل ته نظر واچوئ تاسو د pپه نقطه کې چې د نقطوي چارجونو د مربع په مرکز کې واقع د پوتنشیل تو پیر پیدا کړئ، فرض کړئ چې د مربع دي قطر $d = 1.3m$ او چارجونه یې په لاندې ډول دي:**

$$q_1 = +12\,\text{nC}, \quad q_3 = +31\,\text{nC},$$
$$q_2 = -24\,\text{nC}, \quad q_4 = +17\,\text{nC}.$$

**حـــل: ۴-۲۰څخه مونږ لرو:**

$$V = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\sum_n \frac{q_n}{r_n} = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{q_1 + q_2 + q_3 + q_4}{R}.$$

دلته $R$ د مربع د مرکز څخه د هر چارج فاصله ده چې $d/\sqrt{2}$ او $0.919\ m$ سره مساوي ده نو مونږ لرو:

$$V = \frac{(8.99 \times 10^9\ \text{N}\cdot\text{m}^2/\text{C}^2)(12 - 24 + 31 + 17) \times 10^{-9}\ \text{C}}{0.919\ \text{m}}$$
$$= 3.5 \times 10^2\ \text{V}.$$

په ۴-۹ $a$ شکل کې له درې مثبتو چارجونو څخه د هر چارج څخه په نږدې فاصله کې پوتنشیل ډېر لوې مثبت قیمتونه اخیستلی شي او دیو منفي چارج سره په نږدې فاصله کې لوې منفي قیمتونه اخیستلي شي.دلته کیدای شي چې د مربع په سرحدونو کې نوري

نقطي هم وجود ولري چي د $P$ د نقطي غوندي عين پوتنشيل ولري په $b$ ۴-۹ شکل کې د ډاس کرښه په مستوي کي هغه نقطي سره يو ځاي کوي چي د پوتنشيل عين قيمت لري وروسته به موږ په ۴-۸ برخه د هم پوتنشيل سطحو په باره کي بحث وکړو کوم چي موږ ته د يو چارج بيلابيل پوتنشيلونه ښکاره کوي.




**۴-۹شکل:** ($a$)څلور چارجونه د مربع په کونجونو کي واقع دي ($b$) منځني کرښه هغه نقطي سره يو ځاي کوی چي د $P$ نقطي غوندي پوتنشيل لري چي د مربع په مرکز کي واقع ده يعني **350 V**

دبريښنايي ډايپول په واسطه (***Potential due to an electric dipole***):
پوتنشيل

د بريښنايي ډايپول له امله را پيدا شوي پوتنشيل د ۴-۲۰ معادلي څخه په اسانۍ سره محاسبه کيداي شي په ۴-۱۰ شکل کي هندسي محاسبه ښودل شوي ده، موږ دلته د هم اهنګ سيستم مبدا د ډايپول په مرکز کي انتخاب وؤ او د $P$ په نقطه کي برقي پوتنشيل پيدا کوو، کوم چي د دايپول له مرکز څخه د $r$ په فاصله کي واقع دی او د دايپول محور د $Z$ له محورسره د $\theta$ زاويه جوړه وي د $P$ له نقطي څخه د مثبت او منفي چارجونو فاصلي په ترتيب سره $r_+$ او $r_-$ دي د ۴-۲۰ معادلي په استعمال سره موږ پوتنشيل په لاندي ډول پيدا کوو:

$$V = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\left(\frac{q}{r_+} + \frac{-q}{r_-}\right) \qquad (4-21)$$

پورتنۍ معادله د دایپول پوتنشیل دقیقه معادله ده، مګر په ډیرو نورو حالاتو کې مثلا په اتومي یا مالیکولي دایپولونو کې موږ ډیر ګټوري اړیکي پري پیدا کولي شو.کله چي زموږ د کتني $p$ نقطه د دایپول څخه ډیره لري واقع وي د $d$ فاصلې په نسبت چي د چارجونو ترمنځ ده په دي حالت کي $r \gg d$ وي نو:

$$r_- - r_+ \approx d\cos\theta \quad \text{and} \quad r_-r_+ \approx r^2,$$

او په۴-۲۱ معادله کي د دغه قیمت په وضع کولو سره مونږ لرو چي:

$$V = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{qd\cos\theta}{r^2} = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{p\cos\theta}{r^2}, \qquad (4-22)$$

په پورتنۍ رابطه کي $p = q.d$ موږ ۲-۸ معادله د دایپول مومنټ لپاره استعمال کړي وه، ۴-۲۲ معادله موږ ته د فضا په هره نقطه کي د دایپول له امله پوتنشیل په ګوته کوي، دلته دایپول د $Z$ په محور د دوران لپاره استوانوي توازن Cylinderical symmerty لري نو له دي وجي ۴-۲۲ معادله د هغو نقطو لپاره صدق کوي کومي چی د ۴-۱۰ شکل د دیاګرام په مستوي کي واقع نه وي



۴-۱۰شکل: د $p$ په نقطه کې دبرېښنايي ډايپول له امله د راپيدا شوي پوتانشيال هندسي محاسبه).

دا مو باید په یاد وي چي دایپول د پوتنشیل تغیرات په$^1/_{r^2}$ په تغیراتو پوري اړه لري په داسي حال کي چي یو ځانګړی(منفرد ) چارج (Single Charge) د پوتنشیل تغیرات $^1/_r$ په تغیراتو پوري اړه لري۴-۱۰ شکل، هغه نقطي چي د$xy$ په مستوي کي واقع دي

کله چي په ۴-۲۲ معادله کی د $\theta = 90^{\circ}$ لپاره قیمت وضع شي نو $v = 0$ لاس ته راځي، دا خبره دا معني لري چي کله مونږ د بي نهایت څخه یو ازمایښتي چارج ته دهغي نقطي په لور حرکت ورکوو چي د $xy$ په مستوي کي واقع وي نو ډایپول دلته ازمایښتې چارج باندې کوم خاص کار نه تر سره کوي، کله چي راکړل شوي وي نو د $z$ په مثبت محور باندې، لکه$\theta = 0^{\circ}$ وي نو پوتنشیل مثبت قیمت اخلي او کله چي $\theta = 90^{\circ}$ وي نو پوتانشیال د صفر قیمت او کله چې $\theta = 180^{\circ}$وي نو پوتانشیال منفي قیمت اخلي البته $\theta = 0$ د $z$ په مثبت محور باندې$\theta = 90^{\circ}$ دی $xy$ په مستوي کي، او د $\theta = 180^{\circ}$ د $z$ په منفي محور باندي دی. باید په یاد ولري که څه هم د $xy$ په مستوي کي $V = 0$ دي نو دا خبره سمه نده چي باید د $xy$ په مستوي کي $\vec{E} = 0$وي، په عمومي ډول سره مونږ نه شو فرض کولي چي که چیري $V = 0$وی، نو باید حتمادی $\vec{E} = 0$وي، او یا دا چي کله $\vec{E} = 0$وي، نو باید $V = 0$وي.

**۴-۹نمونوي مثال:** ۴-۱۱ شکل وګوري یو برښنایي څــــلور قطبي Electric qouadnuple کوم چی ددوه برښنایي ډایپولونه (قطبونه) لري په داسي ډول سره ترتیب شوي دي چي تقریبا په مکمل شکل یو د بل برښنایي تاثیرات په لیري نقطو کي له منځه وړي تاسو د دغه Qouadrupole په محور باندي د $V(r)$ قیمت محاسبه کړي؟

**حــــل:** ۴-۲۰ معادله د ۴-۱۱ شکل لپاره کارؤو:

$$V = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\left(\frac{q}{r-d} + \frac{-2q}{r} + \frac{q}{r+d}\right)$$

$$= \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{2qd^2}{r(r^2-d^2)} = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{2qd^2}{r^3(1-d^2/r^2)}.$$

ځرنګه چې د $r \gg d$ دی نو $d^2/_{r^2}$ د قیمت څخه صرف نظر کوو او په $d^2/_{r^2}$ سره وضع کوو نو پدي حالت کي پوتنشیل مساوي دي په:

$$V = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{Q}{r^2} \qquad (4-23)$$

په دي معادله کي د $Q = 2qd^2$ د څلور قطبي بربښنايي مومنټ د۴-۱۱ شکل د چارج د مجموعي لپاره دي،باید په پام کي وساتي چي د نقطوي چارج پوتنشيل تغيرات د $1/_{r}$ په تغيراتو پوري اړه لري د ډايپول پوتنشيل تغيرات په $1/_{r^2}$ په تغيراتو پوري او د څلور قطبي پوتنشيل تغيرات د $1/_{r^3}$ په تغيراتو پورې اړه لري، باید دا مو هم په یاد وي چې ډايپول دوه مساوي او مخالف چارجونه دي. کوم چي په فضا کي په ليرو نقطو کي يو د بل بربښنايي تاثيرات نه خنثي کوي او څلور قطبي دوه مساوي او مخالف قطبونه دي چي د فضا په ليري نقطو کي يو د بل بربښنايي تاثيرات نه خنثي کوي مونږ کولي شو چي دبربښنايي چارجونو يوه مغلقه مجموعه جوړه کړو دغه مرحله ډيره مفيده واقع کيدا شي ځکه چي د هر خپريدونکي چارج پوتنشيل د $1/_{r}$ زياتيدونکي قوي دشرايطو د سلسلي په ډول بيانيداي شي.د $1/_{r}$ برخه دمونوفول *Monopole* د شرط په نوم يادیږي چي د چارج په خالصې خپريدنې پوري اړه لري او نتيجه كيدونكي شرايط $1/_{r^2}$ ډايپول شرط، $1/_{r^3}$ څلور قطبي او په همدي ډول دغه شرايط بيانوي چي يو چارج ځنګه خپريږي دغه ډول تحليل په څو قطبي کي د انبساط *Multiple Expansion* په نوم يادیږي.



**۴-۱۱ شکل: ۴-۹** نمونې پوښتنې غوندی یو برښنایي څلور قطبي چي د دوه برښنایي ډایپولو درلودونکي دی را ښایي.

**۴-۲** د متمادی چارج د توزیع برقی پوتنشیل:

په **۱-۵** برخه کي مونږ دهغه قوي دمحاسبي طرز العمل زده کړ چي د جاري چارج د خپریدني له امله په نقطوي چارج باندي عمل کوي په همدي ډول مونږ کولي شو چي هغه پوتنشیل انرژي تر لاسه کړو چي د چارج د جاري خپریدني او نقطوي چارج باندي، دمتقابل عمل په اثر پیدا کیږي د جاري چارج د خپریدني د انرژي په محاسبه کولو سره یعني د جاري خپریدني د انرژي په محاسبه کولو سره مونږه دمتقابل عمل انرژي پیدا کولي شو.په دغه برخه کي مونږ د دري خپریدونکو چارجونو پوتنشیل محاسبه کوو د چارج د جاري خپریدني څخه د راپیدا کیدونکي پوتنشیل د محاسبه کولو طرزالعمل همغسي دي کوم چي مونږ د قوي لپاره یا د برقي ساحي لپاره، کوم چي مونږ په **۲-۴** برخه کي ولوسته، خو دلته یوه مهمه استثناء وجود لري هغه دا چي پوتنشیل یو سکالري کمیت دي نو پدي ډول به مونږ د هغه دمشکلاتو سره نه مخامخ کیږو چي په **۱-۵** برخه کي موجودوه کوم چي دقوي ددوه مختلفو جهتونو دعناصرو یعني $d\vec{F}$ او یادبریښنایي ساحي د عناصرو یعني $d\vec{E}$ دچارج دمختلفو عناصرو یعني $dq$ له امله را پیدا شوي ؤو د پوتنشیل دمحاسبي طرزالع مل داسي دي چي جسم د چارج په عناصرو $dq$ باندي ویشو،

مونږ کولي شو چې پوتنشیل $dV$ چې دچارج د عناصر $qd$ له امله رامنځ ته کیږي داسي ولیکو چې ګویا هغه دیو نقطوي چارج په څیر عمل کوي:

$$dV = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{dq}{r}, \qquad (4-24)$$

په پورتني رابطه کي $r$ د $P$ له نقطي څخه د $dq$ فاصله ده نو مونږ لرو چې:

$$V = \int dV = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\int\frac{dq}{r}, \qquad (4-25)$$

کوم چې دا انتیګرال چارج د داخل څخه خارج سطحې ته انتقالوي.

د چارج یو نواخته کرښه:

مونږ کولي شو چې د **۴-۱۲** هندسي شکل دهغه پوتنشیل د محاسبه کولو لپاره استعمال کړو چې د $P$ په نقطه کي د یو مثبت چارج دیو نواخت کرښي په واسطه منځ ته راځي دمیلي څخه د $P$ د نقطي عمودي فاصله په $y$ سره ښودل شوي ده د **۴-۲۴** معادلي په تطبیق سره دچارج دعنصر $dq =$ ■$dz$ (چیرته چې$\lambda$ دچارج خطي کثافت دی) په استعمال سره مونږ لرو:

$$dV = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{dq}{r} = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{\lambda dz}{\sqrt{z^2+y^2}}, \qquad (4-26)$$

د دي معادلي انتیګرال نیسو د $L$ په اوږدوالي، لکه **۴-۲۵** معادلي په څیر باید دي ته مو پام وي چې $y$ دلته ثابته ده نو مونږ لرو:

$$V = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\int_{-l/2}^{+l/2}\frac{\lambda dz}{\sqrt{z^2+y^2}}$$

$$= \frac{\lambda}{4\pi\epsilon_0}[ln(z+\sqrt{z^2}+y^2)]^{+l/2}{}_{-l/2}$$

$$= \frac{\lambda}{4\pi\epsilon_0} ln[\frac{l/2 + \sqrt{\sqrt{l^2/4} + y^2}}{-l/2 + \sqrt{\sqrt{l^2/4} + y^2}}], \qquad (4-27)$$

په وروستۍ نتیجه کي مو $LnA - LnB = Ln(A/B)$ داستعمال څخه په لاس راوړ.مهمه خبره دا ده چي مونږ باید نتیجه وګورو چي ایا معین قیمت لري او کنه؟ څومره چي مونږ دمیلي څخه لیري کیږونو هغومره د پوتنشیل قیمت دصفر طرف ته تقرب کوي او ۴-۲۷ معادله دا ځانګړتیا لري ځکه چي $y \to \infty$ ،بله دا چي مونږ کولي شو وښایو چي هر څومره چي د $y$ فاصله زیاتیږي نو ۴-۲۷ معادله داسي شکل اختیاروي:

$$V = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{\lambda l}{y} = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{q}{y} \qquad (4-28)$$

پورتني معادله دهغه پوتنشیل ساده معادله ده چي د نقطوي چارج څخه د $y$ په اندازه فاصله لري.



۴-۱۲ شکل: مثبت چارج یو نواخت چارج شوی میله ښایي ددې لپاره چې په P نقطه کی پوتانشیال پیدا کړو نو مونږ میله داسی فرض کوو ، چې د چارج ډیری برخی ولری لکه**dq**

دچارج حلقه (کړۍ):

۴-۱۳ شکل د مثبت چارج یو نواخت حلقه تشریح کوي د $P$ په نقطه کي د پوتنشیل سره مرسته په خپل محور باندي دچارج دعنصر $dq = ■ds = ■Rd\emptyset$ څخه عبارت ده له:

$$dV = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{dq}{r} = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{\lambda}{\sqrt{R^2+z^2}}, \qquad (4-29)$$

د ۱-۵ برخي په څیر د حلقي چاپیر د دي معادلي انتګرال نیسو موږ پوهیږو چي $R$ او $z$ دلته دواړه ثابت دي دانتګرال تغیرونکي $\emptyset$ دي کوم چي له صفر څخه تر $2\pi$ پوري تغیر کوي:

$$V = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{\lambda R}{\sqrt{R^2+z^2}}\int_0^{2\pi} d\emptyset = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{2\pi\lambda R}{\sqrt{R^2+z^2}}, \qquad (4-30)$$

باید په یاد ولرو چي کله $z \to 0$ نو پوتنشیل د صفر په طرف کمیږي او دلوي قیمت لپاره $Z$ تقریبا $q/_{4\pi\epsilon_0 z}$ او $q = 2\pi■R$ دي، اودا داسي یوموقعیت دی چی د نقطوی چارج څخه د $z$ په اندازه فاصله لري. ۴-۱۳ شکل یو نواخت چارج شوي حلقه د دي لپاره چي په $P$ نقطه کي پوتنشیل پیدا کړو نو موږ د چارج د ټولو عناصرو لکه $dq$ په شان مجموعي انرژی پیدا کوو.



۴-۱۳ شکل: یو نواخت چارج شوي حلقه ددي لپاره چې په **p** نقطه کې پوتانشیال پیدا کړو، مونږ د چارج دتړلو عناصرو لکه **dq** په شان مجموعي اثر پیدا کوو.

چارج شوي صفحه:

**۴-۱۴** هندسي شکل وګورئ، مونږ کولي شو چي **۴-۳۰** معادله د هغه پوتنشیل لپاره وکارؤو، کوم چي د $P$ په نقطه کي د $w$ په شعاع د حلقي د $dq = \sigma dA$ د چارج او همدارنګه د سطحي د عنصر $dA = 2\pi wdw$ له امله منځ ته راځي:

$$dV = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{\mathrm{dq}}{\sqrt{W^2+z^2}} = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{2\pi\sigma \mathrm{wdw}}{\sqrt{W^2+z^2}}. \quad (4-31)$$

د دي لپاره چي صفحه باندي د ټولو حلقو توزیع ) ($Constribution$ پیدا کړو نو د دي معادلي انتګرال نیسو چي $w$ د $O$ څخه تر $R$ پوري تغیر کوي

$$V = \frac{\sigma}{2\epsilon_0}\int_0^R \frac{\mathrm{wdw}}{\sqrt{W^2+z^2}} = \frac{\sigma}{2\epsilon_0}(\sqrt{R^2+z^2} - |z|). \quad (4-32):$$

**۴-۳۲** معادلي په اخر کي د $\sqrt{z^2}$ د ارزیابي وروسته د **|z|** په شکل لیکل شوي دي، نو له دي امله **۴-۳۲** معادله د هغو نقطو لپاره د تطبیق وړ ده چي د $z$ په محور باندي د صفحې د پاسه واقع دي $z > 0$ اویا د صفحي لاندي واقع دي $z < 0$، او یا هم د صفحي په سطحه باندي واقع وي $z = 0$، او مقدار یي کمیږي. هر څومره چي موږ د $z$ په محور باندي په عین جهت حرکت کوو کله چي $z$ لوییږي موږ کولای شو چي د بینوم د قضیې په اساس مربع ته انکشاف ورکړو چي په **۴-۳۲** معادله کي یي مونږ لرو:

$$\sqrt{R^2+z^2} = |\mathrm{z}|(1+\frac{R^2}{z^2})^{1/2} \sim |\mathrm{z}|(1+\frac{1}{2}\frac{R^2}{z^2}) \quad (4-33)$$

او په **۴-۳۲** معادله کي د دي نتیجي په وضع کولو سره مونږ کولي شو چي د نقطوي چارج د پوتنشیل لپاره معادله لاسته راوړو، د $z$ د ډیرو کوچنیو قیمتونو لپاره د پوتنشیل قیمت عبارت دي له:

$$V = \sigma R/2\epsilon_0 - \sigma|z|/2\epsilon_0 \quad (4-34)$$

$\frac{\sigma R}{2\varepsilon_0}$پوتنشیل هغه وخت ثابت قیمت ته رسیږي چي کله $z \to o$ او په خطي شکل هغه وخت کموالي پیدا کوي کله چي **z** په عین جهت باندي زیاتوالي وکړي، هغه میزان $(rate)$ په کوم کې چي پوتنشیل کموالي پیدا کوي کله چي مونږ د محور په اوږدو کي دحرکت په حال کي یو دصفحي دسایز څخه مستقل دچارج د ورکړل شوي کثافت لپاره په حقیقت کي دغه شرط د هر قسم اوږده همواره یو نواخت چارج شوي لوحي لپاره یو شان دي او فرق نکوي چي سایز او یا شکل یي هر قسم وي دایروي، مربع شکل او داسي نور هر څومره چي مونږ مرکز ته نږدي کیږو او یا هر څومره چي مونږ د څنډو په لور لیري کیږو نو په راتلونکي برخه کي به مونږ دغه حقیقت څخه د پوتنشیل د فرق د نقشي د رسمولو لپاره د هغي څخه ګټه واخلو.



۱۴-۴ شکل: یوه حلقه د **R** په شعاع تر یو نواخت چارج **S** په کثافت سره مینځ ته راوړي دچارج پر **dq** په یو نواخت ډول چارج شوي حلقه ده.

۱۰-۴ مثال: یوه صفحه چي شعاع یي $R = 4{,}8cm$ ده د $q = 2{,}5nC$ په اندازه مجموعي چارج تولیدوي، چي په سطحه کي په یو نواخت ډول خپور شوي دي او په یوه ټاکلي نقطه کي ځوړنده شوي ده (سطحه داسي په نظر کي ونیسۍ چي دعایقې سطحي په ډول عمل کوي) یو الکترون په لومړي سر کي په یوه ټاکلي نقطه کي د $d = 3cm$ په فاصله د صفحي څخه خپل محور په اوږدو کي قرار لري کله چي دغه الکترون خوشي شي نو د

صفحي خوا ته جذبيږي نو تاسو دالکترون هغه سرعت محاسبه کړئ چي دصفحي دمرکز سره د لګيدو په وخت کي يي لري؟

**حـــل:** په صفحي باندي دچارج کثافت عبارت دي له:

$$\sigma = \frac{q}{\pi R^2} = \frac{2.5 \times 10^{-9}\,\text{C}}{\pi(0.048\,\text{m})^2} = 3.45 \times 10^{-7}\,\text{C/m}^2.$$

دپوتنشيل توپير د $z = d$ او $z = 0$ موقيعتونو ترمنځ د **۴-۳۲** معادلي څخه پيدا کولای شو يعني:

$$\begin{aligned}\Delta V &= V(0) - V(d) = \frac{\sigma R}{2\epsilon_0} - \frac{\sigma}{2\epsilon_0}(\sqrt{R^2 + d^2} - d) \\ &= \frac{3.45 \times 10^{-7}\,\text{C/m}^2}{2(8.85 \times 10^{-12}\,\text{C}^2/\text{N}\cdot\text{m}^2)}[0.048\,\text{m} \\ &\quad - (\sqrt{(0.048\,\text{m})^2 + (0.030\,\text{m})^2} - 0.030\,\text{m})] \\ &= 417\,\text{V}.\end{aligned}$$

د الکترون د پوتنشيل انرژي تغير د **۴-۱۴** معادلي په اساس پيدا کولي شو:

$$\Delta U = q\,\Delta V = (-1.60 \times 10^{-19}\,\text{C})(417\,\text{V}) = -6.67 \times 10^{-17}\,\text{J}.$$

د انرژي بقاء معادله $\Delta U + \Delta K = 0$ يا $\Delta K = -\Delta U = +6.6 \times 10^{-17} J$ نو:

$$v = \sqrt{\frac{2K}{m}} = \sqrt{\frac{2(6.67 \times 10^{-17}\,\text{J})}{9.1 \times 10^{-31}\,\text{kg}}} = 1.21 \times 10^7\,\text{m/s}.$$

**۴-۱۱نمونوي مثال:** دهغه معادلي په استعمال سره کومه چي د بريښنايي ساحي لپاره د يو نواخت مثبت حلقوي چارج له امله منځ ته راځي البته په خپل محور (د $z$ په محور باندي) نو تاسو هغه معادله په لاس راوړی چي دهغه پوتانشيال لپاره، چي په يوه نقطه کي ديو حلقوي چارج له امله منځ ته راځي البته چي د محور څخه تر حلقي پوري د $z$ فاصله لري.

**حـــل:** ۴-۱۲ معادله د $V$ او $E$ ترمنځ رابطه ښايي، د چارج د حلقي برښنايي ساحه د ۴-۱۸ معادلي په واسطه ښودل شوي ده ساحه يواځې د $z$ اجزاوي لري نو له دي وجي دانتګرال ۴-۱۲معادلی انتګرال تابع د $\vec{E}.d\vec{s} = E_z dz$ په اندازه کميږي مونږ د ۴-۱۲ معادلی انتيګرال له بي نهايت څخه تر $P$ نقطې پورې (د ازمايښت لاندې نقطه) نيسو:

$$V_P = -\int_{\infty}^{z} E_z\,dz = -\int_{\infty}^{z} \frac{\lambda}{2\epsilon_0} \frac{Rz}{(z^2 + R^2)^{3/2}}\,dz.$$

د انتګرال په ساده کولو سره مونږ لرو چي:

$$V_P = \frac{1}{2\epsilon_0} \frac{\lambda R}{\sqrt{z^2 + R^2}},$$

دغه معادله ۴-۳۰ معادله سره مساوي ده.

**۴-۷ له پوتنشيل څخه د ساحي محاسبه:**

په ۴-۴ برخه کي مونږ د برقي ساحي څخه د پوتنشيل توپير د تر لاسه کولو طريقه باندي بحث وکړ، اوس مونږ په دي بحث کوو چي څه وکړو ترڅو دهغي د معکوس محاسبه وکړو، که پوتنشيل راکړل شوي وي نو برقي ساحه پيدا کولي شو د اسي چي د ۴-۱ جدول څخه هغه دوه طرفه غشي چي دوه لاندي بکسونه سره تړي په حقيقت کي په عين جهت درومي.

$a$ ۴-۱۵ شکل څرګندوي چي يو مثبت ازمايښتي نقطوي چارج $q_0$ کله چي دغه چارج د $a$ له نقطي څخه حرکت کوي چي هلته پوتنشيل $V$ دي د $b$ د نقطي په لور چي پوتتنشيل يي $V + \Delta V$ دي په دي مرحله کي د $q_0$ برښنايي پوتنشيل انرژي توپير $\Delta U = q_0 \Delta V$ په اندازه تغير کوي، د قوو په ژبه کي مونږ ويلي شو چي دلته يوه برقي ساحه موجوده ده چي به ذره باندي د $\vec{F} = q_0\vec{E}$ قوه عمل کوي هغه کار چي د دي قوي په واسطه تر سره شوي دي چي ذري ته يي د **a** له نقطي څخه د **b** نقطي په لور حرکت ورکړي عبارت دي له:

$$w = F_s\Delta_s = q_0E_s\Delta_s$$

دلته د $E_s$ او $F_s$ ترکیبي اجزاوي دي البته د $\Delta_s$ په اوږدو کي، کوم چي د ذري تغیر مکان بیانوي یعني کله چي دا زره د $a$ له نقطي څخه د $b$ د نقطي په لور حرکت کوي ( دلته مونږ $\Delta_s$ ډیر کوچني فرض کوو ) له دي وجي مونږ قوه او برقي ساحه تقریبا د $ab$ په اوږدو کي ثابته فرضؤو هم په مقدار او هم په جهت کي، د د دواړود معادلو تعریفونو تر منځ ریاضیکي رابطه داسي ده $w = -\Delta U$ نو:

$$q_0E_s\Delta_s = -q_0\Delta V \qquad (4-35)$$

او یا

$$E_s = -\frac{\Delta V}{\Delta_s} \qquad (4-36)$$

دغه رابطه مونږ ته د برقي ساحي او برقي پوتنشیل تر منځ اساسي ارتباط په ننبه کوي.




**۱۵-۴** شکل: (**a**) د $q_0$ چارج شوی زره د **ab** په مسیر باندې د دو هم پوتانشیال نقطو تر منځ حرکت کوي. (**b**) زره د **a** له نقطې څخه د **b** نقطې ته حرکت کوي، هم د **adp** په مسیر باندي.

برقي ساحه د پوتنشیل د تغیر او فاصلي د حاصل ضرب د منفي سره مساوي ده که چیرې $\Delta v$ مثبت وي نو برقي ساحه داسې قوه تولیده وي چې دازمایښتي مثبت چارج شوي زري د حرکت سره چې د $a$ څخه $b$ نقطې ته ترسره کیږي مخالف جهت لري او که چیري $\Delta v$ منفي

وي نو برقي ساحه د حرکت په عين جهت قوه توليدوي، د بي نهايت کوچنيو تغير مکانو ليمت کي د ۴-۳۲ معادله د مشتق څخه عبارت دي يعني:

$$E_s = -\frac{\Delta V}{\Delta_s} \qquad (4-37)$$

له پورته معادلي څخه دا نتيجه راوځي چي د برقي ساحي ترکيبي اجزاء په هر جهت کي د پوتنشيل دمشتق او په همغه جهت کي دتغير مکان د نسبت له منفي سره مساوي دي، راځئ چي دغه مرحله په يو بل هندسي شکل کي وګورو $b$15-۴شکل د دي مرحلي لپاره وګورئ دلته د دي پر ځاي چي ازمايښتي چارج د $a$ او $b$ په مستقيم مسير حرکت وکړي په دوه مختلفو مسيرونو حرکت کوي د $acb$ په مسير کې چارج د $X$ پر محور له $a$ نقطي څخه د $c$ نقطي ته حرکت کوي او بيا دمسير په اوږدو کي د $c$ څخه د $b$ نقطي ته حرکت کوي.نو دلته پوتنشيل د $C$ او $b$ تر منځ په هر ځاي کي د$\Delta v + v$ عين قيمت لري، هغه کار چي د $bc$ په اږدو کي د برښنايي ساحي په واسطه اجرا کيږي له صفر سره مساوي دي ځکه چي پوتنشيل تغير نکوي ( ۴-۱۱ معادله و ګورئ) او هغه کار چي د $ac$ په اوږدو کي د برښنايي ساحي په واسطه تر سره شوي دي عبارت دي له$F_x\Delta_x = q_0E_x\Delta_x$ څخه څرنګه چي د پوتنشيل د انرژي بدلون د مسير څخه يو مستقل کميت دي نو ددوهم ځل لپاره مونږ لرو $W = -\Delta U$ او:

$$q_0 E_x \Delta x = -q_0 \Delta V$$

يا

$$E_x = -\frac{\Delta V}{\Delta x},$$

که چيري ذره د $adb$ په مسير حرکت وکړي نو کار مساوي دي په$F_y\Delta_y = q_0E_y\Delta_y$ سره البته د $ad$ په اوږدو کي او د $db$ په اوږدو کي د کار قيمت صفر دي (ځکه چي د $b$ او $d$ نقطو تر منځ په هر ځاي کي پوتنشيل د$\Delta V + v$ عين قيمت لري) څرنګه چي د پوتنشيل انرژي خالص تغير د $\Delta V$ سره مساوي دي نو لرو:

$$q_0 E_y \Delta y = -q_0 \Delta V$$

یا

$$E_y = -\frac{\Delta V}{\Delta y}.$$

د $Ez$ لپاره به هم د دري بعدي محاسبې څخه عین نتیجه راووځي، که چیري مونږ لیمټ ونیسو په داسي حال کي چي د مسیر اوږدوالي ډیر کوچني شي، نو دا تغیرات له مشتق سره مساوي کیږي او مونږ کولي شو چي $\vec{E}$ او $V$ تر منځ عمومي رابطه په لاندي ډول ولیکو:

$$E_x = -\frac{\partial V}{\partial x}, \quad E_y = -\frac{\partial V}{\partial y}, \qquad E_z = -\frac{\partial V}{\partial z} \qquad\qquad (4-38)$$

که چیري $V(x, y, z)$ دیو معلوم خپریدونکي چارج لپاره دفضا په ټولو نقطو کي معلوم وي نو بیا مونږ کولي شو چي د $\vec{E}$ تر کیبي اجزا پیدا کړو داسي چي د پوتنشیل جز یي مشتق او د مختصاتو د هر نسبت سره مساوي دي، نو مونږ دوه طریقي لرو تر څو چې د چارج د جاري خپریدني لپاره برقي ساحه محاسبه کړو چي یوه طریقه یي دکولمب دقانون په انتګرال نیولو سره ولاړه ده او بله طریقه یي د پوتنشیل په مشتق نیولو سره ولاړه ده ( ۴-۳۸ معادله) په عملي ډګر کي دوهمه طریقه لږه مشکله ده.

۴-۱۲ نمونوي مثال: تاسو دیو نواخت چارج شوي صفحي په محور باندي دپوتنشیل لپاره ۴-۳۲ معادله استعمال کړی له هغی څخه تاسو د محوری یي نقطو برقي ساحي لپاره معادله راوباسی؟

**حـــل:** پوهیږو چي $\vec{E}$ باید د صفحي په محور واقع وي د $z$ پر محور د۴-۳۲ معادلي په استعمال سره فرض کوو چي $z > 0$ وي:

$$E_z = -\frac{\partial V}{\partial z} = -\frac{\sigma}{2\epsilon_0}\frac{d}{dz}\left[(z^2+R^2)^{1/2} - z\right]$$
$$= \frac{\sigma}{2\epsilon_0}\left(1 - \frac{z}{\sqrt{z^2+R^2}}\right).$$

د ۴-۱۹ معادلي د انتګرال نیولو سره هم عین نتیجه راتلي شي.

**۴-۱۳ نمونوي مثال:** چي ۴-۱۲ شکل کې د $P$ دنقطې (فاصله) د ډايپول په ساحه کې چې د $y, z$ دکاردیناتود یو سیستم په مبداء کې واقع ده، راښايي $\vec{E}$ دیو موقیعت دتابع په شان محاسبه کړی ؟

**حـــل:** د ۴-۱۲ شکل په مستوي کي، $\vec{E}$ په دی مستوي که واقع دی او دهغه مرکبي $E_y$، $E_x$او $E_z$ د شرایطو له مخي له صفر سره مساوي دي نو د قطبي مختصاتو پر ځاي په مستطیلي مختصاتو کي پوتنشیل محاسبه کوو نو:

$$r = (x^2 + z^2)^{1/2}$$

او

$$\cos\theta = \frac{z}{(x^2+z^2)^{1/2}}.$$

V په۴-۲۲ معادلی کی راکړل شوی:

$$V = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{p\cos\theta}{r^2}.$$

د $r^2$ او د $cos\theta$ دقیمتونو په عوض کولو سره مونږلرو:

$$V = \frac{p}{4\pi\epsilon_0}\frac{z}{(x^2+z^2)^{3/2}}.$$

مونږ$E_z$ د۴-۳۸ معادلی څخه تر لاسه کوو ،دلته $x$ داسی فرض کوو چه په دی محاسبه کی یو ثابت دی:

$$E_z = -\frac{\partial V}{\partial z} = -\frac{p}{4\pi\epsilon_0}\frac{(x^2+z^2)^{3/2} - z[\frac{3}{2}(x^2+z^2)^{1/2}](2z)}{(x^2+z^2)^3}$$

$$= -\frac{p}{4\pi\epsilon_0}\frac{x^2-2z^2}{(x^2+z^2)^{5/2}}. \qquad (28\text{-}39)$$




۴-۱۲شکل:

په ۴-۱۳ نمونه وی مثال کی ، یو داپیول د $ZX$ سیستم په مبدا کی واقع دی$0 = X$ د ډایپول د محور په اوږدو کي ، کوم چي د $z$ محور د ي لري نقطي تشریح کوي نو معادله د $E_z$ لپاره راکمیږي:

$$E_z = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{2p}{z^3}.$$

دغه معادله عینا دهغه معادلي سره مساوي ده چي د ۲ څپرکي په لومړي مثال کي د ډایپول محور په اوږدو کي دبرقي ساحي لپاره مونږ درلوده باید دي ته مو پام وي چي د $z$ دمحورپه اوږدو کي دتناسب څخه $E_x = 0$ دي که چیري په ۴-۳۹ معادله کي $z = 0$ وضع شي نو مونږ ته د ډایپول د منځنی مستوي په لری نقطو کي د $E_z$ قیمت راکوي:

$$E_z = -\frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{p}{x^3}.$$

دغه معادله د ۲-۱۲ معادلي سره معادله ده بیا هم له تناسب څخه په منځني مستوي کي د $E_x$ قیمت له صفر سره مساوي دی په معادله کي منفي علامه دا په نښه کوي چي $\vec{E}$ د $z$ پر

محور منفي دي تاسو کولی شي چي عيني طرز العمل د $E_x$ لپاره و کاروی او تاسو بايد داسي نتيجه تر لاسه کړی چي د **2** څپرکي د دويم مثال معادلي سره معادله وي.

**۴-۸هم پوتنشيل سطحې** :($\boldsymbol{Equipotential\ Surfaces}$) :

يو نقطوي چارج په نظر کې ونيسی چي مقدار يې $q = 1.11nC$دی د **۴-۱۸** معادلې په استعمال سره مونږ کولی شو چي د چارج له امله را پيداشوي پوتنشيل دچارج څخه $0{,}1m$ فاصله کې، $100\ V$ تر لاسه کړو څرنګه چي پوتنشيل دجهت سره تړاو نلري نو له دې امله په نوموړي فاصله کې په هر جهت باندې دهغه مقدار د $100\ V$ سره مساوي دي **۴-۱۷** شکل ته وګوری. د لته يوه کره وينی. چې دلته دفضا ټولې نقطې چې د $q$ له چارج څخه د $0{,}1m$ په شعاع واقع دی $50\ V$ پوتنشيل لري نو هغه سطحه چي دهغې په هر ځای کې پوتنشيل عيني قيمت ولري دهم پوتنشيل سطحې په نوم يادېږي لکه په **۴-۱۷** شکل کې دوې کرې.دلته که چېرې يو ازمايښتې چارج په دې سطحه له يوې نقطې څخه بلې نقطې ته حرکت کوي نو برقي قوې کوم خاص کار نه اجرا کوي




**۴-۱۷ شکل**: د کرې په سطحه ټولې پرتې نقطې چې د **q** چارج چاپيره واقع وي عينې پوتنشيل لري دلته تاسو دوه کرې وينی. چې يوه يې د **V=100 v** لپاره او بله يې د **V=v50** لپاره ده

ځکه چې$\Delta V = 0$ دی که څه هم ميسر په سطح کې واقع دی نو کوم خاص کار نه تر سره کېږي ځکه څنګه چې مسير ختمېږي نو بيرته شروع کېږي دکا رمقدار چې دبرېښنايي قوو په واسطه سرته رسيږی. هغه وخت چې يو ازمايښتي چارج د يوې هم پوتنشيل

سطحې څخه بلې ته حرکت کوي د پوتنشیل دهغه توپیر سره ارتباط لري چې د دغو سطحو تر منځ موجود دي.

د کار مقدار په دؤو سطحو کې دپیل او پای موقیعتونو څخه مستقل دی عینی کار د هغه چارج په واسطه تر سره کیږي کله چی چارج دلومړني سطحې دیوې نقطې څخه د دویمې سطحې کومې نقطې ته حرکت کوي.په ۱۸-۴ شکل کی د هم پوتنشیل سطحو یوه کورنی ښودل شوې ده چې دیو ټاکلې چارج دخپریدنې سره تړاو لري هغه کار چې د برښنایي قوو په واسطه ترسره کیږي. کله چې چارج شوې ذره په لومړني مسیر باندې حرکت کوي له صفر سره مساوي ځکه چې دغه مسیر په عینې هم پوتنشیل سطحه کې شروع او ختم کیږی، هغه کار چې د دوهم مسیر په اوږدو کې ترسره کیږی دعینې دلیل له مخې د صفر سره مساوي دی. خو هغه کار چې د دریم او څلورم مسیر په اوږدو کې ترسره کیږئ له صفر سره نه دی مساوي. خو په دواړو مسیرونو کې دکار مقدار سره مساوي دي ځکه چې دواړه مسیرونه د هم پوتنشیل سطحو عینې جوړه سره نښلوي. دلته دریم او څلورم مسیرونه داسې نقطې سره نښلوي چې دپوتنشیل توپیر $V_B - V_A$عینې قیمت لري. که چیرې د $q$ یو چارج د $A$ سطحې کومې نقطې څخه د $B$ سطحې کومې نقطې ته حرکت کوي نو د11-۴ معادلې له مخې هغه مقدار کا رچې د الکتروستاتیکي قوو په واسطه ترسره کیږي عبارت دی له:

$$W_{AB} = -2(V_B - V_A)$$

هم پوتنشیل سطحې او دبریښنایي ساحې کرښې:

په **۲۵-۲** برخه کی مونږ د چارج د خپریدنې په یوه بیله ګرافیکي طریقه باندې بحث وکړ، کوم چې د برښنایي ساحې په کرښو ولاړه وه د $\vec{E}$ او $V$ تر منځ ریاضیکي رابطه دګرافیکي ښودنې اړیکې هم مونږ ته ښکاره کوي ، **۱۵-۴** شکل وګورئ. فرض کړئ چې مونږ یو چارج د سکون له حالت څخه دهم پوتنشیل سطحې $V + \Delta V$ د $b$ نقطې څخه خوښې کوو د پوتنشیل په ژبه خو مونږ وایو چې دغه زره باید د $\Delta\ V$ دپوتنشیل توپیر په واسطه د $V$ دهم پوتنشیل سطحې په لور را وغورځوي. همدارنګه باید یوه شو چې برښنایي ساحه

چې د دغو دوؤ هم پوتنشیله سطحو ترمنځ موجوده ده ذرې ته تعجیل ورکوي برښنایي ساحه په هم پوتنشیل ساحه باندې د $B$ په نقطه کې عمود ده.که چېرې داسې نه وي نو بیا به دلته دهم پوتنشیل سطحې په اوږدو کې د برښنایي ساحې یوه مرکبه موجوده وی، کومې چې به په ذره باندې کار اجرا کولې تر څو د سطحې په اوږدو کې حرکت وکړي. خو دابه دهم پوتنشیل *equipotential* تعریف په داسې ډول چې یوه سطحه چې ثابت پوتنشیل ولري نمیګړي کړي، چې دهغه په اوږدو کې یوه چارج لرونکې ذره حرکت کولی شي خو کوم کار نه اجرا کوي. نو ددې څخه مونږ داسې نتیجه اخلو چې د برښنایي ساحې کرښې په هم پوتنشیل سطحې باندې په ټولو نقطو کې عمودي وي.




۱۸-۴ شکل: د څلورو هم پوتنشیل سطحو برخې په دې شکل کې د ازمایښتي چارج د حرکت څلور مختلف مسیرونه ښودل شوی دی

مونږ کولی شو چې د ۳۷-۴ معادلې څخه یعنې $E_s = \frac{dV}{d_s}$ هم عینې نتیجې ته ورسیږو ۱۵-۴ شکل ته وګوری، په دې شکل کې د $ds$ لپاره یو اځې یو جهت موجود دی په کوم کې چې $-\frac{dV}{d_s}$ اعظمي قیمت لري او د دې معنی دا ده چې $E_s$ هم په دې جهت کې اعظمي قیمت لري د $E$ دغه اعظمي قیمت په نوموړي نقطه کې دبرښنایي ساحې له مقدار څخه عبارت دی. او هغه جهت چې دهغه لپاره $E_s$ اعظمي قیمت لري هغه د برښنایي ساحې له جهت څخه عبارت دی. مونږ کولی شو چې د $B$ په نقطه کې د $ds$ په شعاع یوه دایره رسم

کړو ، دلته یوه داسې نقطه تاکو چې راتلونکي هم پوتنشیل سطحې ته تر ټولو نږدې وي نو مونږ ته به د $-dV$ تر ټولو لوی قیمت په لاس راکړي. نو له $B$ څخه تر هغې نقطې پورې جهت په هم پوتشنیل سطحه باندې د $B$ په نقطه کې عمود دی او دا مونږ ته په $B$ کې د برښنایي ساحې جهت راښايي که چېرې دیو ټاکلي خپریدونکي چارج لپاره دهم پوتنشیل سطحې په ځانګړتیاؤو باندې وپوهیږو نو مونږ به وکولی شوچی د برښنایي ساحې خطوط کرښې وموموداسې چې په هم پوتنشیل سطحه باندې عمودونه رسم کوو.

په ۱۹-۴ شکل کی دهم پوتنشیل سطحو او دهغوی د برښنایي کرښو ترل شوي سیستم ښودل شوي دي، په درې حالاتو کې چې مونږ مخکې ولوستل نقطوي چارج د چارج یوه نامحدوده ورقه او ډایپول (دوه قطبي) دغه رسمونه د ۲-۱۰ ،۲-۱۱او ۲-۱۲ شکلونو د برښنایي ساحی کرښې څرګندوی د دوی د اضافه شوی هم پوتنشیل سطحو سره باید په یاد ولرو چی د بریښنایی ساحی کرښی په هر ځاې کې چې د هم پوتنشیل سطحې څخه تیریږي په هم پوتنشیل سطحه باندې عمودی دی.



۴-۱۹شکل.

**۴-۹ د چارجداره هادي پوتنشیل:**

په ۲-۳ برخه کې مونږ دمنفرد(ځانګړی) چارج شوي هادي دوی ځانګړتیاوې چی یو له بل څخه جدا کړې عبارت دی له:

۱ـ دهادي په داخل کې د برښنایي ساحې قیمت له صفر سره مساوي دي.

۲ ـ چارج دهادي په بهرنی سطحه کې قرا لري.

دریمه مهمه ځانګړتیا دهغه برښنایي پوتنشیل دی. فرض کړی چې مونږ یو اختیاری شکله هادی لرو کوم ته چی مونږ یو خالص چارج انتقالوو، که چارجونه د حرکت لپاره ازادوي نو په ډېره بېړه به دهادي په بهرنۍ سطحه کې خپاره شي تر هغه وخته چې دوی د تعادل په حالت کې شي. نو دمتقابل تاثیر په نتیجه کې همنوعه چارجونه یو بل دفع کوي تر هغه وخته پورې چې دوی په داسې ډول خپاره شي چې د دوی تر منځ منځنۍ فاصله ډېره زیاته شي نو له دې وجې به د چارجونو د دغه سیستم پوتنشیل انرژي خپل اصغري قیمت ته ورسیږئ که چېرې دهادي په سطحه کې چارجونه دتعادل په حالت کې وي، نو بیا به دهادي سطحه هم پوتنشیل سطحه وي. که چېرې داسې نه وي نو بیا دهادي ځینې برخې دلوړ پوتنشیل او ځینې برخې به یې د لیمټ پوتنشیل په حالت کې وي. نو پدې حالت به مثبت چارجونه د ټیټ پوتنشیل موقیعت ته او منفي چارجونه به د لوړ پوتنشیل موقیعتونو ته لاړ شي. نو پدې ډول دغه حالت زمونږ هغه ادعا ردوی چې مونږ وایو چې چارجونه د تعادل په حالت کې دي نو ددې لپاره خو باید سطحه هم پوتنشیله وي. که چېرې دهادي په داخلي برخه کې برښنایي ساحه صفر وي نو بیا مونږ کولی شو چې ازمایښتي چارج دهادي له سطحې څخه دهادي داخل ته په هر مسیر په حرکت راولو، نو دلته به هغه خالص کار د سطحې دچارجونو لخوا په ازمایښتي چارج باندې اجرا کیږي چه له صفر سره مساوي وي. ددې معنی دا ده چې د هرو دؤو نقطو ترمنځ دپوتنشیل توپیر له صفر سره مساوي دی، نو له دې وجې پوتشنیل دهادي په ټولو نقطو کې عینې قیمت لري نو دهادي دریمه ځانګړتیا په دې ډول بیانولی شو چه ټول په عینې پوتنشیل کې دی. یعنې دهادي په ټولو نقطو کې پوتنشیل عینې قیمت لري دغه نتیجه یواځې دالکتروستاتیک په حالت کې د ویل کېدو وړ ده، نو کله چې مونږ دهغه د جریان په باره کې خبرې کوو چې له هادي څخه تیریږي نو دپوتنشیل توپیر به په مختلفو نقطو کې توپیر ولرو. باید په یاد ولري چې د هادي شکل هم ډېر مهم دی که چېرې هادي کروي شکل ولري نو چارج دهادي په سطحه کې په یو نواخت ډول سره خپریږي، هغه هادي چې غیر کروي شکل لري نو په سطحه کې دچارجونو تراکم یو نواخت نه وي خو سطحه یې بیا هم، هم پوتنشیله وي، په هغه هادې کې چې داخلي خالیګا وي ولري که چارج لري او کنه

ټولې نقطې یې که داخل وي او یاپه سطحه کی وی دعینې پوتنشیل درلودونکی دی زمونږ نتیجه دا ده چې دهادي سطحه هم پوتنشیله ده د ۸-۴ برخې له بحث سره سرخوري چې هلته مونږ ویلی ؤ چې د برښنایي ساحې خطونه په هم پوتنشیل سطحه باندې همېشه عمود وي، په ۲-۳ شکل کې مونږ دګوس ($gauss$) قانون مطالعه کړ، چې هغه بیانوي چې دهادي دسطحې څخه بهر برښنایي ساحه په همپوتنشیله سطحه باندې عمود ده چې دا په هغه وخت کې به سمه وي کله چې دهادي سطحه هم پوتنشیله وي. نو مونږ کولی شو چې ښکاره او واضحې نتیجې په لاس راوړو ځکه چې هادي جامد وي او کروي شکل ولري نو دغه هادي د $q$ مجموعي چارج په یو نواخت ډول په خپله سطحه کې متحرک ساتي. په ۵-۱ برخه کې مونږ دیو نواخت کروي چارج شوي هادي یو ځانګړتیا باندې بحث وکړ، دلته په چارجي چارج باندې دقوې مقدار له هغی قوې سره مساوي دی که چېرې مونږ $Shell$ دنقطوي چارج سره تعویض کړي وي دغه ځانګړتیا مونږ ته اجازه راکوي تر څو د نقطوي چارج اصطلاح دبرښنایي پوتنشیل او برښنایي ساحې لپاره وکارؤو په داسې یو موقیعت کې چې $r > R$ وي د قشر په داخل کې په نقطوي چارج باندې عمل کوونکي قوه له صفر سره مساوي ده د دې معنی دا ده چې دهادي په ټولو نقطو کې پوتنشیل عینې قیمت لري البته په سطحٔه کې هم دپوتنشیل قیمت له داخلی پوتنشیل سره مساوي دی، په سطحه دپوتشنیل قیمت دموندلو لپاره ۱۸-۴ معادلې څخه کار اخلو چې $r = R$ نیسو نو په داخل کې د پوتنشیل مقدار مساوي دی **40-۴** **(r<R)**

$$v = \frac{1}{4\pi\epsilon 0}.\frac{q}{r}$$




**۲۰-۴ شکل**: په یو شان چارج شوي کروي هادي برښنایي ساحې او برښنایي پوتنشیل ښایي.

نو دبرښنایي ساحې قیمت د $r < R$ لپاره صفر دی، او $r > R$ لپاره د $\frac{1}{r^2}$ په اندازه کموالی کوي. او له بلې خوا د $r < R$ لپاره د پوتنشیل قیمت ثابت دی او د $r > R$ لپاره د $\frac{1}{r}$ په اندازه کموالی پیدا کوي. که څه هم د کروي هادي په سطحه چارج په یو نواخت ډول خپریږي، چې دا حالت په هر اختیاري هادي کې داسې نه وي په تیره نقطو(*Shap points*) او څنډو سره نږدې د سطحې چارج تراکم ،له سطحې څخه بهر برښنایي ساحه کیدای شي چې ډېر لوړ قیمت واخلي. د دې لپاره چې دغه پېښه په کیفیت سره و وینو نو دوه کروي جسمونه چې یو له بل سره مساوي ضخامت نلري په نظر کې ونیسو چې دیو نازک سیم په واسطه یو له بل سره وصل شوي وي




۴-۲۱،

که فرض کړو چې ټول سیستم د $V$ اختیاري پوتنشیل ولري. نو د دغو دؤو کرو مساوي پوتنشیلونه د ۴-۴۰ معادلې څخه په لاس راوړو خو مونږ لرو:

$$V = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{q_1}{R_1} = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{q_2}{R_2},$$

نو ددې فارمول څخه نتیجه داسې پلاس راځي:

$$\frac{q_1}{q_2} = \frac{R_1}{R_2} \qquad (4-41)$$

که فرض کړو چې داکرې یو له بل څخه ډېر لرې وي داسې چې دیو چارج خپریدل په بل چارج باندې اثر ونلري نو د دؤو کرود کثافتونو (*densities*) نسبت مساوي دي په:

$$\frac{\sigma_1}{\sigma_2} = \frac{q_1/4\pi R_1^2}{q_2/4\pi R_2^2} = \frac{q_1 R_2^2}{q_2 R_1^2}.$$

که وروستنۍ نتیجه په ۴۱-۴ معادله کې وضع شي نو مونږ لرو:

$$\frac{\sigma_1}{\sigma_2} = \frac{R_2}{R_1} \qquad (4-42)$$

۴۲-۴ معادله ښکاره کوي چې کوچنۍ کره لوی کثافت لري نو دا مونږ ته را یادوي چې دخارجي چارج لپاره دبرښنایي ساحې مقدار له هغه قیمت سره مساوي دی، که چېرې مونږ کروي جسم په خپل مرکز کې له یو نقطوي چارج سره تعویض کړو. نو مونږ کولی شو دکرې له سطحې بهر د برښنایي ساحې مقدار دلاندې فورمول په واسطه محاسبه کړو:

$$E = \frac{1}{4\pi\epsilon_0}\frac{q}{r^2} = \frac{\sigma}{\epsilon_0} \qquad (4-43)$$

د ۴۲-۴معادلې په نظر کې نیولو سره د کوچنۍ شعاع لرونکي کرې دسطحې چارج کثافت زیات دی نو پدې ډول دکوچنۍ شعاع لرونکي کرې بهر د برښنایي ساحې مقدار هم زیات دی. نو ویلی شو هغه کره چې کوچنۍ شعاع ولري نو له سطحې بهر د برښنایي ساحې مقدارئی زیات دی. دیو تیره هادي سره په نږدې نقطو کې کیدای شي چې برښنایي ساحه ډېره قوي وی، نو پدې ډول به دهوا ډېر شمیر آیونونه ایونایز کړي، نو په نتیجه کې به غیر هادي هوا په هادي هوا بدله شي او کېدای شي چې له هر هادي څخه چارجونه انتقال کړي. دغه ډول اثر *Corona discharge* په نوم یادېږي الکتروستاتیکي رنګ شیندونکي یوه *Corona discharge* استعمالوي تر څو د چارج د کوچنۍ ذرې رنګ ته ورسوي چې دغه ذرو ته وروسته د برښنایي ساحې په واسطه تعجیل ورکول کېږي.

۱۰-۴الکتروستاتیکي تعجیل ورکوونکي (اختیاري)

:(*The electrostatic Accelerator* (*Optical*)

زياتره هستوي مطالعات هستوي تعاملات په بر کې نیسي او دا هغه وخت منځ ته راځي کله چې د وړانګو یو جریان په هدف باندې وارد شي یو میتود (طریقه) کومه چې ددغه ذراتو د تعجیل ورکولو لپاره استعمالیږي د الکتروستاتیک په تخنیک باندي ولاړه ده که چیرې$q$ ذره چي مثبت چارج لري، نو دغه ذره د$\Delta V$ په اندازه د پوتنشیل تغیر سره دحرکت په وخت کې د $\Delta U = q\ \Delta V$ د پوتنشیل انرژي توپیر منځ ته راوړي، نو د ۴-۱۴ معادلي په اساس د ذرې د حرکي انرژي زیاتوالی د$\Delta K = -\Delta U$ سره مساوي دی نو که فرض کړو چې ذره دسکون له حالت څخه په حرکت شروع و کړي نو وروستۍ حرکي انرژي یې دلاندې فورمول څخه محاسبه کیږي:

$$K = -q\ \Delta V \qquad (4-44)$$

دا یو نایز شوي اتومونو لپاره $q$ معمولا مثبت وي، ددې لپاره چې د دغو وړانګو د جریان لپاره دانرژي اعظمي قیمت تر لاسه کړو نو مونږ باید د دې هدف لپاره اعظمي دپوتنشیل تغیر ولرو، په هستوي فزیک کې دهدف او دهدف د وړانګو تر منځ دکولمب د دافعوي قوې د له منځه وړلو لپاره داسې وړانګو ته ضرورت دی چې څو ملیون الکترون ولټ ($Mev$)حرکي انرژي ولري، نو ددې انرژې دموجودیت لپاره په میلیون ولټ ($MV$) پوتانشیال تو پیرته اړتیا ده نو داسې الکتروستاتیکي اله چې دومره لوی پوتانشیال توپیر تولید کړي په ۴-۲۲ شکل کې ښودل شوي ده په شکل کې ګورئ چې یوه کوچنۍ هادي کره ده چې د $q$ چارج منځ ته راوړي د $a$ په شعاع دهغې کرې په منځ کې واقع ده چې د $b$ په شعاع $Q$ چارج منځ ته راوړي یو هادي مسیر د دواړو کرو تر منځ په موقتي ډول منځ ته راځي او وروسته د $Q$ چارج په مکمل ډول خارج ته انتقال کوي او دا په دې پوري هیڅ تړاو نلري چې د $Q$ څومره چارج د وړاندې نه دلته موجود دی باید په یاد ولرو چې چارج همیشه د هادي په خارجي سطحه کې دحرکت په حال کې وي نو که چیرې ته د کرې په داخل کې د $Q$ چارج ذخیره کولو لپاره مناسب میکانیزم موجود وي نو په خارجي سطحه کې د $Q$ چارج او دهغې له امله را پیدا شوي پوتنشیل په بې حده ډول زیاتوالي

وموومي په عملي ډول د ترمينال پوتنشيل يو ټاکلي حد لري کوم چې په هوا کې د ځليدو له امله منځ ته راځي.




۴-۲۲ شکل: يوه وړه چارج شوي کره چې ديوې غټې چارج شوي کرې په منځ کې واقع ده د ځوړنده ده سيالي.



۴-۲۳ شکل: يو الکتروستاتيکي جنراتور چې 2,7 مليون ولټ پوتنشيل لري دهوا د شرايطو لاندې بريښنا (ځليدنه) منځ ته راوړي.

د الکتروستاتیک دغه مشهور اصل چې هستوي ذروته د تعجیل ورکولو په خاطر وکارول شو د لومړي ځل لپاره د رابرت واندي ګراف لخوا په ۱۹۳۰م کال کې کشف شو او د غه تعجیل ورکوونکي د واندي ګراف تعجیل ورکوونکي په نوم سره یاد شو نو پدې ډول د څو ملیون ولته پوتنشیل په اسانۍ سره ترلاسه شوه، ۴-۲۴ شکل کې واندي ګراف تعجیل ورکوونکي اصلي شکل ښودل شوي دی.




۴-۲۴شکل: ۴-۲۴ شکل د واندي ګراف تعجیل ورکوونکي دیاګرام راښایي.

یو مثبت چارج د $A$ په نقطه کې تار ته خپریږي اود تار څخه د $B$ په نقطه کې خارجیږي چې له دې څخه ترمینال ته حرکت کوي چې هلته $V$ منځ ته راوړي، مثبت چارج شوي ایونونه، کوم چې له ترمینل څخه خارجیږي د تعجیل ورکوونکي څخه د وړانګو جریان جوړه وي.

دلته وینو چې چارج د یوه تیره سر څخه چې دکارونا نقطې ($corona\ point$)په نوم یادیږئ د $A$ نقطې څخه حرکت کوونکی تار ته چې معمولاً را بروي انتقال کوي دغه تار چارج دلوړ ولتیج ترمینال ته راوړي دی، غه چارج د $B$ په نقطه کې له تار څخه خارجیږئ او د $B$ له کرونا ټکي څخه دهادي خارجي برخې ته انتقال لري د ترمنیل په داخل کې دمثبت آیونو یوه سرچینه وجود لري دمثال په ډول دهایدورجن هسته (پروتونونه) او یا دهلیوم هستي (دالفا وړانګې) په دې پروسه کې آیونونه دلوړ ولتیج د ناحیې څخه حرکت کوي او څو ملیون الکترون ولټ حرکي انرژي اخلي دغه ترمینال په داسې یو ټانک کی

بند شوي دي چې په هغې کې يو عايق تار وجود لري چې دتشعشع څخه مخنيوي کوي دغه تعجيل ورکوونکی کولی شي چې ايونونو ته د دوهم ځل لپاره تعجيل ورکړي نو له دې وجې په حرکي انرژۍ کې اضافي زياتوالی تر سترګو کيږي دمنفي ايونو سرچينه چې د ترمنيل په خارج کې د دې لپاره واقع ده چې نيو ترال (خنثی) اتومونو ته يو الکترون ور زيات کړي دغه منفي ايونو نه دمثبت پوتنشيل دترمنيل په لور حرکت کوي د لوړ ولټيج د ترمينال په داخل کې ګاز او يا د اوسپنې نري تارونه وجود لري او د دې لپاره ځاي پر ځاي شوي دي چې د منفي ايونو څخه الکترونونه خارج کړي او دهغوی په مثبت ايونو تبديل کړي چې دغه آيونونه بيا دمثبت پوتنشيل څخه حرکت کوي دغه واندیګراف تعجيل ورکوونکي که په اوس وخت کې د **25** مليون ولټ يو ترمنيل استعمالوي تر څو دکاربن او يا داکسيجن غوندې ايونونو ته د $Mev$ 100 حرکي انرژۍ په اندازه تعجيل ورکړي.

**۴-۱۴**نمونوي مثال: د **۲۲-۴** شکل د دؤ کرو ترمنځ دپوتانشيال توپير محاسبه کړی؟

**حـــل**: $V(b) - V(a)$ پوتنشيل توپير دوه مرکبې لري يوه دکوچنۍ کرې او بله دلوي دايروي قشر څخه په جلا جلا ډول محاسبه کوو او بيا يې په الجبري ډول يو له بل سره جمع کوو لومړي لويه کره ګورو دشکل څخه ښکاريږي چې دپوتنشيل توپير په داخل او خارجي سطحه کې عين قيمت لري نو پدې ډول په لوي قشر کې ئی مرکبه $V(b) - V(a)$ له صفر سره مساوي ده نو ټول باقي پوتنشيل توپير بايد په کوچنۍ کره کې محاسبه شي دکوچني کرې څخه بهر ټولې نقطې ديو نقطوي چارج په ډول په نظر کې نيولي شو او د پوتنيشل توپير د **۴-۱۷** معادلې څخه تر لاسه کولي شو:

$$V(b) - V(a) = \frac{q}{4\pi\epsilon_0}\left(\frac{1}{b} - \frac{1}{a}\right).$$

دغه معادله دکوچني کرې او لوي قشر تر منځ دپوتنشيل توپير راښايي،بايد په ياد ولرو چې دغه معادله د $Q$ له چارج څخه چې په خارجي قشر کې وجود لري مستقله ده، که چېرې $q$ مثبت وي نود پوتنشيل توپير به هميشه منفي وي، او دا مونږ ته راښايي چې خارجي قشر هميشه په ټيټ پوتنشيل کې وي، که چيرې مثبت چارج ته اجازه ورکړل شي

تر څو د دواړو کرو تر منځ حرکت وکړي نو هغه به دلوړ څخه ټيټ پوتنشيل ته حرکت وکړي داسې چې له داخل څخه به دکرې خارج ته لاړ شي او دا په دې پورې اړه نلري چې څومره چارج د وړاندې څخه په خارجي دايروي قشر کې وجود لري.

## څو ځوابه انتخابي پوښتنې:

۱-۴ پوتنشيل انرژي

۲-۴ بريښنايي پوتنشيل انرژي

۳-۴ برقي پوتانشيال

**۱ــ ۲۵-۴** شکل کې وګورئ يو منفي نقطوی چارج له $a$ نقطې څخه د $b$ څو ممکنه اخري نقطو ته حرکت کوي، کوم مسير تر ټولو زيات مقدار، خارجي کار ته اړتيا لري تر څوذرې ته حرکت ورکړي؟




**۲۵ -۴ شکل:** ۱ څو ځوابه پوښتنه.

**۲ــ** يو الکترون د داسې يوې ساحې څخه چې بريښنايي ساحه هلته صفر نه وي د سکون له حالت څخه خوشې کيږي نو کوم يوه لاندې جمله سمه ده؟

$A$ ): دغه الکترون به دلوړو پوتنشيل ساحې په لور خپل حرکت ته دوام ورکړي.

